# تسهیل گنج

شرح

# پنج گنج

پښتو ژباړه او تشریح

صداقت کتب خانه- کندهار

**د کتاب پېژندنه :**

- د کتاب نوم — تسهيل گنج د پنج گنج پښتو ژباړه او شرح
- ژباړه — محمدرسول سعيد
- خپرندوی — **صداقت خپرندويه ټولنه/کندهار**
- کمپوزر — محمد رسول سعيد
- چاپکال — ۱۳۹۴ ش
- چاپشمېر — ۱۰۰۰ ټوکه

**د ترلاسه کولو پته:**

**صداقت خپرندویه ټولنه**

ارگ بازار، کندهار – افغانستان اړيکي : ۰۷۰۰۳۰۵٤۰۷

ايميل ادرس:

Sadaqat.books@gmail.com- sadaqat.books@yahoo.com

# فهرست

# د مصنف (شیخ سعدي) رحمة الله علیه یادونه

د نوموړي نوم شراف الدین، لقب یې مصلح او تخلص یې سعدي دی، هیواد یې شیراز وو چي د ایران پلازمینه او د علومو مرکز وو، په ۵۸۹ هـ کال کي زیږیدلی او په ٦٩١ هـ کال کي وفات سوی دی.

د وړکتوب څخه د نوموړي روزنه خپل پلار عبدالله کړې ده چي یو بزرګ انسان وو، د پلار د همدغي روزني نتیجه وه چي نوموړی په وړکتوب کي د عبادت او طاعت مین وو، نوموړی د شیراز څخه ماسیوا د بغداد په مشهوره مدرسه دار العلوم نظامیه کي داخله وکړه او هلته یې د سترو عالمانو څخه استفاده وکړه.

علامه ابو الفرج عبدالرحمن بن جوزي رحمة الله علیه د نوموړي مشهور استاد دی، نوموړي د خپل ژوند دریمه برخه په کائناتي مطالعه او سیر وتفریح کي تېره کړې ده، نوموړي په بوستان کي هندوستان ته د راتګ او د سومنات مندر یادونه هم کړې ده.

سلطان محمد قاآن نوموړي ته د ملتان د راتګ بلنه ورکړه مګر د سپین ږېرتوب په وجه نه سو راتلای.

په فارسي ادب او شعر کي ډېر لوړ مقام لري، ګلستان او بوستان د نوموړي ډېره غوره او علمي کتابونه دي، تقریبا د اووه سوه کالو څخه ددغو کتابو ویل روان دي، د لویدیځ او ختیځ په مختلفو ژبو یې ژباړي او تشریح سوي دي،

د کریما کتاب د پند او نصیحت یوه غوره خزانه ده او د حضرت شیخ رحمة الله علیه د ژوند یو ښکلی یادګار دی، الله جل جلاله دي موږ او تاسوته د عمل کولو توفیق راکړي.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# در حمد باري تعالی

## د الله ﷻ په ستاینه کي

**تشریح:** در: په، حمد: ستاینه، باري: پیدا کوونکی، یعني الله ﷻ، د دغه عبارت اصل داسي دی: این بیان ثابت است در حمد باري تعالی، یعني دا بیان د الله ﷻ په تعریف کي دی.

| کریما به بخشائي برحال ما | که هستم اسیر کمند هوا |
|---|---|
| اې کریم ذاته! رحم وکړې زموږ پر حال | ځکه زه بندي یم د خواهشاتو په جال کي |

**مشکل الفاظ:** د (کریما) په لفظ کي الف ندائیه دی، کریم: عفوه کوونکی، فیاض، بزرگ، د کریم لفظ په تشریح کي زیات قولونه دي، د مثال په توګه:

۱. هغه ذات چي په هر کار کي یې انعام او احسان وي او د هغه په هر کار کي پټ خیر په نظر کي وي.

۲. هغه ذات چي په انعام او احسان کولو کي خپلي ګټي او تاوان ته نه ګوري.

۳. د نورو حق اداء کوونکی او د خپل حق غوښتنه نه کوونکی.

۴. د لږ شي قبلونکی او د هغه ډیر عوض ورکوونکی.

دا هم مشهوره ده چي کریم هغه ذات دی چي خپله خوراک او څښاک نه کوي مګر نورو ته ښه احسان اچولو خوراک او څښاک ورکوي، سخي خو خپله هم خوراک کوي او نورو ته یې هم ورکوي، بخیل یې خپله خوري مګر نورو ته ورکول یې بد ګڼي، لئیم یې نه خپله خوري او نه یې نورو ته ورکوي، خلاصه دا چي د کریم لفظ د ډېرو ښېګڼو جامع عنوان دی چي د سخي په لفظ یا نورو لفظونو سره نه سي ادا کیدای،

به: حرف زائد، د شعر د وزن سمولو او ښکلی کولو لپاره استعمال سوی دی، بخشائي: وبخښه، رحم وکړه، د بخشائیدن څخه د امر حاضر واحد صیغه ده، بر: پر، حال مال: زما حال، که: حرف علت، ځکه چي، ددې لپاره، هستم: زه یم، هست، فعل ناقص، م: د واحد متکلم

ضمیر، اسیر: بندي، کمند: جال، دا لفظ په اصل کي خمند وو چي د خم او مند څخه جوړ سوی دی، د خم معنی د پیچ ده او د مند کلمه نسبت ده چي معنی یې د والا ده، هغه جامه چي پر ملا او زنګانه پیچل کیږي او بیا کښښني، او هغه رسۍ چي د جنګ په میدان کي د دښمن غاړي ته اچول کیږي او بیا هغه راکښوي، هوا: د نفس خواهش، حرص، کمند هوا: دا مرکب اضافي دی او اضافت بیانیه دی.

**خلاصه:** مصنف رحمه الله دعاء کوي چي اې کریم پروردګاره! زموږ پر حال رحم وکړې او زموږ کوتاهۍ وبخښې، ځکه زه د خپل نفس د خواهشاتو ښکار سوی یم، ستا د فضل او کرم څخه ماسیوا زه د نفساني خواهشاتو د جال څخه خلاصون نه سم تر لاسه کولای.

**فائده:** حضرت شیخ سعدي رحمه الله په (برحال ما) کي د جمع ضمیر راوړی دی تر څو دعاء د ټولو لپاره سي مګر په (هستم) کي یې د مفرد ضمیر راوړی دی تر څو نور ته د نفساني خواهشاتو نسبت ونه سي، د کلام دغه طرز د مصنف رحمه الله د بلاغت څرګنده نښه ده.

ځینو شرح کوونکو لیکلي دي چي دا هم صحیح ده چي په لومړۍ مسرۍ کي د ما لفظ د من په معنی وي، د جمع ضمیر د مفرد په معنی کي هم استعمالیږي لکه په پښتو ژبه کي ډېر ځایونه د زه پر ځای موږ استعمالیږي.

**فائده:** په لومړۍ مسرۍ کي د (رب اغفر وارحم) مفهوم دی او په دوهمه مسرۍ کي حدیث شریف (اعدی عدوک نفسک اللتي بین جنبیک) ته اشاره ده.

| نداریم غیر از تو فریاد رس | توئي عاصیان را خطا بخش وبس |
|---|---|
| نه لرو ماسیوا ستا څخه فریاد اورېدونکی | یوازي ته د ګناهکارانو بخښونکی یې او بس |

**مشکل الفاظ:** نداریم: نه لرو، د داشتن څخه د فعل مضارع منفي معلوم د جمع صیغه ده، غیر از تو: بیله تا، فریاد رس: فریاد رسونکی، توئي: یوازي ته یې، عاصیان: ګناه کاران.

**خلاصه:** خلاصه دا چي اې کریم ذاته! ستا څخه ماسیوا موږ بل هیڅ فریاد اورېدونکی او مرسته کوونکی نه لرو، زموږ د ګناهونو د بخښني لپاره ستا پاک ذات کافي دی.

**فائده:** د شعر په لومړنۍ برخه کي دغه آیت کریمه (حسبي الله لااله الا هو علیه توکلت...) ته اشاره ده او په دوهمي برخي کي دغه آیت (ومن یغفر الذنوب الاالله...) ته اشاره ده.

| نگهدار مارا زراه خــــــطا | خطا در گـــــذار وصوابم نما |
|---|---|
| وساتي موږ د گناهو د لارې څخه | گناهونه معـــاف کړي او ســـمه لار را وښيي |

**مشکل الفاظ:** نگهدار: وساتې، مارا: موږ، راه خطا: د گناه لار، درگذار: معاف کړې، صواب: د خطا ضد يعني سم، صحيح، نما: وښيه.

**خلاصه:** دا چي موږ د شيطاني او غلطو لارو څخه وساتې، که چيري د شيطان د خطا ايستلو په وجه موږ د سمي لارې څخه آخوا سو نو موږ معاف کړې او سيده لار را وښيي او پر سيده لار د تللو توفيق را کړې.

**فائده:** په دغه شعر کي دغه آيت کريمه (اهدنا الصراط المستقيم) ته اشاره ده، همدارنگه دغه مشهور حديث ته هم اشاره ده چي رسول الله ﷺ سيذه کرښه وکښل او وېې فرمايل چي دا د الله ﷻ لار ده، بيايې پر هغې کرښې راسته او چپه کرښې وکښلې او وېې فرمايل چي دا د شيطان لارې دي.

# در ثنائي پیغمبر ﷺ

د پیغمبر ﷺ په صفت کي.

| زبان تابود در دهـــان جائگیر | ثنائي محمد بـــود دلپذیر |
| --- | --- |
| تر څو چي ژبه په خوله کي قائمه وي | د محمد ﷺ صفت به وي زړه ته خوښ |

**مشکل الفاظ**: زبان: ژبه، تا: تر څو چي، در: په، دهان: خوله، جائگیر: ځای نیونکي، ثناء: تعریف، محمد: زموږ ګران پیغمبر ﷺ، دلپذیر: زړه ته خوښ.

**خلاصه**: دا چي تر څو پوري په خوله کي ژبه وي او تر څو چي ژوند پاته وي د رسول الله ﷺ په صفت او ښېګڼه کي به زړه لګېدلی وي او د هغه تعریف کول به زړه ته خوښ وي.

| حبیب خدا اشرف الانبیاء | که عرش مجیدش بود متکا |
| --- | --- |
| د الله جل جلاله محبوب، تر ټولو نبیانو افضل دی | چي عرش عظیم د هغه د تکیې ځای وو |

**مشکل الفاظ**: حبیب: دوست، محبوب، خدا: څښتن، الله جل جلاله، د غه لفظ په اصل کي د خدا او آ څخه جوړ سوی دی چي معنی یې د خپله راتلونکي ده، څرنګه چي الله جل جلاله په خپل وجود کي د هیچا محتاج نه دی او د هغه وجود ذاتي دی ځکه نو د غه لفظ د الله جل جلاله لپاره ویل کیږي، د غه لفظ د بل چا لپاره یوازي ویل صحیح نه دي مګر هغه وخت چي یو بل شي ته مضاف سي لکه کدخدا: یعني د کور خاوند، اشرف: بزرګ، تر ټولو غوره، انبیاء: نبیان، متکا: د تکیې ځای یا بالښت.

**خلاصه**: دا چي رسول الله ﷺ د الله جل جلاله محبوب دی، د پوره محبوبیت درجه ورته ترلاسه ده، د نوموړي ټول افعال او اقوال، ظاهري او باطني الله جل جلاله ته خوښ دي، نوموړی تر ټولو نبیانو افضل وو، عرش عظیم د نوموړي د لوړي مرتبې او بزرګۍ په وجه د معراج په شپه د هغه تکیه ګرځېدلی وو.

| سوارجهانگير يكران براق | كه بگذشت از قصر نيلي رواق |
| --- | --- |
| د تېز تلونكي براق داسي نرېوال سپور | چي تېر سو تـــر شنه بام لرونكي مانۍ |

**مشكل الفاظ:** سوار: سپور، جهانگير: د نړۍ نيونكى، يكران: اصل آس، براق: هغه سپرلى چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه پر سپور سوى وو، قد يې تر غاټري كوچنى دى، بگذشت: تېر سو، قصر: مانۍ، نيلي: شين، رواق: بام. د قصر نيلي رواق څخه مراد آسمان دى.

**خلاصه:** دا چي رسول الله ﷺ د تېز تلونكي براق داسي سپور دى چي د معراج په شپه تر آسمان تېر سو او په خاص قرب (نژدېوالي) مشرف سو.

# خطاب به نفس

نفس ته خطاب.

**تشريح:** د نفس د خطاب څخه مراد ځان او نورو خلكو ته نصيحت كول دي.

| چهل سال عمر عزيزت گذشت | مزاج تو از حال طفلي نگشت |
| --- | --- |
| څلوېښت كاله گران عمر دي تېر سو | ستا مزاج د وړكتوب د حال څخه بدل نه سو |

**مشكل الفاظ:** چهل سال: څلوېښت كاله، عزيز: گران، مزاج: د يو شي د بل سره يو ځاى كول، هغه كيفيت چي د ډېرو شيانو په يو ځاى كېدو سره تر لاسه كيږي، هغه كيفيت چي د څلورو عناصرو د امتزاج څخه تر لاسه كيږي، تو: ستا، طفلي: وړكتوب، نگشت: بدل نه سو.

**خلاصه:** دا چي اې انسانه! ستا عمر چي يو ارزښتناكه جوهر دى، ډېر تېر سو مگر تر اوسه ستا عادتونه د كوچنيانو غوندي دي، اوس هم وخت سته، د غفلت د خوب څخه وېښ سه او د آخرت د سفر لپاره تياري وكړه.

| همه با هوا و هـــوس ساختي | دمي با مصالح نه پرداخـــتي |
| --- | --- |
| ټول وخت دي د خواهش او حرص سره تېر كړى | يوه لحظه په ښېكيو كي بوخت نه سوې |

**مشكل الفاظ:** همه: ټول، هوا: نفساني خواهشات، هوس: حرص، ساختي: موافقت دي

وکړي، دمي: یوه لحظه، مصالح: نیکۍ، نه پرداختي: بوخت نه سوې .

**خلاصه:** دا چي اې انسانه! تا خپل ټول عمر په نفساني خواهشاتو او حرص کي تېر کړی، یو ګړی دې په نېکو کارونو کي تېر نه کړی.

| مکن تکیه برعمر ناپـــائیدار | مباش ایمن از بـــازي روزګار |
| --- | --- |
| باور مه کوه په فاني ژوند باندي | مه بې پروا کیږه د زماني د بدلون څخه |

**مشکل الفاظ:** مکن: مه کوه، تکیه: باور، بر: پر، ناپائیدار: فاني، بې ثباته، مباش: مه کیږه، ایمن: بې پروا، بیله بیري، از: څخه، روزګار: زمانه.

**خلاصه:** دا چي اې انسانه! په دې فکر کي مه کیږه چي اوس به په عیش او آرام ژوند تېر کړم او بیا به توبه وکړم، ځکه عمر فاني او بې ثباته دی، څه معلومه ده چي ناڅاپه به مرګ راسي او د توبې وخت به تر لاسه نه کړې، یا د زماني په بدلون سره به د نیکو اعمالو قابل نه یې، ځکه نو اوسنی حالت غنیمت وګڼه او نیکۍ ته متوجه سه .

# درمدح کرم

## د کرم په صفت کي .

**تشریح:** کرم د اخلاقو او ښو عادتونو یو جامع لفظ دی چي معنیٰ یې د ورکړې، سخاوت، بزرګۍ، عفوه کول، احسان کول او مهرباني کولو ده .

| دلا هر که بنهـــاد خوان کرم | بشد نامـــــدار جـــهان کـرم |
| --- | --- |
| اې زړه! چا چي د کرم سترخوان هوار کړ | هغه به سي په دنیا کي په کرم نومول سوی |

**مشکل الفاظ:** دلا: اې زړه، هرکه: چاچي، بنهاد: کښېښودی، خوان: سترخوان، بشد: سو، نامدار: مشهور، نامتو، سردار جهان: د دنیا سردار.

**خلاصه:** دا چي څوک په دنیا کي د احسان او کرم لاره اختیار کړي، د مېلمنو او مسافرو مرسته وکړي، هغه به په دنیا کي مشهور سي لکه حضرت ابراهیم علیه السلام او حاتم طائي .

| كرم نامدار جهانـــت كند | كرم كامگار امـــانت كند |
|---|---|
| كرم به تا د دنيا سردار جوړ كړي | كرم به تا د امان كامياب وگرځوي |

**مشكل الفاظ**: كامگار: كامياب، كند: كړي ، امان: پناه .

**خلاصه**: دا چي د سخاوت او احسان په وجه به ته په دنيا كي ډېر مشهور سې او د ټولو غمونو او مشكلاتو ځخه به خوندي كړل سې .

| ورائي كرم درجهان كارنيست | وزين گرم تر هيچ بازار نيست |
|---|---|
| د كرم ځخه ماسيوا په دنيا كي بل هيڅ كار نسته | او تر دې زيات هيڅ ځلانده بازار نسته |

**مشكل الفاظ**: ورائي: ماسيوا، وزين: تر دې ماسيوا، گرم تر: ځلانده .

**خلاصه**: دا چي په دنيا كي تر سخاوت بل هيڅ غوره عمل نسته، دا د سخاوت په صفت بيانولو كي مبالغه ده .

| كرم مايه شادمـــــاني بود | كرم حاصل زندگاني بـــود |
|---|---|
| كرم د خوشحالي سرمايه ده | كرم د ژوند گټه ده |

**مشكل الفاظ**: مايه: سرمايه، خزانه، شادماني: خوشحالي، حاصل: گټه، زندگاني: ژوند .

**خلاصه**: دا چي په سخاوت سره اصلي خوشحالي تر لاسه كيږي، د كرم او سخاوت كوونكي خپل زړه هم خوشحاله كيږي او نور خلك هم ور ځخه خوشحاله وي، په كوم انسان كي چي د كرم او سخاوت صفت نه وي هغه د ژوند د گټي ځخه بې برخي وي .

| دل عالمي از كرم تازه دار | جهان را زبخشش پر آوازه دار |
|---|---|
| د ټولي نړۍ زړه په كرم سره خوشحاله كړه | دنيا په وركړي مشهوره كړه |

**مشكل الفاظ**: عالمي: ټوله نړۍ، تازه: خوشحاله، دار: وساته، پرآوازه: مشهور.

**خلاصه**: دا چي په وركړي او سخاوت سره ټوله دنيا خوشحاله كړه او دومره زيات سخاوت وكړه چي په دنيا كي هري خوا ته ستا نوم وي .

| همه وقت شو درکرم مستقیم | که هست آفریننده جان کریم |
|---|---|
| همېشه په کرم کې ثابت قدمه اوسه | ځکه د ځان پيدا کوونکى کريم دى |

**مشکل الفاظ**: همه وقت: همېشه، شو: سه، مستقيم: ثابت قدمه، آفريننده جان: پيدا کونکى
**خلاصه**: دا چي کرم د الله ﷻ صفت دى، ځکه نو په دغه صفت کي ټينګوالى او ثابت قدمي اختيار کړه.

# در صفت سخاوت

د سخاوت په صفت کي.

| سخاوت کند نیک بخت اختیار | که مرد از سخاوت شد بختیار |
|---|---|
| سخاوت کوي نېکمرغه انسان | ځکه انسان په سخاوت سره نېکمرغه کيږي |

**مشکل الفاظ**: کند: کوي، اختيار: خوښول، بختيار: نېکمرغه.
**خلاصه**: دا چي نېکمرغه انسان ددې لپاره سخاوت کوي چي بخت او نصيب تر لاسه کړي.

| به لطف وسخاوت جهانگیر باش | در اقلیم لطف وسخامیر باش |
|---|---|
| په مهربانۍ او سخاوت سره نړيوال سه | د مهربانۍ او سخاوت په دنيا کي سردار سه |

**مشکل الفاظ**: به: په، لطف: نرمي، مهرباني، جهانگير: د دنيا نيونکى، اقليم: هيواد، ولايت، مير: مشر، سردار.
**خلاصه**: دا چي په لطف او سخاوت سره خلک مسخر کيږي او خلک سخي سړى خپل مشر او سردار ګرځوي.

| سخاوت بود کار صاحبدلان | سخـــاوت بود پیشه مقبلان |
|---|---|
| سخاوت د زړه لرونکو خلګو کار دى | سخاوت د نېکمرغو خلګو هنر دى |

**مشکل الفاظ**: صاحبدلان: زړه لرونکي، پيشه: هنر، کسب، مقبلان: نېکمرغه.

**خلاصه:** دا چې بزرگان او نېک خلک سخاوت کول خپله نېکمرغي گڼي .

| سخاوت مس عیب را کیمیاست | سخاوت همه درد هارا دواست |
|---|---|
| سخاوت د عیب د مسو لپاره کیمیا ده | سخاوت د ټولو دردونو دواده |

**مشکل الفاظ:** مس عیب: یعني هغه عیب چې د مسو په دول وي، کیمیا: يو علم چې د مسو، سپینو زرو او سرو زرو د جوړولو بیان پکښې دي .

**خلاصه:** دا چې په سخاوت کولو سره د انسان عیبونه پټېږي بلکه عیبونه يې هنر او کمال معلومېږي لکه چې په کیمیا سره د مسو او نورو شیانو عیبونه پټېږي بلکه سره زر ور څخه جوړېږي ، همدارنگه په سخاوت سره د دنیا او آخرت ټول دردونه او غمونه لیري کېږي لکه چې په حدیث شریف کې دي: الصدقة ترد البلاء، صدقه کول غمونه له منځه وړي .

| مشو تاتوان از سخاوت بري | که گوئي بهي ازسخاوت بري |
|---|---|
| د سخاوت څخه تر خپله وسه مه بېزاره کېږه | ځکه د ښېگڼي گین د سخاوت په وجه یوسه |

**مشکل الفاظ:** مشو: مه کېږه، تا: تر څو چې، توان: قدرت، تاتوان: تر خپله وسه، بري: بېزار، گوئي: گین، بري: ته یوسه .

**خلاصه:** دا چې باید تر خپله وسه سخاوت نه پرېښودل سي ځکه د سخاوت په وجه پر نورو پرمختک تر لاسه کیدای سي .

# در مذمت بخيل

د بخيل په بدۍ کي.

مذمت: بدي، بخيل: هغه څوک چي د بخل صفت ولري، د کوم شي مصرف کول چي شرعا يا اخلاقًا جائز وي په هغه کي تنګي کولو ته بخل وايي، د دې علاج دادی چي د مال مينه د زړه څخه وايستل سي په دا سي توګه چي مرګ دېر ياد کړل سي، د اوږده وخت لپاره فلانونه جوړ نه سي.

| ور اقبـــال باشد غلام بخيل | اگر چرخ گـــردد بکام بخيل |
|---|---|
| او که بخت د بخيل غلام سي | که چيري آسمان وګرځي د بخيل د مقصد موافق |

**مشکل الفاظ:** اگر: که چيري، چرخ: آسمان، گردد: وګرځي، کام: مقصد.

**خلاصه:** خلاصه يې په راتلونکي شعرو کي وګورئ.

| وگرتابعش ربع مسکون بـــود | وگر در کفش گنج قارون بود |
|---|---|
| او که د هغه تابع ټوله دنيا سي | او که د هغه په لاس کي د قارون خزانه وي |

**مشکل الفاظ:** کف: ورغوی يعني لاس، گنج: خزانه، قارون: يو مشهور شتمن سړی چي د حضرت موسی عليه السلام په زمانه کي وو، د زکوة نه ورکولو او د حضرت موسی عليه السلام د بي ادبۍ په وجه د خپلي خزانې سره په مځکه دننه سو، ربع: څلورمه برخه. د څلورمي برخي څخه مراد ټوله دنيا ده.

| وگر روزگارش کند چـــاکري | نيرزد بخيل آنکه نامش بري |
|---|---|
| که څه هم زمانه د هغه مزدوري کوي | دې ورنه دی بخيل چي ته د هغه نوم واخلې |

**مشکل الفاظ:** نيرزد: ورنه دی، نامش: د هغه نوم، بري: ته واخلې، چاکري: مزدوري.

**خلاصه:** د تېرو درو شعرونو خلاصه داده چي که څه هم بخيل په ذکر سوو صفتونو موصوف وي آسمان د الله ﷻ په حکم د هغه د هر مقصد لپاره ګرځي، بخت د هغه غلامي وکړي، د قارون خزانه د هغه په واک کي وي، ټوله نړۍ د هغه تابع وي، ټول خلګ د هغه په مزدورۍ اخته وي

مگر يا هم بخيل ددې ورنه دی چې د هغه نوم دې پر ژبه راوړل سي.

| مکن التفاتي بمال بـــخيل | مبر نام مال ومنـال بــــخيل |
|---|---|
| د بخيل مال ته هيڅ توجه مه کوه | د بخيل د مال او سامان نوم مه اخله |

**مشکل الفاظ**: مکن: مه کوه، التفاتي: کتنه، توجه، بمال: مال ته، مبر: مه وړه، منال: جائيداد او سامان.

**خلاصه**: دا چې بايد د بخيل مال او سامان ته ونه کتل سي او د هغه يادونه ونه کړل سي.

| بخيل اربود زاهد بحر و بر | بهشتي نباشد بحـــکم خبر |
|---|---|
| که څه هم بخيل د لندې او وچې زاهد وي | جنت به تر لاسه نه کړي د حديث په حکم سره |

**مشکل الفاظ**: ار: که څه هم، زاهد: پرهيزگار، بحر: سيند، بر: وچه، بهشتي: جنتي، نباشد: نه به سي، بحکم: په حکم، خبر: د نبي کريم ﷺ حديث.

**خلاصه**: دا چې بخيل که څه هم لوی پرهيزگار وي مگر د بخل په وجه به جنت ته ولاړ نه سي لکه چې په حديث شريف کې راغلي دي لايدخل الجنة خب ولابخيل ولامنان، چمباز، بخيل او احسان اچونکي به جنت ته ولاړ نه سي، يعني تر څو چې دد غو گناهو سزا تر لاسه نه کړي تر هغه وخته به جنت ته ولاړ نه سي، هو که چيري الله ﷻ فضل او کرم ورباندي وکړي او يا په شفاعت سره د هغه بخښنه وسي نو دا بيله خبره ده.

| بخيل ارچه باشد توانگر بمال | بخواري چو مفلس خورد گوشمال |
|---|---|
| بخيل که څه هم شتمن وي د مال په وجه | د ذلت په وجه د مسکين غوندي تکليفونه وړي |

**مشکل الفاظ**: ارچه: که څه هم، باشد: وي، توانگر: توانا، شتمن، بمال: د مال په وجه، بخواري: د ذلت او سترپا په وجه، خورد: خوري، گوشمال: غوږونه موښل، گوشمال خوردن: تکليفونه وړل.

**خلاصه**: دا چې بخيل سړی که څه هم په ښکاره شتمن او توانا وي مگر د اړتيا په وخت کې مال نه مصرفوي نو د مسکين په دول تکليفونه وړي او ذلت زغمي.

| سخيان زاموال برمي خورند | بخيلان غم سيم وزر مي خورند |
|---|---|
| سخيان د مالونو څخه ميوه خوري | بخيلان د سرو او سپينو زرو غم خوري |

**مشکل الفاظ**: سخيان: جمع د سخي، اموال: جمع د مال، بر: ميوه، گټه، مي خورند: خوري،

**خلاصه**: دا چي سخيان خلک د مال په مصرفولو سره د دنيا او آخرت گټي تر لاسه کوي مگر بخيلان خلک هر وخت د مال جمع کولو په فکر کي وي.

# در صفت تواضع

## د خاکسارۍ په صفت کي.

تواضع: عاجزي کول، په قرآن کريم او حديثونو کي د تواضع ډېر زيات فضائل راغلي دي، په يو حديث کي دي چي: من تواضع لله رفعه الله، چا چي د الله ﷻ لپاره عاجزي اختيار کړه نو الله ﷻ به ئې ډېر مرتبه لوړه کړي او داسي نور...

| دلاگر تواضع کني اختيار | شود خلق دنيا ترادوستدار |
|---|---|
| اې زړه! که چيري عاجزي اختيار کړې | نو د دنيا خلک به ستا دوستان سي |

**مشکل الفاظ**: دلا: اې زړه، گر: که چيري، کني: وکړې، اختيار: خوښول، خلق: مخلوق، دوستدار: دوست لرونکی.

**خلاصه**: دا چي د عاجزي کوونکي سړي سره ټول خلک مينه او دوستي کوي.

| تواضع زيادت کند جاه را | که از مهر پر تو بود ماه را |
|---|---|
| عاجزي زياتوي مرتبه | لکه چي د لمر څخه سپوږمۍ ته رڼا تر لاسه کيږي |

**مشکل الفاظ**: زيادت: زياتوب، کند: کوي، جاه: مرتبه، مهر: لمر، پرتو: رڼا، ماه: سپوږمۍ

**خلاصه**: دا چي په عاجزي کولو سره په مرتبې کي زياتوب راځي لکه چي مشهور دي: نور القمر مستفاد من نور الشمس، د سپوږمۍ رڼا د لمر د نور څخه اخيستل سوې ده.

| تواضع بود مایـــه دوستي | که عالي بود پایـــه دوستي |
|---|---|
| توضع د دوستۍ خزانه ده | او لوړه د د دوستۍ مرتبه |

**مشکل الفاظ:** مایه: خزانه، عالي: لوړ.

**خلاصه:** دا چې په عاجزي کولو سره دوستان پیدا کیږي او که مخکې دوستان ولري نو په عاجزي کولو سره د دوستۍ مرتبه لوړیږي، یا دا مطلب دی چې دوستي خپله یو لوی شی دی ځکه نو باید په عاجزي کولو سره دوستان پیدا کړل سي.

| تواضع کند مرد را ســـــرفراز | تواضع بود سروران را طراز |
|---|---|
| عاجزي انسان سرلوړی کوي | عاجزي د سردارانو لپاره ښکلا وي |

**مشکل الفاظ:** سرفراز: سرلوړي، سروران: سرداران، طراز: ښکلا.

**خلاصه:** دا چې عاجزي کول د عامو خلکو لپاره د سرلوړۍ او ښکلا سبب دی.

| تواضع کند هر که هست آدمي | نه زیبد زمردم بخبرمردمي |
|---|---|
| عاجزي اختیاروي هر څوک چې سړی وي | نه ښایي د انسان لپاره ماسیوا د انسانیت څخه |

**مشکل الفاظ:** نه زیبد: نه ښایي، مردم: خلک، انسانان، بجز: ماسیوا.

**خلاصه:** دا چې کامل انسان عاجزي کوي ځکه د انسان لپاره بیله عاجزۍ بل هیڅ نسته.

| تواضع کند هوشمند گزین | نهد شاخ پرمیوه سربرزمین |
|---|---|
| عاجزي هوښیار او مقبول سړی غوره کوي | د میوې څخه ډک ښاخ سر پر مځکه ایږدي |

**مشکل الفاظ:** هوشمند: هوښیار، گزین: مقبول، خوښ، شاخ: ښاخ، پرمیوه: د میوې ډک.

**خلاصه:** څرنګه چې د میوې څخه ډک ښاخ مځکې ته کوږ وي تر څو خلک د هغه میوه په اساني تر لاسه کړي، همدا رنګه هوښیار سړی عاجزي کوي تر څو خلک د هغه څخه په اساني سره ګټه تر لاسه کړي.

| تواضع بود حرمت افزائي تـو | کند در بهشت برین جائي تو |
|---|---|
| عاجزي ستا د عزت زیاتونکې ده | په لوړ جنت کې به ستا ځای جوړ کړي |

**مشكل الفاظ:** حرمت افزا: عزت زياتونكي، حرمت: عزت، جائي تو: ستا ځاى، بهشت: جنت.

**خلاصه:** په عاجزي كولو سره عزت زياتيږي او په جنت كي لوړي درجي تر لاسه كيږي.

| سرافرازي وجاه را زينت است | تواضع كليد در جنت است |
|---|---|
| د سرلوړى او مرتبي لپاره ښكلا ده | عاجزي د جنت د دروازي كيلي ده |

**مشكل الفاظ:** كليد: كيلي، در: دروازه، سرافرازي: سرلوړي، جاه: مرتبه، زينت: ښكلا.

**خلاصه:** عاجزي كول جنت ته د تلو سبب او د سرداري ښكلا ده، دغه مضمون مخكي هم راوړل سوى دى دلته يوازي د عبارت سمولو لپاره تكرار سوى دى.

| زجاه وجلالش تمتع بـــود | كسي را كه عادت تواضع بود |
|---|---|
| په مرتبه او بزرگى به گټه تر لاسه كړي | د چا چي د عاجزى عادت وي |

**مشكل الفاظ:** جاه: مرتبه، جلال: بزرگي، تمتع: گټه تر لاسه كول.

**خلاصه:** عاجزي كوونكى سړى د مرتبي څخه گټه تر لاسه كوي او لويي كوونكى انسان لكه فرعون، نمرود او داسي نور د الله ﷻ د احكامو څخه د سركښى په وجه په سخت عذاب اخته كيږي، د اخروي تل پاتي گټي څخه بې برخي كيږي.

| گرامي شوي پيش دلهاچوجان | تواضع عزيزت كند درجهان |
|---|---|
| ته به گران سي زړو ته د ځان په دول | عاجزي كول به تا په دنيا كي عزيز كړي |

**مشكل الفاظ:** عزيز: عزت لرونكى، گرامي: گران، شوي: ته به سي، چو: لكه، جان: ځان.

**خلاصه:** انسان د عاجزى په وجه د خلگو په زړو كي ځاى نيسي، خلگ د هغه درناوى كوي او بزرگ يې گڼي.

| كه گردن ازان بركشي همچو تيغ | تواضع مدار از خلائق دريغ |
|---|---|
| ځكه ته به د هغې په وجه غاړه لوړوي لكه توره | عاجزي مه سپمـــــــوه د خلگو څخه |

**مشكل الفاظ:** مدار: مه لره، خلائق: مخلوق، دريغ: سپمول، منع كول، بركشي: لوړول،

همچو: لکه، تیغ: توره.

**خلاصه**: دا چې توره د مېراني په وجه د خلکو غاړه لوروي همدارنګه په عاجزي کولو سره هم غاړه لوړېږي او عزت تر لاسه کېږي.

| کسي را که گردن کشي در سراست | تواضع از ویافتن خوشتر است |
|---|---|
| د چا په خیال کې چې لويي وي | د هغه لپاره په ځان کې عاجزي پیدا کول ډېر ښه دي |

**مشکل الفاظ**: گردن کشي: لويي، سرکښي، یافتن: تر لاسه کول، خوشتر: ډېر ښه.

**خلاصه**: د مشر او امیر عاجزي اختیارول ډېر ښه صفت دی، د ناوسه او عاجز سړي تواضع اختیارول خاص کمال نه دی ځکه هغه د خپل عجز او بې وسۍ په وجه عاجزي کوي.

| تواضع زگردن فرازان نکوست | گداگر تواضع کند خوئي اوست |
|---|---|
| عاجزي کول د سرلورو خلکو لپاره ښه ده | فقیر که عاجزي وکړي نو دا د هغه عادت دی |

**مشکل الفاظ**: گردن فرازان: لوی خلک، نکو: غوره، گر: که چیري، خوی: عادت.

**خلاصه**: د شتمنو او رتبه لرونکو خلکو لپاره عاجزي کول ډېر ښه دي، فقیر که عاجزي وکړي نو خاص کمال نه دی بلکه د هغه قدرتي عادت دی.

# در مذمت تکبر

د لويي کولو د بدۍ په بیان کې.

د تکبر (لويي کولو) حقیقت دا دی چې خپل ځان تر نورو زیات وګڼي، علاج یې دا دی چې د الله ﷻ د عظمت او لويي تصور وکړي، په دا سې کولو سره به خپل کمالات هیڅ او سپک وګڼي.

| تکبر مکن زینهار اي پسر | که روزي زدستش درآئي بسر |
|---|---|
| هیڅکله لويي مه کوه اې هلکه | یوه ورځ به د دې په وجه پر سر ولوېږې |

**مشکل الفاظ**: مکن: مه کوه، زینهار: هیڅکله نه، پسر: هلک، روزي: یوه ورځ، درآئي بسر: پر سر به ولوېږې، دست: لاس دلته مراد سبب دی.

**خلاصه:** باید هیڅکله لویي ونه کړل سي کنه نو یوه ورځ به د لویي په وجه ذلت او خواري په برخه سي.

| تکبر زدانا بود نا پسند | غریب آید این معنی از هوشمند |
| --- | --- |
| لویي کول عالم لره ناخوښه کار دی | دا ډیر کم پېښیږي د هوښیار څخه |

**مشکل الفاظ:** دانا: هوښیار، عالم، ناپسند: ناخوښه، غریب: نادر، هوشمند: هوښیار.

**خلاصه:** د عالمانو لپاره لویي کول ډیر بد کار دی، په هوښیارو خلګو کي لویي کول ډیر کم وي، یا دا مطلب چي په هوښیارانو خلګو کي لویي کول نادر او حیرانونکي وي چي د هوښیار توب سربیره د بې عقلی کار کوي.

| تکبر بود عادت جاهلان | تکبر نیاید زصاحبدلان |
| --- | --- |
| لویي کول د ناپوهانو عادت دی | لویي نه کیږي د هوښیارانو څخه |

**مشکل الفاظ:** جاهلان: ناپوهان، صاحبدلان: هوښیاران.

| تکبر عز ازیل را خوار کرد | به زندان لعنت گرفتار کرد |
| --- | --- |
| لویي شیطان ذلیل کړی | د لعنت په بندیخانه کي یې بندي کړی |

**مشکل الفاظ:** عزازیل: د شیطان نوم، زندان: بندیخانه، لعنت: د الله ﷻ د رحمت څخه لیري والی، گرفتار: بندي، نیول سوی.

**خلاصه:** ابلیس ډیر لوي بزرګ وو مګر آدم علیه السلام ته د سجدې کولو په اړه یې لویي او انکار وکړی نو د تل لعنت په بندیخانه کي بندي سو او په دوږخ کي سو، لکه چي په قرآن کریم کي په تفصیل سره راغلي دي:

۱: قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلاَّ تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ قَالَ أَنَاْ خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ. پ۸

۲: أَبَى وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ. پ ۱

۳: قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ وَإِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ إِلَى يَوْمِ الدِّينِ. پ ۱۴

| کسي را که خصلت تکبر بود | سرش پر غرور از تصور بود |
|---|---|
| د چا چي د لویي کولو عادت وي | د هغه سر د غرور څخه ډک او فاسد خیال وي |

**مشکل الفاظ**: غرور: لویي، تصور: خیال.

**خلاصه**: د لویي کوونکي انسان سر ټل د پالتو خیالونو او غرور څخه ډک وي.

| تکبر بود مایه مـــــد بري | تکبر بود اصل بد گوهـري |
|---|---|
| لویي د بدبختی خزانه ده | لویي کول د بداصلی بنیاد دی |

**مشکل الفاظ**: مدبري: بدبختي، اصل: بنیاد، بدگوهري: بدذاتي، بداصلي.

**خلاصه**: لویي کول انسان بدبختی او فاسدوالي ته بیایي.

| چوداني تکبر چرا میـــــکني | خطا میکني وخطا میکني |
|---|---|
| کله چي پوهیږي نو تکبر ولي کوي | ته خطا کوي او خطا کوي |

**مشکل الفاظ**: داني: پوهیږي، چرا: ولي، میکني: کوي.

**خلاصه**: ته د لویي کولو په بدی او خرابی خبریږي نو بیا ولې دا سخته غلطي کوې.

# در فضیلت علم

## د علم د ښيګني په بيان کي

د علم څخه مراد ديني علم دی چي په هغه سره د الله ﷻ پېژندنه، د بندګانو د حقونو پېژندنه او د دواړو جهانونو سعادت تر لاسه کيږي، د ديني علم څخه ماسيوا د عمل سمول ناممکن دي، او بيا په علم کي هغه علم معتبر دی چي د الله ﷻ بهره پيدا کړي، کنه نو د بيري څخه خالي علم د ځان د هلاکت سبب وي.

| بني آدم از علم يابد كـــمال | نه از جشمت وجاه ومال ومنال |
|---|---|
| د آدم ﷺ اولاد په علم کمال تر لاسه کوي | نه په دبدبه، مرتبه، مال او اسبابو سره |

**مشكل الفاظ**: بني آدم: د آدم عليه السلام اولاد، يعني انسان، يابد: ترلاسه کوي، حشمت: دبدبه، شان، منال: سامان.

**خلاصه**: انساني کمال په ديني علم تر لاسه کيږي نه په دبدبه مال او نورو شيانو، بلکه په هغو سره زيات وختونه د کمال پر ځای غرور پيدا کيږي ځکه انسان بايد په علم کي هڅه وکړي.

| چوشمع از پيءِ علم بايد گداخت | که بي علم نتوان خدا را شناخت |
|---|---|
| د شمع په ډول بايد د علم لپاره ويلي سي | ځکه بيله علمه الله ﷻ نه پيژندل کيږي |

**مشكل الفاظ**: ازپيءِ: لپاره، گداخت: ويلي کېدل، نتوان: نه سي کولای، شناخت: پېژندنه.

**خلاصه**: بايد د علم په تر لاسه کولو کي د شمع په ډول ځان ويلي کړو يعني کوښښ وکړل سي، ځکه د الله ﷻ پېژندنه بيله علم څخه تر لاسه کېدای نه سي.

| خردمند باشد طلب گاڔ علم | که گرم ست پيوست بازار علم |
|---|---|
| هوښيار وي د علم ترلاسه کوونکی | ځکه د علم بازار همېشه تود وي |

**مشكل الفاظ**: خردمند: هوښيار، عقلمند، طلبگار: غوښتونکی، تر لاسه کوونکی، گرم: تود، پيوسته: يو ځای سوی.

**خلاصه:** د علم تر لاسه کول د هوښيار سړي کار دی ، د علم ميدان تل ځلانده او تود وي، د علم په خزانو کي هيڅ کمښت نه راځي بلکه په مصرفولو سره زياتيږي .

| کسي را که شد در ازل بختيار | طلب کردن علم کرد اختيار |
| --- | --- |
| څوک چي د ازل څخه خوشبخته وي | د علم تر لاسه کول اختيار کړي |

**مشکل الفاظ:** ازل: د تل څخه، بختيار: بختور .

**خلاصه:** څوک چي د ازل څخه نېکمرغه وي نو هغه علم تر لاسه کوي .

| طلب کردن علم شد بر تو فرض | دگر واجب است از پيش قطع ارض |
| --- | --- |
| د علم تر لاسه کول پر تا فرض دي | او واجب دي د هغه لپاره مخکه پري کول |

**مشکل الفاظ:** ازپيش: د هغه لپاره، ازپی: لپاره، ارض: مځکه، قطع ارض: يعني سفر کول .

**خلاصه:** پر هر مکلف انسان باندي د ضرورت په اندازه علم تر لاسه کول فرض دي او که چيري بيله سفر کولو علم نه تر لاسه کيږي د مثال په توګه په شاوخوا سيمو کي عالم نه وي نو بيا د علم تر لاسه کولو لپاره سفر اختيارول هم ضروري دي .

| برو دامن علم گير استوار | که علمت رساند بدار القرار |
| --- | --- |
| ولاړ سه او د علم لمن ټينګه ونيسه | ځکه عم به تا ورسوي جنت ته |

**مشکل الفاظ:** برو: ولاړ سه، دامن: لمن، گير: ونيسه، استوار: ټينګ، محکم، رساند: رسوي، دار: کور، قرار: ډاډ، دارالقرار: جنت.

| مياموز جز علم گر عاقـــلي | که بي علم بودن بود غافلي |
| --- | --- |
| مه زده کوه ماسيوا د علم څخه که هوښيار يې | ځکه بې علمه غافل وي |

**مشکل الفاظ:** مياموز: مه زده کوه، جزعلم: ماسيوا د علم څخه .

**خلاصه:** يعني اې انسانه! که چيري ته هوښيار يې نو د ديني علم څخه ماسيوا بل هيڅ داسي شی مه زده کوه کوم چي تا د علم څخه وباسي، ځکه بې علمه کېدل د الله ﷻ د ياداو احکامو

څخه غفلت راولي، د الله ﷻ د ياد څخه غفلت او د احکامو بې پرواهي د هلاکت سبب دی.

| ترا علم در دین ودنیا تمام | که کار تو از علم گیرد نظام |
|---|---|
| ستا لپاره علم په دين او دنيا کي کافي دی | ځکه ستا هر کار د علم په سبب سميږي |

**مشکل الفاظ:** ترا: ستا، تمام: ټول، نظام: سمون، گیرد: تر لاسه کوي.

**خلاصه:** په دين او دنيا کي ديني علم کافي دی، په علم سره د دواړو جهانو مشکلات حل کيږي او ټول کارونه سرته رسيږي.

## در امتناع از صحبت جاهلان

د جاهلانو د ملگرتيا څخه د منع په بيان کي.

| دلا گر خردمندي وهوشيار | مکن صحبت جاهلان اختيار |
|---|---|
| اې زړه! که هوښيار او عقلمند يې | مه اختياروه د جاهلانو ملگرتيا |

**مشکل الفاظ:** دلا: اې زړه، خردمندي: عقلمند، صحبت: ملگرتيا.

**خلاصه:** مصنف رحمه الله خپل زړه ته په ويلو سره وايي چي: که چيري ته عقلمند او هوښيار يې نو د ناپوهانو ملگرتيا مه کوه.

| زجاهل گریزنده چوتیرباش | نیامیخته چو شکر شیرباش |
|---|---|
| د جاهل څخه په تېښته کي د غشي غوندي سه | مه گډيږه لکه بوره د شېدو سره |

**مشکل الفاظ:** گريزنده: تېښته کوونکی، چو: لکه، تير: غشی، باش: سه، نياميخته: جلا، شکر: بوره، شير: شېدي.

**خلاصه:** لکه څرنگه چي غشی د ليندۍ څخه ليري ځي بايد د جاهل څخه دومره ليري سي او بايد د بورې او شېدو غوندي يو ځای ورسره نه سي.

| ازان به که جاهل بود غمگسار | ترا اژدها گربود یـــار غار |
| --- | --- |
| غوره ده تر دې چې جاهل دې غمخوار وي | که څه هم مار ستا ملګری وي |

**مشکل الفاظ**: ترا: ستا، اژدها: لوی مار، یار غار: ملګری دغار، غمگسار: غمخوار.

**خلاصه**: د جاهل سړي ملګرتیا د مار تر ملګرتیا ډېره تاواني ده ځکه د مار په وهلو سړه دنیوي ژوند خرابیږي مګر جاهل پر دنیوي تاوان سربېره د آخرت تاوان هم رسوي.

| به از دوستداري که جاهل بود | اگر خصم جان تو عاقل بـــود |
| --- | --- |
| غوره ده تر دې چې ستا دوست جاهل وي | که چیري ستا د ځان دښمن هوښیار وي |

**مشکل الفاظ**: خصم: دښمن، دوستداري: ملګرتیا.

**خلاصه**: تر جاهل دوست هوښیار دښمن ښه دی، وجه یې څرګنده ده چې دښمن یوازې د ځان تاوان رسوي مګر جاهل دوست د کفر او په ګناهونو کې د اخته کېدو سبب کیږي.

| که نادان ترازجاهلي کارنیست | چو جاهل کسي در جهان خوارنیست |
| --- | --- |
| او هیڅوک تر جاهل تاواني نسته | د جاهل غوندې هیڅوک په دنیا کې ذلیل نسته |

**مشکل الفاظ**: نادان تر: ډېر ناپوه، جاهلي: ناپوهي.

**خلاصه**: جاهل په دنیا کې تر ټولو زیات خوار او ذلیل وي، او د جاهلیت کار کوونکی تر ټولو زیات ناپوه او بې عقل وي.

| وزو نشنود کس جز اقوال بد | زجاهل نیاید جز افعال بد |
| --- | --- |
| او د هغه څخه نه اورېدل کیږي ماسیوا د بدو خبرو څخه | جاهل نه کوي ماسیوا د بدو کارونو څخه |

**مشکل الفاظ**: نیاید: نه کیږي، افعال: کارونه، نشنود: نه اورېدل کیږي، اقوال: خبرې.

**خلاصه**: جاهل یوازې بد کارونه او بدې خبرې کوي.

| که جاهل نکو عاقبت کم بود | سرانجام جاهل جهنم بـــود |
| --- | --- |
| ځکه جاهل ډېر کم ښه انجامه وي | د جاهل انجام دوزخ دی |

**مشکل الفاظ**: سرانجام: پای، جهنم: دوږخ، نکو عاقبت: ښه انجام.

**خلاصه**: په عامه توګه د جاهل انجام دوږخ دی ځکه د جاهلانو اکثره خاتمه بده وي.

| سرجاهلان بر سردار بـــه | که جاهل بخواري گرفتار به |
|---|---|
| د جاهلانو سر په دار کي غوره دی | او جاهل په ذلت اخته ښه دی. |

**مشکل الفاظ**: سرجاهلان: د جاهلانو سر، گرفتار: نیول سوی.

**خلاصه**: دلته د جاهل څخه کافر مراد دی چي د الله ﷻ پر معرفت او پر هغه ایمان نه لري، د هغه په اړه ښېرا کوي چي د کافر په دار کېدل او ذلت تر لاسه کول غوره دي تر څو نور عبرت تر لاس کړي.

| زجاهل حذرکردنِ اولی بـود | کزوننگ دنیا وعـــقبی بود |
|---|---|
| د جاهل څخه بېره کول غوره دي | ځکه د هغه څخه د دنیا او اخرت تاوان رسیږي |

**مشکل الفاظ**: حذر کردن: بېره کول، اولی: غوره، ننگ: عیب، شرم، عقبی: آخرت.

**خلاصه**: باید د جاهل د ملګرتیا څخه ځان وساتي سي ځکه د هغه د ملګرتیا په وجه د دنیا او آخرت شرمندګي او تاوان رسیږي.

# در صفت عدل

د عدل او انصاف په صفت کي.

| چو ایزد ترا این همه کام داد | چرا بر نیازي سرانجـــام داد |
|---|---|
| کله چي الله ﷻ تا ته دغه ټول کارونه درکړل | ته یې ولي نه پوره کوې په انصاف سره |

**مشکل الفاظ**: چو: کله چي، ایزد: الله ﷻ، کام: مقصد، داد: ورکړه، بر نیاري: نه پوره کوي، داد: انصاف.

**خلاصه**: دا چي الله ﷻ تا ته هر څه درکړي دي نو ته باید د عدل او انصاف څخه کار واخلې.

| چرا عدل را دل نداري قوي | چو عدل است پیرایه خسروي |
|---|---|
| ولي د انصاف لپاره زړه نه ټینګوې | عدل د پاچاهۍ سبب دی |

**مشکل الفاظ**: پیرایه: ښکلا، سبب، خسروي: پاچاهي. دل: زړه.

**خلاصه**: عدل او انصاف د پاچاهي ښکلا ده ځکه نو باید انصاف وکړل سي او په هیڅ حال کي دغه نعمت د لاس څخه و نه ایستل سي.

| اگر معدلت دستیاري کند | ترا مملکت پائــــداري کند |
|---|---|
| که چیري انصاف ستا لاس نیوی وکړي | ستا پاچاهي به ټینګښت تر لاسه کړي |

**مشکل الفاظ**: ترا: ستا، پائداري: ټینګښت، معدلت: انصاف. دستیاري: مرسته.

**خلاصه**: که چیرې انصاف ستا مرسته وکړي یعني ته عدل او انصاف وکړې نو ستا پاچاهي به ټینګښت ومومي، ځکه عدل د حکومت د تل پاته کېدو لپاره قوي سبب دی.

| کنون نام نیک است ازویادگار | چو نوشیروان عدل کرد اختیار |
|---|---|
| تر اوسه د هغه نېک نوم یادګار دی | کله چي نوشیروان عدل اختیار کړ |

**مشکل الفاظ**: چو: کله چي، نوشیروان: د ایران یو عادل پاچا.

**خلاصه**: د عدل او انصاف په وجه تر اوسه د نوشیروان نوم ژوندی دی حال دا چي د هغه د مرګ پیرۍ تیري سوي دي.

| که از عدل حاصل شود کام ملک | ز تاثیر عدل است آرام ملک |
|---|---|
| او په انصاف سره تر سره کیږي د پاچهی مقصد | د انصاف په وجه د پاچاهۍ آرام وي |

**مشکل الفاظ**: کام: مقصد، ملک: پاچاهي.

**خلاصه**: د عدل او انصاف دا خاصیت دی چي له کبله یې په هیواد کي امن او سکون راځي او عامو خلګو ته آرام تر لاسه کیږي، د حق خاوند ته خپل حق رسیږي او د شریرو کسانو د شر او فساد څخه خوندي کیږي..

| جهان را به انصـــاف آباد دار | دل اهل انصاف را شــاد دار |
| --- | --- |
| نړۍ په انصاف سره اباده کړه | د انصاف غوښتونکو زړونه خوشحاله کړه |

**مشکل الفاظ:** اهل انصاف: د انصاف وړ، شاد: خوشحاله.

**خلاصه:** بايد د انصاف نړۍ اباده وي ځکه په ظلم سره بربادي رامنځته کيږي، او همدارنګه بايد د مظلوم او اهل انصاف زړه خوشحاله کړل سي، د مظلوم ناراضه کول د الله ﷻ د ناراضګۍ سبب دی.

| جهان را به از عدل معمار نيست | که بالاتر از معدلت کار نيست |
| --- | --- |
| په دنيا کي تر عدل ماسيوا بل هيڅ ابادونکی نسته | او تر انصاف لوړ هيڅ کار نسته |

**مشکل الفاظ:** معمار: ابادونکی، بالاتر: تر ټولو لوړ، معدلت: انصاف کول.

**خلاصه:** د نړۍ د ابادولو تر ټولو لويه ذريعه انصاف او عدل دی، يوازي انصاف د سرلوړۍ او کاميابۍ ذريعه ده.

| ترا زين به آخر چه حاصل شود | که نامت شهنشاه عادل بود |
| --- | --- |
| ته به تر دي غوره نور څه تر لاسه کړي | چي ستا نوم عادل پاچا سي |

**مشکل الفاظ:** ترا: تا ته، زين: تر دې، حاصل: ګټه، شهنشاه: پاچا.

**خلاصه:** ماسيوا د نورو ګټو څخه د انصاف تر ټولو لويه ګټه داده چي ستا نېک نوم به پاته سي او په عادل پاچا به بلل کيږي.

| اگر خواهي از نيک بختي نشان | در ظلم بندي بر اهل جهان |
| --- | --- |
| که چيري غواړي د نېکمرغۍ نښه | د ظلم دروازه بنده کړه پر دنيا پاندي |

**مشکل الفاظ:** خواهي: غواړې، نشان: نښه، بندي: بند کړه.

**خلاصه:** که چيري نېکمرغي او خوشحالي غواړې نو په دنيا کي ظلم ختم کړه، مه خپله ظلم کوه او مه بل څوک ظلم کولو ته پرېږدي.

| رعایت دریغ از رعیت مدار | مراد دل داد خواهان بر آر |
| --- | --- |
| د اولس څخه انصاف مه سپموه | د انصاف غوښتونکو مراد پوره کړه |

**مشکل الفاظ:** رعایت: ساتنه، رعیت: اولس، مدار: مه کوه، برآر: پوره کړه.

**خلاصه:** باید د عامو خلکو لپاره د انصاف دروازه بنده نه کړل سي او باید د انصاف غوښتونکو مقصد پوره کړل سي.

# در مذمت ظلم

## د ظلم د بدی په بیان کي.

ظلم د شریعت د اصطلاح او قانون په لحاظ لوی جرم دی، په قرآن او حدیثونو کي د ظلم ډېره سخته بدي راغلې ده، باید د ظلم څخه ځان وساتل سي.

| خرابي زبیداد بیند جهـــان | چـــو بستان خرم زباد خزان |
| --- | --- |
| په ظلم سره به دنیا برباد ووینې | لکه تازه باغ د مني په باد سره |

**مشکل الفاظ:** خرابي: تباهي، بربادي، بیند: ویني، بستان خرم: تازه باغ، خزان: منی.

**خلاصه:** څرنګه چي د مني په سره هوا تازه او شین باغ خرابیږي همدارنګه په ظلم سره هیوادونه هم بربادیږي، ځکه نو باید د ظلم څخه په هر حال کي ځان وساتل سي.

| مده رخصت ظلم در هیچ حال | که خورشید ملکت نیابد زوال |
| --- | --- |
| مه ورکوه د ظلم اجازه په هیڅ حالت کي | تر څو ستا د هیواد لمر زوال ونه کړي |

**مشکل الفاظ:** مده: مه ورکوه، رخصت: اجازه، خورشید: لمر، زوال: ختمېدل.

**خلاصه:** باید په هیڅ حال کي د ظلم اجازه ورنه کړل سي که څه هم د غصې حالت وي یا دښمني وي کنه نو د هیواد حالت به خراب سي بلکه د ظلم په نتیجه کي اولس سرکښني کوي او حکومت له منځه وړي.

| كسي كاتش ظلم زد درجهان | بر آورد از اهل عالم فـــغان |
|---|---|
| چا چي د ظلم اور بل كړ په نړۍ كي | وه يې ايستى د نړيوالو څخه فرياد |

**مشكل الفاظ:** كسي: چا چي، آتش: اور، برآورد: لوړيې كړي، فغان: فرياد. اهل عالم: نړيوال

**خلاصه:** د ظلم په وجه خلک د الله ﷻ په دربار كي فرياد كوي چي نتيجه يې د ظالم په اره ښه نه وي.

| ستمكش گر آهي بر آرد زدل | زند سوز او شعله در آب وگل |
|---|---|
| كه چيري مظلوم يو آه د زړه څخه وباسي | سوځي د هغه د گرمي شغله او به او خاوره |

**مشكل الفاظ:** ستمكش: مظلوم، برآرد: وباسي، زن: وهي، سوز: گرمي، آب: اوبه، گل: خاوره

**خلاصه:** د مظلوم فرياد د وچي او لندې د هلاكت سبب گرځي ځكه نو بايد ځان ور څخه وساتل سي.

| مكن بر ضعيفان بيچاره زور | بينديش آخر زتنگي گـــور |
|---|---|
| مه كوه پر كمزورو او بې چاره كسانو زور | فكر وكړه د قبر د تنگۍ څخه |

**مشكل الفاظ:** مكن: مه كوه، ضعيفان: كمزوري خلک، بيچاره: بې كسه، بينديش: فكر وكړه، گور: قبر.

**خلاصه:** بايد پر كمزورو كسانو ظلم ونه كړل سي ځكه ظلم كول د قبر د عذاب او تنگۍ سبب دی ځكه نو بايد ځان ور څخه وساتل سي.

| به آزار مظلوم مائل مـــباش | زدود دل خلق غافل مـــباش |
|---|---|
| د مظلوم د آزار خواهش مه كوه | د مخلوق د زړه د آه څخه مه غافله كيږه |

**مشكل الفاظ:** آزار: تكليف، ضرر، مائل: خواهش لرونكى، مباش: مه كيږه، خلق: مخلوق.

**خلاصه:** بايد خلكو ته تكليف ور نه كړل سي او د مظلوم د آه څخه ځان وساتل سي، د مظلوم دعاء خامخا قبليږي او د هغه آه او فرياد اثر كوي.

| که ناگاه رسد بر تو قهر خدائي | مکن مردم آزاري اي تندرائي |
| --- | --- |
| چې ناڅاپه به راسې پر تا باندي د خدای ﷻ قهر | د خلګو ازارول مه کــــوه اې بې عقله |

**مشکل الفاظ**: مردم ازاري: خلګو ته تکلیف ورکول، تندرائي: بې عقل، تېز عقل، ناګه: ناڅاپه، رسید: ورسیږي. قهر: غضب.

**خلاصه**: ظلم کول په حقیقت کي د الله ﷻ قهر ته بلنه ورکول دي، ظالم سړی زیات وختونه د الله ﷻ په عذاب ناڅاپه اخته کیږي او د توبې وخت هم تر لاسه نه کړي.

| که ظالم بدوزخ رود بي سخن | ستم بر ضعیفان مسکین مکن |
| --- | --- |
| ځکه ظالم به دوږخ ته ځي بېله شکه | ظلم پر کمزورو او مسکینانو مه کوه |

**مشکل الفاظ**: ستم: ظلم: ضعیفان: کمزوري، مسکین: بېوزله، رود: ځي، بي سخن: بېله شکه، بېله څه ویلو.

**خلاصه**: پر مسکینانو او کمزورو خلګو باندي ظلم کوونکی به یقینا دوږخي وي په دې خبره کي د هیڅا اختلاف نسته.

# در صفت قناعت

## د قناعت په ستاینه کي.

هر څه چي په برخه وي پر هغه کفایت کول او د نور زیات حرص نه کولو ته قناعت وايي، قناعت کول انسان د ډېرو بدیو څخه ساتي کوم چي د حرص او طمع څخه پیدا کیږي، په حدیثونو کي د قناعت ډېر زیات فضائل راغلي دي.

| در اقلیم راحت کني سروري | دلا گر قناعت بـــدست آوري |
| --- | --- |
| نو د راحت په سیمه کي به خوشحالي کوې | اې زړه! که چیري قناعت خپل کړې |

**مشکل الفاظ**: دلا: اې زړه، بدست آوري: تر لاسه کړه، اقلیم: هیواد، سیمه، سروري: مشري

**خلاصه**: د قناعت په اختیارولو سره په دنیا کي د زړه داډ تر لاسه کیږي او د حرص د تکلیف

ځځه خوندي کيږي او همدارنګه د قناعت په وجه په آخرت کې د تل راحت ترلاسه کيږي.

| که پیش خردمند هیچ ست مال | اگر تنگدستي زسختي منال |
|---|---|
| ځکه د هوښيار سړي په نزد مال هيڅ نه دی | که چيري مفلس يې نو د سختۍ ځخه مه ژاړه |

**مشکل الفاظ:** تنگدست: مفلس، اړ، منال: مه ژاړه، خردمند: هوښيار.

**خلاصه:** که چيري ته په مفلسۍ او مسکينۍ اخته يې نو د خلکو په مخکې شکايت مه کوه ځکه د هوښيار سړي په نزد مال هيڅ هم نه دی، پر نه درلودو يې بايد صبر وسي.

| که باشد نبي را زفقر افتخار | ندارد خردمند از فقر عار |
|---|---|
| ځکه نبي ﷺ په بېوزلۍ فخر کاوه | نه کوي هوښيار سړی په بېوزلۍ شرم |

**مشکل الفاظ:** ندارد: نه لري، خردمند: هوښيار، عار: شرم، پيغور، افتخار: فخر.

**خلاصه:** هوښيار او عقلمند سړی په مفلسۍ او مسکينۍ نه شرميږي بلکه د الله ﷻ د بندګۍ او استغفار ذريعه يې ګڼي او په خوشحالي سره يې مني، ځکه خپله رسول الله ﷺ په خپل ژوند کې بېوزلي اختيار کړې وه.

**فائده:** بېوزلي پر دوه ډوله ده، ۱: اختياري، دا چې بنده يې په خپله خوښې اختيار کړي، مال او شتمني په لاس ورسي مګر د الله ﷻ په لاره کې يې مصرف کړي، د زړه په غناء برخمن وي، زړه يې د دنيا د مينې ځخه پاک وي، دغه بېوزلي د فخر وړ او ښه صفت دی.

۲: غيراختياري: کوم چې د اعمالو د خرابوالي په وجه مسلط سوی وي، هر وخت بې سکونه او خفه وي، دغه بېوزلي بده او د نفرت وړ ده، زيات وختونه د کمزوري ايمان خاوند کفرته اماده کوي، له همدې کبله په حديث شريف کې راغلي دي: کاد الفقر ان يکون کفرا، که يو ځوک په داسې فقر اخته وي نو هغه بايد استغفار او توبه وکړي.

| وليکن فقير اندرآسائش ست | غني را زر وسيم آرائش ست |
|---|---|
| مګر بېوزله سړی په باطن کې په ارامه دی | د شتمن لپاره سره او سپين زر ښکلا ده |

**مشکل الفاظ:** غني: شتمن، زر: سره زر، سيم: سپين زر، آرائش: ښکلا.

**خلاصه:** د شتمنو خلګو لپاره مال او زر ښکلا وي مګر هغه وخت د مال او زر په ترلاسه کولو کښې خفه او سرګردان وي او بیا د هغه د ساتنې په فکر کې وي، د حقیقي راحت او آرام څخه بې برخې وي، مګر بېوزله او مسکین سړی د باطني خوشحالۍ څخه ډک وي، نه د مال ترلاسه کولو فکر لري او نه یې د ساتنې په خفګان اخته وي.

| که سلطان نخواهد خراج از خراب | غني گرنباشي مکن اضطراب |
|---|---|
| ځکه پاچا د خرابې ملکي څخه محصول نه اخلي | که چیري ته شتمن نه یې نو بې تابي مه کوه |

**مشکل الفاظ:** گرنباشي: که چیري ته نه یې، مکن: مه کوه، اضطراب: بې قراري، خفګان، سلطان: پاچا، نخواهد: نه غواړي، خراج: محصول، خراب: خرابه ملکه.

**خلاصه:** انسان باید د مال نه درلودو په وجه خفه نه سي ځکه د مسکینۍ د ګټو څخه یوه ګټه دا هم ده چي پاچا د سمې ملکې محصول غواړي نه د خرابې ملکې، همدارنګه پر شتمنو خلګو د حکومت له خوا ډېر محصولونه او حقوق وي مګر مسکین سړی د دغه ټولو څخه خلاص وي.

| قناعت کند هر که نیک اخترست | قناعت بهر حال اولی ترست |
|---|---|
| قناعت اختیاروي هغه څوک چي نېکمرغه وي | قناعت په هر حال کي غوره دی |

**مشکل الفاظ:** بهر حال: په هر حال کي، اولی: غوره، نیک اختر: نېکمرغه.

**خلاصه:** قناعت په هر حال کي ښه او د نېکمرغۍ نښه ده.

| اگر داري ازنیک بختي نـشان | زنور قناعت بر افروز جَـــان |
|---|---|
| که چیري لرې د نېکمرغۍ څخه یوه نښه | د قناعت په نور خپل ځان ځلانده کړه |

**مشکل الفاظ:** زنور: د نور څخه، برافروز: ځلانده کړه، داري: لرې، نشان: نښه.

**خلاصه:** که چیري په تا کي د نېکمرغۍ ماده وي نو خپل ځان په قناعت منور کړه.

# در مذمت حرص

د حرص د بدۍ په بیان کي.

| شده مست ولایعقل از جام حرص | ایا مبتلا گشته در دام حرص |
|---|---|
| مست او بې عقل سوی یې د حرص د پیالې ځخه | اې نیول سوې د حرص په دام کي |

**مشکل الفاظ:** ایا: اې، مبتلا: اخته سوی، گشته: سوی، دام: جال، لایعقل: بې عقل،

| که هم نرخ گوهر نباشد سفال | مکن عمر ضائع به تحصیل مال |
|---|---|
| ځکه د ملغلرو غوندي بیه نه لري توکري | مه ضائع کوه عمر د مال په تر لاسه کولو کي |

**مشکل الفاظ:** مکن: مه کوه، تحصیل: تر لاسه کول، ضائع: بربادول، گوهر: ملغلره، هم نرخ: یوه بیه، نباشد: نه وي، سفال: توکري، د منگیانو یا نورو شیانو ماتي ټوټې.

**خلاصه:** ددواړو شعرونو خلاصه داده چي اې حریصه! دا چي ته د دنیا په تر لاسه کولو کي د لیوني غوندي منډي وهې، ددغه فاني دنیا په تر لاسه کولو کي خپل ارزښتناکه عمر مه ضائع کوه، د دنیا مال او سامان د توکرو په ډول دي، د مال په تر لاسه کولو کي ژوند تېرول لکه د ملغلرو او توکرو یوه بیه اېښودل دي چي هیڅکله برابر کیدای نه سي.

| دهـــد خرمن زندگاني بباد | هر آنکس که دربند حرص اوفتاد |
|---|---|
| هغه دژوند درمند بربادوي | هر څوک چي د حرص په جال کي ولویدی |

**مشکل الفاظ:** بند: جال، اوفتاد: ولویدی، خرمن: درمند، د غنمو، اوربشو یا نورو شیانو کوټه، بباد دهد: په هوا یې کړه.

**خلاصه:** په حرص کي اخته سړی د خپل ژوند درمند او ذخیره بربادوي.

| همه نعمت ربع مسکون تراست | گرفتم که اموال قارون تراست |
|---|---|
| د دنیا ټول نعمتونه ستا لپاره دي | ما فرض کړه چي د قارون مالونه ستا لپاره دي |

| چو بیچارگان بادل دردناک | بخواهي شد آخر گرفتار خاک |
|---|---|
| د بې کسو په دول په دردمند زړه سره | ته به سې په پای کې د قبر بندي |

**مشکل الفاظ:** گرفتم: ما فرض کړه، ما ومنل، اموال: مالونه، قارون: یو ډېر لوی شتمن سړی چې یادونه یې مخکې سوې ده، ترا: ستا، همه: ټول، ربع مسکون: د دنیا وچه برخه، گرفتار: نیول سوی، بندي، خاک: خاوره، یعني قبر، بې چاره گان: بې کسه.

**خلاصه:** د مثال په توگه د قارون ټوله خزانه ستا ده او د دنیا ټول نعمتونه ستا دي، مگر بیا هم یوه ورځ به ته خاورو ته ځې او مرگ به درته راځي، نو باید د داسې فنا کېدونکو شیانو سره مینه ونه کړل سي.

| چرا میکشي بار محنت چو خر | چرا میگدازي زسودائي زر |
|---|---|
| ولې د تکلیفونو بار وړې لکه خر | ولې ویلې کېږې د زرو په غم کې |

| که خداهد شدن ناگهان پائمال | چرا میکشي محنت از بهر مال |
|---|---|
| چې سي به (مال) ناڅاپه برباد | ته ولې تکلیفونه وړې د مال تر لاسه کولو لپاره |

**مشکل الفاظ:** چرا: ولې: میگذاري: ویلې کېږې، سودائي: لیونتوب، مینه، شوق، میکشي: وړې، محنت: تکلیف، ازبهر: لپاره، ناگهان: ناڅاپه، پائمال: ختم، برباد.

**خلاصه:** د مال او زر تر لاسه کولو لپاره ولې د خره په دول تکلیفونه وړې، حال دا چې مال به یوه ورځ ټول پاته سي او ته به مرېې.

| که هستي زذوقش ندیم ندم | چنان داده دل بنقش درم |
|---|---|
| چې ته د هغه په خوند یې د پښیماني ملگری | تا داسې ورکړی دی زړه د درهم پر نقش باندې |

**مشکل الفاظ:** چنان: داسې، داده: ورکړه، دل دادن: زړه ورکول، درم: درهم، ندیم: ملگری، ندم: پښیماني، نقش درم: یعني پوره درهم.

**خلاصه:** اې حریصه! ته ولې دومره پر دنیا مین یې چې په تر لاسه کولو کې یې د جائز او

ناجائز فرق نه کوي چي له کبله يې زيات وختونه پښېماني رامنځته کيږي .

| چنان عاشق روئي زرگـــشته | كه شوريده احوال وسرگشته |
|---|---|
| ته د زرو د مخ داسي مين سوی يې | چي خفه او حيران يې |

**مشکل الفاظ**: روئي: مخ، زر: سره زر، گشته: سوی يې، شوريده: خفه، سرگشته: حيران

**خلاصه**: ته د روپو او مال داسي مين سوی يې چي هر وخت خفه او حيران يې .

| چنان گشته صيد بهر شكار | كه يادت نيايد زر وزشـــمار |
|---|---|
| ته د ښکاري لپاره داسي ښکار سوې | چي هيڅ ياد نه درځي د قيامت د ورځي |

**مشکل الفاظ**: صيد: ښکار، يادت: ستا ياد، نيايد: نه راځي، روزشمار: د قيامت ورځ.

**خلاصه**: ته د دنيا په ښکار کولو او تر لاسه کولو کي داسي بوخت يې چي د قيامت ورځ دي هيڅ په ياد نه ده، د آخرت څخه غافل يې، داسي بايد ونه سي .

| مبادا دل آن فرومايه شـــاد | كه از بهر دنيا دهد دين بباد |
|---|---|
| د هغه چا زړه دي نه خوشحاله کيږي | چي د دنيا لپاره دين برباد کړي |

**مشکل الفاظ**: مبادا: نه دي کيږي، فرومايه: بد سړی، دهدبباد: برباد کړي.

**خلاصه**: مصنف رحمه الله د حريص لپاره ښېرا کوي چي د هغه چا زړه دي نه خوشحاله کيږي ځوک چي د دنيا لپاره خپل دين او آخرت برباد کړي .

# در صفت طاعت وعبادت

د طاعت او عبادت د صفت په بيان کي.

| کسي را که اقبال باشد غـلام | بود ميل خاطر بطاعت مـدام |
|---|---|
| د چا چي نېکمرغي غلامٌ وي | د هغه شوق تل بندگی او عبادت ته وي |

**مشکل الفاظ**: اقبال: نېکمرغي، بخت، ميل: شوق، مدام: همېشه، خاطر: زړه.

**خلاصه:** د نېکمرغه سړي شوق عبادت ته وي.

| نشايد سر از بندگي تــافتن | كه دولت بطاعت توان يافتن |
|---|---|
| نه ده پکار د بندګۍ څخه سر غړونه | ځکه دولت د بندګۍ په سبب تر لاسه کيداى سي |

**مشکل الفاظ:** نشايد: پکار نه ده، بندگي: عبادت، سرتافتن: سرکښي، انکار کول، توان: قدرت، توان يافتن: کولاى سي.

**خلاصه:** بايد د الله ﷻ د عبادت څخه سرغړونه او سرکښي ونه کړل سي ځکه د دواړو جهانونو ښتمني او کاميابي په طاعت او عبادت تر لاسه کيږي.

| سعادت زطاعت ميسر شود | دل از نور طاعت منور شــود |
|---|---|
| نيکمرغي په عبادت سره تر لاسه کيږي | زړه د عبادت په نور ځلانده کيږي |

**مشکل الفاظ:** سعادت: نېکمرغي، ميسر: اسانه کېدل، تر لاسه کېدل، منور: ځلانده.

**خلاصه:** د الله ﷻ په عبادت سره د دواړو جهانونو نېکمرغي تر لاسه کيږي همدارنګه په عبادت سره زړه ځلانده کيږي او بيا د هر بد او ښه فرق کولاى سي.

| اگر بندي از بهر طاعت ميان | كشايد در دولت جــــاودان |
|---|---|
| که چيري ته وتړې د عبادت لپاره ملا | خلاصي به سي دروازې د تل ښتمنۍ |

**مشکل الفاظ:** اگر: که چيري، بندي: وتړې، ميان: ملا، کشايد: پراخ، خلاص، در: دروازه، جاودان: تل.

**خلاصه:** د الله ﷻ په عبادت او طاعت سره د مقبوليت او ولايت مقام تر لاسه کيږي، په دنيا کي د زړه سکون او په اخرت کي تل پاتي راحت تر لاسه کيږي.

| زطاعت نه پيچد خردمند سر | كه بالا زطاعت نه باشد هــنر |
|---|---|
| د طاعت څخه سرغړونه نه کوي هوښيار سړى | ځکه تر طاعت غوره هنر هيڅ شى نسته |

**مشکل الفاظ:** نه پيچد: نه اړوي، بالا: لوړ.

**خلاصه:** هوښیار سړی هیڅکله د عبادت څخه مخ نه اړوي ځکه تر عبادت او طاعت غوره بل هیڅ کار نسته.

| زبهر عبادت وضوتـــازه دار | كه فــرداز آتش شوى رستگار |
| --- | --- |
| د عبادت لپاره اودس تازه لره | تر څو سبا ورځ د اور څخه خلاصون تر لاسه کړې |

**مشکل الفاظ:** زبهر: لپاره، وضو: اودس، وضو تازه دار: تل په اوداسه اوسه، فردا: سبا، آتش: اور، شوی: سي، رستگار: خلاصون تر لاسه کوونکی.

**خلاصه:** په ځینو نسخو کي د (زبهر عبادت) پر ځای (به آب عبادت) الفاظ راغلي دي، ځینو کسانو لومړی نسخې ته ترجیح ورکړې ده.

| نماز از سر صدق بر پـــايدار | كه حاصل كني دولت پايــدار |
| --- | --- |
| لمونځ په اخلاص او رښتیا سره ادا کړه | ددې لپاره چي تر لاسه کړې تل پاتي دولت |

**مشکل الفاظ:** نماز: لمونځ، از سر صدق: په اخلاص سره، برپایدار: قائم کړه، پایدار: تل.

**خلاصه:** د عبادت تر ټولو مهم رکن لمونځ دی، په قرآن کریم او حدیثونو کي د لمانځه ډېر زیات ټینګار راغلی دی، باید په ښه اخلاص او پاملرنه سره ادا کړل سي تر څو په دواړو جهانونو کي د الله ﷻ رضا تر لاسه سي.

| زطاعت بود روشنائي جــان | كه روشن زخورشيد باشد جهان |
| --- | --- |
| په عبادت سره تر لاسه کیږي د ځان ځلا | لکه چي په لمر سره ځلانده کیږي دنیا |

**مشکل الفاظ:** روشنائي: ځلا، رڼا، جان: روح.

**خلاصه:** څرنګه چي په لمر سره دنیا رڼا تر لاسه کوي همدا رنګه د الله ﷻ په عبادت او طاعت سره روح ته ځلا تر لاسه کیږي.

| پرستندۀ آفريننده بــــاش | در ايوان طاعت نشيننده باش |
| --- | --- |
| د پیدا کوونکی عبادت کوونکی سه | د عبادت په ماڼۍ کي ناست اوسه |

**مشکل الفاظ**: پرستنده: عبادت کوونکی، آفریننده: پیدا کوونکی، باش: سه، ایوان: مانۍ، نشیننده: ناست.

**خلاصه**: باید د خپل خالق عبادت وکړل سي او د هر وخت پکښې تېر کړل سي او په خلوت کي وکړل سي ځکه په خلوت کي عبادت کول تر جلوت زیات ګټور وي مګر دا د نفلي عبادت حکم دی، د فرض لمانځه او داسي نورو لمونځونو په مسجد کي په جماعت سره ادا کول ضروري دي.

| اگر حق پرستي کني اختـــیار | در اقلیم راحت شوي شهریار |
|---|---|
| که د خدای ﷻ عبادت کول اختیار کړې | نو ته به د راحت په سیمه کي پاچا سې |

**مشکل الفاظ**: حق پرستي: د الله ﷻ بندګي کول، شهریار: پاچا، اقلیم راحت: یعني جنت.

**خلاصه**: د الله ﷻ په عبادت سره د زړه سکون او راحت تر لاسه کېږي.

**فائده**: په ځینو نسخو کي د راحت لفظ پر ځای د دولت لفظ راغلی دی یعني د آخرت دولت.

| سر از جیب پرهیزگاري بـــرآر | که جنت بود جای پرهـــیزگار |
|---|---|
| سر د پرهیزګارۍ د ګرېوانه څخه راوباسه | ځکه جنت د پرهیزګارانو ځای دی |

**مشکل الفاظ**: جیب: ګرېوان، بر آر: ښکاره کړه.

**خلاصه**: یعني کامل پرهیزګار جوړ سه، پرهیزګار په دنیا کي هم سرلوړی وي او په آخرت کي د جنت وړ وي.

**فائده**: په شریعت کي ځیني داسي کارونه دي چي د کولو امر یې سوی دی لکه لمونځ، روژه او داسي نور، او ځیني داسي کارونه دي چي د نه کولو امر یې سوی دی لکه: درواغ، زنا، مخلوق ته تکلیف رسول او داسي نور، د دواړو احکامو پابندي کولو ته پرهیزګاري وایي.

| زتقوی چراغ روان بر فـــــروز | که چون نیک بختان شوي نیک روز |
|---|---|
| په پرهیزګارۍ سره د روح څراغ بل کړه | تر څو د نېکانو په دول نېکمرغه سې |

**مشکل الفاظ**: تقوی: پرهیزګاري، روان: روح، برفروز: بل کړه، نیک روز: نېکمرغه.

**خلاصه**: په تقوا او پرهیزګاري سره خپل روح منور کړه ځکه په دې سره انسان نېکمرغه کېږي.

| نه ترسـد از آسیب روز شمار | کسي را که از شرع باشد شعار |
|---|---|
| هغه نه ېرېږي د قيامت د ورځي د سختۍ څخه | څوک چي د شريعت جامه ولري |

**مشکل الفاظ**: شرع: شريعت، شعار: هغه جامه چي په بدن پوري موښتې وي، د شعار مجازي معنی د عادت او طريقې هم ده، نه ترسد: نه ېرېږي، آسيب: غم، تکليف، روز شمار: د شمېر ورځ يعني د قيامت ورځ.

**خلاصه**: د چا چي عمل او کړنه د شريعت برابر وي نو هغه ته د قيامت د ورځي هيڅ تکليف نه سته او نه هم ېره لري لکه په قرآن کريم کي چي راغلي دي.

# در مذمت شیطان

د شيطان د بدۍ په بيان کي.

| شب و روز دربند عصیان بود | دلا هر که محکوم شیطان بود |
|---|---|
| هغه شپه او ورځ د ګناهونو په فکر کي وي | اې زړه! څوک چي د شيطان په بند کي وي |

**مشکل الفاظ**: دلا: اې زړه، محکوم: تابع، شيطان: سرکښ، نافرمان، د عزازيل لقب، شب و روز: شپه او ورځ يعني تل، عصيان: نافرماني.

**خلاصه**: د شيطان تابعداري کوونکی هر وخت په ګناهونو کي اخته وي ځکه په قرآن کريم کي د شيطان څخه د ځان ساتني ټينګار سوی دی.

| کجا باز گردد براه خـــدا | کسي را که شیطان بود پیشوا |
|---|---|
| هغه کله راګرځي د الله ﷻ لاري ته | د چا چي شيطان پيشوا وي |

**مشکل الفاظ**: پيشوا: رهنما، لاربنود، کجا: چيري، بازګردد: راګرځي.

**خلاصه**: هر سړی په خپل امام او پيشوا پسي وي نو څوک چي شيطان خپل پيشوا جوړ کړي هغه به د الله ﷻ پر نبودل سوي لار څرنګه ولاړ سي.

| که رحمت کند تو پـروردگار | دلا عزم عصیان مکن زینــهار |
|---|---|
| تر څو رحمت وکړي پر تا باندي الله ﷻ | اې زړه! د ګناه اراده هیڅکله مه کوه |

**مشکل الفاظ:** عزم: اراده، عصیان: ګناه، نافرماني، زینهار: هیڅکله نه.

**خلاصه:** باید هیڅکله د ګناه اراده ونه کړل سي که چیري په غفلت سره د ګناه اراده وسي نو باید سمدستي اراده بدله کړل سي په داسي کولو سره هم د آخرت د نعمتونو وعده ده.

| که از آب باشد شکر را گداز | ز عصیان کند هوشمند احتراز |
|---|---|
| ځکه په اوبو سره ویلي کیږي بوره | د ګناه څخه هوښیار سړی پرهیز کوي |

**مشکل الفاظ:** عصیان: ګناه، احتراز: ځان ساتنه، ګداز: ویلي کېدل، شکر، بوره.

**خلاصه:** هوښیار انسان خپل ځان د ګناهونو څخه ساتي ځکه هغه پوهیږي چي څرنګه په اوبو کي د بوري په کډېدو سره بوره خپل حیثیت د لاسه ورکوي همدارنګه په ګناهو سره نیکي او هوښیاري له منځه ځي.

| که پنهان شود نور مهر از سحاب | کندنیک بخت از گناه اجتناب |
|---|---|
| ځکه پټیږي د لمر رڼا په وریځ سره | نیکمرغه انسان د ګناهونو څخه ځان ساتي |

**مشکل الفاظ:** اجتناب: پرهیز کول، پنهان: پټ، مهر: لمر، سحاب: وریځ.

**خلاصه:** نېکمرغه انسان ځکه د ګناهونو څخه ځان ساتي ځکه هغه پوهیږي چي څرنګه په وریځ سره د لمر رڼا پټیږي همدارنګه د ګناهونو په وریځ سره د زړه نور ختمیږي.

| که ناگاه گرفتار دوزخ شـوي | مکن نفس اماره را پــــیروي |
|---|---|
| ځکه ناڅاپه به ته د دوزخ بندي سې | مه کوه د سرکښه نفس تابعداري |

**مشکل الفاظ:** نفس اماره: سرکښ نفس، ناګاه: ناڅاپه.

**خلاصه:** باید د نفس تابعداري ونه کړل سي کنه نو دوزخ ته به ولاړ سي.

| اگر بر نتابد زعصیان دلت | بود اسفل السافلین منزلت |
| --- | --- |
| که چیري نه اوړي ستا زړه د ګناهونو څخه | نو سي به د دوږخ تر ټولو لاندي طبقه ستا ځای |

**مشکل الفاظ:** برنتابد: منع نه سي، اسفل السافلین: د دوږخ تر ټولو لاندینۍ برخه.

**خلاصه:** د ګناهونو څخه ځان نه ساتل دوږخ ته د تلو سبب دی.

| مکن خانه زندگاني خـــراب | به سیلاب فعل بد وناصـواب |
| --- | --- |
| د ژوند کور مه خرابوه | د بدو او ناوړو کارونو په سیلاب سره |

**مشکل الفاظ:** خانه: کور، زندګاني: ژوند، ناصواب: ناسم.

**خلاصه:** څرنګه چي د اوبو په سیلاب کورونه خرابیږي همدا رنګه د ګناهونو په طوفان سره د ژوند ماڼۍ هم تباه کیږي.

| اگر دور باشي زفسق وفـجور | نه باشي زګلزار فـردوس دور |
| --- | --- |
| که چیري ته لیري سې د ګناهو او بدو کارو څخه | نو ته به لیري نه سې د جنت د باغونو څخه |

**مشکل الفاظ:** فسق وفجور: ګناه او بدکارونه، ګلزار: باغ، فردوس: جنت.

**خلاصه:** د الله ﷻ د نافرمانۍ او ګناهونو څخه لیري والي د جنت د لوړو مرتبو او باغونو تر لاسه کېدو سبب دی.

# در بیان شراب عشق

د مینې د شرابو په بیان کي.

بنده او غوره شي ته د طبعي میلان نوم مینه ده او د ډیري زیاتي مینې نوم عشق دی، د بدو اخلاقو د منع کولو علاج دوه دوله دی، یو جزئي او خاص چي د هر یوه علاج جلا جلا کیږي چي تفصیل یې امام غزالي رحمه الله او حضرت مولانا اشرف علي رحمه الله په خپلو کتابونو کي ذکر کړي دي.

دا دول علاج ته طریق سلوک ویل کیږي، دوهم دول کلي او عام دي، هغه دا چي د ذکر او فکر او شیخ کامل په طریقه باندي په عمل کولو سره په زړه کي د الله ﷻ مینه پیدا کیږي، کله چي د الله ﷻ مینه غلبه وکړي نو انابت او مضمحل کېدل پیل کیږي،

| بده سا قیا آب آتش لـباس | که مستي کند اهل دل التماس |
|---|---|
| راکړه ساقي سرې اوبه | تر څو د زړه خاوند د مستۍ ارزو وکړي |

**مشکل الفاظ**: بده: راکړه، ساقیا: اې ساقي، اوبهٔ ورکوونکی، آتش لباس: هغه اوبه چي رنګ یې د اور غوندي وي یعني سرې اوبه، اهل دل: د زړو خاوندان، التماس: غوښتنه.

**خلاصه**: اې ساقي د خپلي میني او محبت داسي تېز څښناک راکړه چي ریښتني غوښتونکي په مستي کي دنیا هیره کړي او یوازي ستا سي.

| مي لعل در ساغر زرنـــگار | بود روح پرور چو لـــعل نګار |
|---|---|
| سره شراب په زرینه پیاله کي | د روح پالونکي وي لکهٔ د معشوق شوندان |

**مشکل الفاظ**: مي: شراب، لعل: سور شی، .زرنګار: نقش لرونکی، روح پرور: روح پالونکی

**خلاصه**: د میني ریښتني غوښتونکي د الهي میني په شرابو سره روحاني ژوند ترلاسه کوي

| بیار آن شراب چو آب حیات | که یا بدزبوئش دل از غم نجات |
|---|---|
| راوړه هغه شراب چي د آب حیات غوندي وي | چي په خوشبویي یې زړه د غم څخه خلاص سي |

**مشکل الفاظ**: بیار: راوړه: آب حیات: د ژوند اوبه، که: تر څو .

**خلاصه**: اې ساقي د الهي میني داسي شراب راوړه چي د آب حیات په دول د تل پاته ژوند سبب سي تر څو زړه د هغه په خوشبویي سره د دنیا د غمونو څخه خلاصون ترلاسه کړي.

| شراب چو لعل روان بخش یار | شراب مصفی چو روئي نـــګار |
|---|---|
| داسي شراب چي د دوست د شوندو غوندي ځان بخښونکي وي | داسي شراب چي د معشوق د مخ غوندي پاک وي |

**مشکل الفاظ**: لعل: یعني د معشوق شونډان، روان بخش: ځان بخښونکي، مصفی: پاک،

روئي: مخ، نگار: معشوق.

**خلاصه:** داسي شراب راوړه چي د محبوب د شونډانو غوندي ځان بخښونکي وي او د معشوق د مخ غوندي پاک اوصاف وي.

| خوشا آتش شوق ارباب عـشق | خوشالذت درد اصَحاب عشق |
|---|---|
| ډېر ښه دی اور د میني کوونکو د شوق | ډېر ښه دی خوند د میني کوونکو د درد |

**مشکل الفاظ:** خوشا: ډېر ښه، ارباب: خاوندان، آتش: اور، لذت: خوند.

**خلاصه:** د الله ﷻ رښتني مینان په الهي مینه کي د درد او سوځلو څخه هم خوند اخلي.

| خوش آندل که دارد تمنائي دوست | خوش آنکس که دربند سودائي اوست |
|---|---|
| ښه دی هغه زړه چي د دوست خواهش لري | ښه دی هغه کس چي د هغه د خیال په بند کي وي |

**مشکل الفاظ:** تمنائي: خواهش، غوښتنه، سودا: خیال.

**خلاصه:** د چا په زړه کي چي د حقیقي محبوب سره د وصال خواهش وي او په هغه خواهش کي مستغرق وي نو هغه ډېر نېکمرغه دی.

| خوش آندل که شیداست بر روئي دوست | خوش آندل که شدمنزل او کوئي دوست |
|---|---|
| ښه دی هغه زړه چي عاشق وي د دوست پر مخ | ښه دی هغه زړه چي ځای يې د دوست کوڅه وي |

**مشکل الفاظ:** شیدا: عاشق، مین، منزل: پړاو، کوئي: کوڅه.

| خوشامي پرستي زصاحـبدلان | خوشاذوق مستي زدلدادگان |
|---|---|
| ډېر ښه دي شراب څښـل د ژوندیو زړو څخه | ډېر ښه دی د مستی خوند د عاشقانو څخه |

**مشکل الفاظ:** مي پرستي: شراب څښـل، د دي څخه مراد د الهي میني تر لاسه کول دي او د هغه څخه کېدونکي نېک اعمال، دلدادگان: مینان، عاشقان.

**خلاصه:** د الله ﷻ مینه او د هغه په ذریعه کېدونکي نېک اعمال یو ډېر لوی نعمت دی ځکه دغه کسان د شریعت د ادبونو لحاظ ساتي او د اخلاص څخه ډک وي.

# در صفت وفا

د وفا په ستاینه کي.

| که بـي سکه رائج نباشد درم | دلا در وفاباش ثابت قـــدم |
|---|---|
| ځکه بېله سکي درهم نه جاري کيږي | اې زړه! په وفا کي ثابت قدمه سه |

**مشکل الفاظ:** وفا: پوره کول، سکه: هغه اوسپنه چي د وخت روپۍ وي، درم: درهم.

**خلاصه:** څرنګه چي بېله مهره روپۍ باوري نه وي همدارنګه بېله وفا دوستي هم باوري نه وي ځکه نو باید تل وفا وکړل سي.

| شوي دوست اندر دل دشمنان | زراه وفا گرنه پيـــچي عنان |
|---|---|
| نو ته به سي د دېښمنانو د زړو دوست | که چيري د وفاء د لاري څخه ته واګي نه واړوې |

**مشکل الفاظ:** عنان: واګي، پيچيدن: ګرځول.

**خلاصه:** په وفاء کولو سره دښمن هم دوست ګرځي ځکه نو باید تل وفا وکړل سي.

| که در روئي جانان نباشي خجل | مگر دان زکوئي وفا روئـي دل |
|---|---|
| تر څو د دوست په مخ کي شرمنده نه سې | مه ګرځوه د وفا د کوڅي څخه د زړه مخ |

**مشکل الفاظ:** مگردان: مه ګرځوه، کوئي: کوڅه، روئي: مخ، خجل: شرمنده.

**خلاصه:** باید په هيڅ حال کي بې وفائي ونه کړل سي کنه نو د دوست په وړاندي به هم شرمنده سي.

| که از دوستان مي نيرزد جفا | منه پائي بيرون زکوئي وفـــا |
|---|---|
| ځکه د دوستانو سره جفا کول مناسب نه دي | د وفا د کوڅي څخه پښي دباندي مه باسه |

**مشکل الفاظ:** منه: مه ايږده، مي نيرزد: وړ نه ده، مناسب نه ده، جفا: بې وفائي، ظلم.

**خلاصه:** بې وفائي یو بد او د ظلم کار دی او ظلم د دوستی ضد دی.

| بریدن زیاران خلاف وفا ست | جدائي ز احباب کردن خطاست |
| --- | --- |
| جلا کېدل د دوستانو څخه د وفا خلاف دي | د دوستانو څخه بېلوالی غلطي ده |

**مشکل الفاظ:** احباب: دوستان، بریدن: جلا کېدل، پرې کېدل.

**خلاصه:** د دوستانو څخه جلا کېدل لویه غلطي ده ځکه د دوستی غوښتنه وصال دی نه فراق

| میاموز کردار زشت زنـــان | بود بي وفائي سرشت زنـــان |
| --- | --- |
| مه زده کوه بد کارونه د ښځو څخه | بې وفائي د ښځو عادت دی |

**مشکل الفاظ:** سرشت: عادت، زنان: ښځي، میاموز: مه زده کوه، کردار: کار. زشت: بد.

**خلاصه:** بې وفائي د ښځو عادت دی، ښځي په دین او عقل دواړو کي تر نارینوو ناقصي دي ځکه نو باید نارینه د ښځو عادت اختیار نه کړي.

# در فضیلت شکر

## د شکر په فضیلت کي.

د شکر معنی د احسان او انعام کوونکي احسان منل او د هغه تعریف او تعظیم کول دي، د احسان منلو نتیجه دا وي چي یو خو بنده د خپل منعم څخه خوشحاله کیږي او دوهم دا چي د خپل منعم او محسن په تعظیم او طاعت کي نور هم پر مخ ځي، دریم دا چي د شکر په وجه په احساناتو او نعمتونو کي زیاتوب راځي.

| نشاید که بندد زبان ســپاس | کسي را که باشد دل حق شناس |
| --- | --- |
| مناسب نه ده چي بنده کړي د شکر ژبه | د چا چي زړه خدای پېژندونکی وي |

**مشکل الفاظ:** حق شناس: حق پېژندونکی، نشاید: مناسب نه ده، سپاس: شکر.

**خلاصه:** خدای پېژندونکی سړی باید همېشه د الله ﷻ شکر ادا کړي.

| نفس جز به شکر خدا برمیار | که واجب بود شکر پروردگار |
| --- | --- |
| ساه مه باسه پرته د الله ﷻ د شکر ادا کولو څخه | ځکه لازم او ضروري دی د الله ﷻ شکر ادا کول |

**مشکل الفاظ:** نفس: ساه، برمیار: مه باسه، واجب: ضروري.

**خلاصه:** باید د هري ساه سره د الله ﷻ شکر ادا کړل سي او هیڅ ساه د شکر څخه خالي نه وي، د شریعت له موخي د الله ﷻ شکر لازم او واجب دی لکه چي د الله ﷻ ارشاد دی: (اعملوا آل داؤد شکرا) عمل وکړئ اې د داؤد کورنۍ د شکر.

| ترا مال ونعمت فزاید زشکــر | ترا فتح از دردر آید زشـــکر |
| --- | --- |
| ستا مال او نعمتونه زیاتیږي په شکر سره | ته به فتح تر لاسه کړې د هري خوا څخه په شکر |

**مشکل الفاظ:** مال: نقدي روپۍ، نعمت او سامانونو ته وایي، فزاید: زیاتیږي، فتح: پراخي، پر دښمن کامیابي، از در درآید: د هري خوا څخه تر لاسه سي.

**خلاصه:** د الله ﷻ په شکر ادا کولو سره په مال او شتمني کي زیاتوب راځي او پر هر دول ښکاره او پټ دښمن کامیابي تر لاسه کیږي.

| اگر شکر حق تا بروز شــمار | گزاري نباشد یکي از هـــزار |
| --- | --- |
| که چیري د الله ﷻ شکر د قیامت تر ورځي پوري | ادا کړې نو پوره به نه سي یوه برخه د زرو څخه |

**مشکل الفاظ:** گزاري: ادا کړې، بروز شمار: د قیامت ورځ. هزار: زر.

**خلاصه:** که چیري یو څوک تر قیامته پوري پرله پسې شکر ادا کوي نو د الله ﷻ د بې شمېره نعمتونو شکر چي واجب دی د هغه زرمه برخه به هم ادا نه سي، ځکه په یوه ساه اخیستلو کي بنده د سل هاوو نعمتونو څخه گټه اخلي.

| ولي گفتن شکر اولی تر است | که اسلام را شکر او زیور ست |
| --- | --- |
| مگر د شکر ادا کول غوره دي | ځکه د اسلام لپاره د هغه شکر ښکلا ده |

**مشکل الفاظ:** ولي: مگر، زیور: ښکلا، گېڼه،

**فائده:** څرنګه چي د مخکني شعر څخه څرګنده سوه چي د قيامت تر ورځي پوري د شکر ادا کول ناکافي دي نو لکه د شکر ادا کول چي بې ګټي وي، د (ولي ګفتن) په لفظ يې دا وهم ليري کړی چي په هر حال شکر ادا کول تر نه ادا کولو غوره دي ځکه په شکر سره د اسلام او مسلمان ښکلا په برخه کيږي.

| گزار شکر ايزد نه بندي زبـان | بدست آوري دولت جـاودان |
|---|---|
| که د الله ﷻ د شکر څخه ژبه بنده نه کړې | نو تر لاسه به کړې همېشنۍ شتمني |

**مشکل الفاظ:** ايزد: الله ﷻ، نه بندي: بند نه کړې، بدست آوري: تر لاسه کړې، جاودان: تل.

**خلاصه:** په پرله پسې شکر کولو سره د دنيا او آخرت نېکمرغي تر لاسه کيږي.

# در بيان صبر

د صبر په بيان کي.

په انسان کي دوه داسي قوتونه دي چي په هغو کي يو يې پر نيکۍ اماده کوي او بل يې په نفساني خواهشاتو اخته کوي، پر نيکۍ باندي پارونکی قوت غالب کول، د نفساني خواهشاتو پرېښودل او په دې اړه د همت څخه کار اخيستلو ته صبر وايي، د صبر ټول ډولونه په دغه مفهوم کي داخل دي که د طاعت او عبادت په ادا کولو کي وي يا د ګناهونو څخه په ځان ساتني کي صبر وي، او که د غم په وخت کي صبر کول وي، په کتاب او سنت کي د صبر ډېر زيات فضيلتونه او ټينګار راغلی دی.

| تراگر صبوري بود دستـــيار | بدست آوري دولـت پائيدار |
|---|---|
| که چيري صبر ستا مرسته کوونکی سي | نو تر لاسه به کړې تل پاتي دولت او شتمني |

**مشکل الفاظ:** صبوري: صبر کول، دستيار: مرسته کوونکی، بدست آوري: تر لاسه کړې، پائيدار: تل پاتي، دولت پائيدار: يعني پر دين باندي ثابت قدمي.

**خلاصه:** په صبر او استقلال سره د دين او دنيا ټول مقصدونه تر سره کيږي.

| صبوري بود کار پیــــغمبران | نه پیچند زین روئي دین پروران |
| --- | --- |
| صبر کول د پیغمبرانو کار دی | نه گرځوي د صبر کولو څخه مخ دینداره خلک |

**مشکل الفاظ:** نه پیچند: نه گرځوي، دین پروران: دینداره.

**خلاصه:** نبیانو علیهم السلام او دهغوئ ریښتنو پیروانو همیشه صبر کړی دی، په سختو مشکلاتو او تکلیفونو کي یې هم د صبر لمن د لاسه ورکړې نه ده.

| صبوري کشاید در کام جــان | که جز صابري نیست مفتاح آن |
| --- | --- |
| صبر خلاصوي دروازه د ځان د مقصد | ځکه د صبر ماسیوا د هغې بل هیڅ کیلي نشته |

**مشکل الفاظ:** کشاید: خلاصوي، کام: مقصد، مفتاح: کیلي.

**خلاصه:** هیڅ یو دنیوي او اخروي مقصد بېله صبر او استقلال څخه نه تر لاسه کیږي، صبر په حقیقت کي د مقصد تر سره کولو کیلي ده.

| صبوري بر آرد مراد دلــــت | که از عالمان حل شود مشکلت |
| --- | --- |
| صبر دباندي راباسي ستا د زړه مراد | او په علماوو حل کیږي ستا مشکلات |

**خلاصه:** په صبر کولو سره ستا د زړه مقصدونه پوره کیږي که چیري په دې اړه دا د غواړې نو د عالمانو څخه پوښتنه وکړه هغوئ به د صبر فضائل او گټې د آیاتونو او حدیثونو په رڼا کي دروښیي او تا به داده کړي.

| صبوري کلید در آرزو ســـــت | کشائنده کشور آرزو ســـــت |
| --- | --- |
| صبر د خواهشاتو د دروازې کیلي ده | خلاصونکې د خواهش د هیواد ده |

**خلاصه:** په صبر کولو سره هره غوښتنه او جائز خواهش تر سره کیږي.

| صبوري بهر حال اولی بـــــود | که در ضمن آن چند معنی بود |
| --- | --- |
| صبر کول په هر حال کي ښه دي | ځکه د هغه په څنگ کي څو مطلبونه دي |

**خلاصه:** صبر کول په هر حال کي ښه او ګټور دي، په صبر کولو سره صابر ته د هري ګټي تر لاسه کیږي د مثال په توګه: د الله ﷻ د فرمان پیروي کول، د هغه په نتیجه کي د الله ﷻ مرسته او معیت، د نبیانو علیهم السلام او بزرګانو پیروي، او داسي نور.

| صبوري ترا کامګاري دهـــد | زرنج و بلا رســـتګاري دهد |
|---|---|
| صبر کول تا ته کامیابي در په برخه کوي | د تکلیف او غم څخه خلاصون درکوي |

**خلاصه:** صبر کول د کامیابۍ او مقصد ته د رسېدو قوي سبب دی، په صبر کولو سره د تکلیف او غم زغمل اسانه کیږي او په پای کي یې خلاصون په برخه کیږي.

| صبوري کني ګر ترا دین بـود | که تعجیل کار شیاطین بـود |
|---|---|
| ته صبر وکړه که چیري دین لرې | ځکه تلوار کول د شیطانانو کار دی |

**خلاصه:** دیندار سړی د صبر او زغم څخه کار اخلي، تلوار هیڅکله نه کوي ځکه تلوار کول د شیطان کار دی چي شیطان په تلوار کولو سره خوشحاله کیږي.

# در صفت راستي

د رېښتیا په صفت کي.

| دلا راستي ګر کـــني اختیار | شود دولت همدم وبخـــتیار |
|---|---|
| اې زړه! که چیري رېښتیا ویل اختیار کړې | نو دولت به ستا ملګری او مرسته کوونکی سي |

**خلاصه:** په رېښتیا ویلو سره د کامیابۍ دولت ترلاسه کیږي، په وینا او عمل کي رېښتنی سړی د خالق او مخلوق په نزد معتبر او عزتمند وي.

| نه پیچد سرَ از راستي هوشمند | که از راستي نام ګردد بلـند |
|---|---|
| هوښیار سړی د رېښتیا ویلو څخه سر نه اړوي | ځکه په رېښتیا ویلو سره نوم لوړیږي |

**خلاصه:** عقلمند او هوښيار سړی هيڅکله د صداقت لمن د لاسه نه ورکوي ځکه هغه پوهيږي چې انسان په ريښتيا ويلو سره عزت او کاميابي تر لاسه کوي.

| ز تاريکي جهل گيري کنـــار | دم از راستي گرزني صبح وار |
|---|---|
| نو د ناپوهۍ د تاريکۍ څخه به ليري سې | که چيري ته په ريښتيا ساه وباسې د سهار غوندي |

**مشکل الفاظ:** دم: ساه، کنار: کونج.

**خلاصه:** څرنگه چې د سپيده و په راختلو سره د شپې د تاريکۍ څخه خلاصون تر لاسه کيږي همدارنگه انسان د ريښتيا او صداقت په وجه د جاهليت د کارو څخه خوندي کيږي.

| که دارد فضيلت يمين بريسار | مزن دم بجز راستي زيـــنهار |
|---|---|
| ځکه فضيلت لري راسته پر چپه | ساه مه اخله ماسيوا د ريښتيا څخه هيڅکله |

**خلاصه:** څرنگه چې راسته پر چپه فضيلت لري او دا د هغه د راستۍ په وجه نو ځکه بايد راستي او صداقت اختيار کړل سي.

| که درگلبن راستي خارنيست | به ازراستي درجهان کارنيست |
|---|---|
| ځکه د ريښتيا په درخته کي ازغي نه وي | تر ريښتيا په دنيا کي هيڅ کار ښه نسته |

**مشکل الفاظ:** به: غوره، گلبن: د گلابو درخته، خار: ازغي.

**خلاصه:** په دنيا کي تر ټولو ښه کار صداقت دی، په صداقت سره ټول نظام سميږي، په درواغو سره ټول نظام خرابيږي، صداقت هغه باغ دی چې هيڅ ازغي پکښې نسته،

# در مذمت کذب

د دروا غو په بدۍ کې .

| کجا روز محشر شود رستګار | کسي را که ناراستي ګشت کار |
|---|---|
| هغه به کله خلاصون تر لاسه کړي د قيامت په ورځ | د چا چي درواغ ويل کار وي |

**مشکل الفاظ**: ناراستي: درواغ ويل، کجا: چيري، روزمحشر: د قيامت ورځ، رستګار: خلاصون ترلاسه کوونکی.

**خلاصه**: درواغجن سړی چي خبره، کار او عقيده يې ټول د حقيقت خلاف وي، خلاصون يې مشکل دی.

| چراغ دلش رانباشد فـــروغ | کسي را که ګردد زبـان دروغ |
|---|---|
| د هغه د زړه څراغ نه لري رڼا | د چا چي د دروا غو ژبه وي |

**مشکل الفاظ**: زبان دروغ: د درواغو ژبه يعني د درواغو عادت.

**خلاصه**: د درواغجن سړي زړه مړ وي د هغه د زړه څخه د حلال او حرام، جائز او ناجائز احساس ختميږي.

| دروغ آدمي راکند بي وقـار | دروغ آدمي راکند شـــرمسار |
|---|---|
| درواغ ويل انسان بې عزته کوي | درواغ ويل انسان شرمنده کوي |

| که او را نيارود کسي درشمار | زکذاب ګيرد خردمند عــــار |
|---|---|
| څکه هغه هيڅوک نه شميري په انسانانو کي | د درواغجن سړي څخه هوښيار سړی شرم کوي |

**مشکل الفاظ**: کذاب: ډېر درواغجن، عار: شرم، پيغور.

**خلاصه**: هوښيار سړی د درواغجن څخه ځان ليري ساتي ځکه هغه په ټولنه کي بې عزته او

ذليل ګڼل کيږي ځکه نو بايد د دروا غو په ډول د درواغجن ځخه هم ځان وساتل سي.

| دروغ اي برادر مگو زينـــهار | که کاذب بود خوار وبي اعتبار |
|---|---|
| درواغ مه وايه اې وروره! هيڅکله | ځکه درواغجن ذليل او بې باوره وي |

| ز ناراستي نيست کاري بــتر | کزوگم شود نام نيک اي پسر |
|---|---|
| تر درواغو هيڅ بد کار نسته | ځکه په دې سره ورکيږي ښه نوم اې هلکه |

**مشکل الفاظ**: کاري: يو کار، بتر: ډېر بد، گم شود: ورکيږي، ختميږي، اي پسر: اې زويه

**خلاصه**: د درواغو په څومره بدي بيان کړل سي، په دې باره کي دا آخري او لنډ بيان کافي دی چي درواغ ويل ډېر بد کار دی، درواغ ويل د ډېرو گناهونو سبب کيږي، انسان خپلي ټولي غلطۍ د درواغو په پرده پټوي، که يو څوک ښه او نيک نوم لري نو هغه د درواغو په ويلو سره ختميږي

# در صنعت حق تعالى

د الله ﷻ په جوړښت کي.

شيخ رحمه الله د اخلاقي روزني څخه تر فراغت وروسته د الله ﷻ په قدرت کي د فکر کولو بلنه ورکوي، د الله ﷻ په قدرت کي په فکر کولو سره معرفت، عظمت او محبت پيدا کيږي چي په نتيجه کي يې عبادت او طاعت ته شوق زياتيږي او د گناهونو څخه نفرت پيدا کيږي، ځکه په قرآن کريم کي د الله ﷻ پر ذات او صفاتو باندي د ايمان په اړه په وار وار په قدرتي شيانو کي د فکر کولو بلنه انسانانو ته ورکړل سي ، الله ﷻ دې موږ او تاسو ټولو ته دغه دولت را په برخه کړي . آمين .

| نگه کن برين گنبد زرنـــگار | که سقفش بود بي ستون استوار |
|---|---|
| نظر وکړه دغي ښکلي گنبدي ته | چي بام يې بېله ستني ولاړ دی |

**مشکل الفاظ**: زرنگار: ښکلی، نقش داره، د گنبد زرنگار څخه مراد آسمان دی، ستون:

ستنه، استوار: محکم، ولاړ، سقف: بام.

**خلاصه:** د الله ﷻ د قدرتونو څخه آسمان يو عجيب منظر دی، د زرهاوو کلونو څخه بېله ستنو ولاړ دی، ذ هغه په ښکلا، لوړوالي او ټينګوالي کي فکر کول انسان حيرانوي.

| سراپرده چرخ گردنده بـين | در وشمعهائي فروزنده بـين |
|---|---|
| گرځېدونکي خيمه د آسمان وګوره | په هغې کي بلي سوي ډيوي وګوره |

**مشکل الفاظ:** سراپرده: خيمه، لويه پرده، چرخ: آسمان، گردند: گرځېدونکی، فروزنده: ځلانده، بل سوي، شمعهائي: څراغان، ډيوې.

**خلاصه:** په آسمان کي د لوړوالي او ټينګښت ماسيوا نوري دوې خبري هم د فکر کولو وړ دي، يو د هغه گرځېدل او دوهم په هغه کي په لکونو ستوري او پر مځکه د هغه اثرات، په دغه نظام کي انسان ته بې شمېره ګټې دي ځکه نو په هغه کي په فکر کولو سره د الله ﷻ بندګي او عبادت کول پکار دي.

**فائده:** په دې خبره کي اختلاف دی چي آسمان متحرک دی که مځکه، پخواني فلسفيان د لومړنی نظر ويونکي دي او اوسني فلسفيان د دوهم نظر ويونکي دي.

| يکي پاسبان ويکي پـــادشاه | يکي داد خواه و يکي باج خواه |
|---|---|
| يو ساتونکی او يو پاچا | يو فرياد کوونکی او يو محصول غوښتونکی |

**مشکل الفاظ:** يکي: يو، پاسبان: ساتونکی، دادخواه: انصاف غوښتونکی، فريادي: فرياد کوونکی، باج خواه: محصول غوښتونکی.

**خلاصه:** څرنګه چي آسمان او نور لوړ مخلوقات د الله ﷻ پر وجود، توحيد او نورو صفاتو دلالت کوي همدا رنګه کښته نظام هم د الله ﷻ پر معرفت ذاتي او صفاتي دواړو شاهد دي چي ټول انسانان د يوه پلار (آدم عليه السلام) اولاد کېدو سربېره د هغوئ په سيرت، صورت او احوالو کي ډېر اختلاف دی، هر څوک غواړي چي هر ډول کمال ولري، مګر کاميابي تر لاسه کولای نه سي، له دې څخه څرګندېږي چي دا ټول نظام د يو داسي ذات په واک کي دی چي د کمال علم او حکمت سره کمال قدرت او اختيار هم لري، هغه د خپل علم او حکمت سره سم چا ته

چي څومره ورکول وغواړي ورکوي يې، هيڅوک هغه مجبوره کولای نه سي، په راتلونکو شعرونو کي د مخلوقاتو د مختلفو حالاتو او کيفياتو بيان دی.

| يکي شادمان و يکي دردمند | يکي کامران ويکي مستمند |
|---|---|
| يو څوک خوشحاله او يو څوک دردمند وي | يو څوک کامياب او يو څوک غمجن وي |

**مشکل الفاظ:** شادمان: خوشحاله، مستمند: غمجن، کامران: کامياب،

**خلاصه:** انسان ته چي هر حالت راځي لکه خوشحالي، غم، تکليف، کاميابي او ناکامي، تول د الله ﷻ له خوا وي، ځکه نو په هر حال کي بايد الله ﷻ ته توجه وي، په کاميابي او خوشحالي کي د الله ﷻ شکر ادا کړل سي او په ناکامي او غم کي صبر وکړل سي.

| يکي تاجدار ويکي باجدار | يکي سرفراز و يکي خاکسار |
|---|---|
| څوک تاج لرونکی او څوک محصول ورکونکی | څوک سرلوړی او څوک عاجز وي |

| يکي برحصير ويکي بر سرير | يکي درپلاس ويکي درحرير |
|---|---|
| څوک پر چټائي او څوک پر کټ باندي | څوک پر ټاټ او څوک پر ريښم باندي وي |

| يکي بي نواو يکي مال دار | يکي نامراد ويکي کام گار |
|---|---|
| څوک بې سامانه او څوک مال لرونکی | څوک کامياب او څوک ناکام وي |

| يکي در غناو يکي درعنا | يکي را بقاو يکي را فنا |
|---|---|
| څوک په غنا کي او څوک په تکليف کي | چا ته ژوند او چا ته مرګ تر لاسه وي |

**مشکل الفاظ:** غنا: بې پرواهي، شتمني، عنا: تکليف. فنا: مرګ. بقا: ژوند.

| يکي تندرست ويکي ناتوان. | يکي سال خورد ويکي نوجوان |
|---|---|
| څوک روغ او څوک کمزوری وي | څوک سپين ږيری او څوک ځوان وي |

| یکي در دعاء ویکي دردغـــا | یکي درصواب ویکي در خـطا |
|---|---|
| څوک په دعاء کي او څوک په دوکه کي وي | څوک پر صحیح او څوک پر خطا وي |

**خلاصه:** یعني څوک پر صحیح لار روان وي او څوک پر غلطه لار روان وي، څوک د الله ﷻ په دعاء او زارئ بوخت وي او څوک خلکو ته په دوکه ورکولو کي بوخت وي.

| یکي غرق دربحر فسق وفساد | یکي نیک کردار ونیک اعتقاد |
|---|---|
| او څوک د فسق او فساد په دریاب کي غرق وي | څوک ښه عمل کوونکی او ښه عقیده لرونکی |

| یکي بردبار ویکي جنجگوئـــي | یکي نیک خلق ویکي تندخوی |
|---|---|
| څوک زغم لرونکی او څوک جګړه کوونکی وي | څوک ښه اخلاق والا او څوک بد عادته وي |

| یکي درمشقت یکي کامــیاب | یکي در تنعم یکي در عــذاب |
|---|---|
| څوک په تکلیفو کي او څوک کامیاب وي | څوک په نعمتو کي او څوک په عذاب کي وي |

| یکي درکمند حوادث اســیر | یکي درجهان جلالت امــیر |
|---|---|
| او څوک د غمونو په جال کي راګیر وي | څوک د بزرګۍ په نړۍ کي سردار وي |

**مشکل الفاظ:** جلالت: بزرګي، حوادث: پیښي، آفات او غمونه.

| یکي باغم و رنج ومحنت ندیم | یکي درگلستان راحت مـقیم |
|---|---|
| او څوک د غم او تکلیف هم ناستی وي | څوک د ارام په باغ کي اوسېدونکی وي |

| یکي درغم نان وخـرچ عیـــال | یکي را برون رفت زاندازه مال |
|---|---|
| څوک د ډوډۍ او د کورنۍ د مصرف په فکر کي | د چا مال ووتی تر اندازې زیات |

**مشکل الفاظ:** خرچ: مصرف، عیال: کورنۍ.

| یکي را دل آزرده خاطر حزن | یکي چون گل ازخرمي خنده زن |
|---|---|
| او د چا زړه غمجن او دردمند وي | څوک د گل غوندې د خوشحالي خندا کوونکی |
| یکي درگناه برده عمري بسـر | یکي بسته از بهر طاعت کمر |
| او چا په گناهونو کي ټول عمر تیر کړی وي | چا د عبادت لپاره ملا ترلې وي |

**مشکل الفاظ:** کمربستن: ملاتړل، اماده کېدل، بسربردن تمام: ختمول.

| یکي خفته درکُنج میخانه مست | یکي را شب و رُوز مصحف بدست |
|---|---|
| او یو بېده وي په شراب خانه کي مست | د چا په لاس کي شپه او ورځ قرآن کریم وي |

**مشکل الفاظ:** کنج: کونج، میخانه: شرابخانه.

| یکي در ره کفر زنـــــار دار | یکي بردر شرع مسمـــار وار |
|---|---|
| او څوک د کفر په لاره کي توبند لرونکی وي | څوک د شریعت پر دروازه د میخ غوندي |

**مشکل الفاظ:** مسمار: میخ، زنار: هغه تار چي هندوان او اورپرست خلگ يې په غاړه کوي، توبند

**خلاصه:** یعني څوک بالکل د شریعت پابند وي لکه میخ او چا د کفر توبند په غاړه کړی وي.

| یکي مدبر وجاهل وشرمسـار | یکي مقبل وعالم وهوشــــیار |
|---|---|
| څوک بدبخت، جاهل او شرمېدلی وي | څوک منل سوی ، عالم او هوښیار وي |

**مشکل الفاظ:** د عالم څخه دیني علم لرونکی او په هغه عمل کوونکی مراد دی.

| یکي بزدل وسست وترسنده جان | یکي غازي وچابک وپـــهلوان |
|---|---|
| څوک بې زړه، سُست او بېرېدونکی وي | څوک غازي، چالاکه او پهلوان وي |

**مشکل الفاظ:** غازي: جهاد کوونکی، چابک: چالاک، ترسنده جان: بېرېدونکی.

**خلاصه:** یعني څوک د الله ﷻ د دین د لوړی لپاره چالاک، زړه ور او د دښمنانو سره مقابله کوونکی وي او څوک بې زړه او بې غیرته په خپل کور کي ناست وي.

| يكي كاتب اهل ديانت ضمير | يكي دزد باطن كه نامش دبير |
|---|---|
| څوک امانتدار او ضمير لرونكى منشي وي | څوک د باطن غل وي چي نوم يې منشي وي |

**خلاصه:** يعني په دولتي كاركوونكو كي ځيني كسان ايمانداره او امانت داره وي، د رشوت، غلا او بې ايمانى څخه ځان ساتي او ځيني رشوت اخيستونكي او غله وي، په ښكاره خو هغوئ ته منشي ويل كيږي مگر په حقيقت كي د رشوت اخيستلو او حرام خوړلو په وجه باطني غله دي.

# در منع اميد از مخلوق

د مخلوق څخه د اميد د منع په بيان كي.

په مخكني عنوان كي په تفصيل سره وښودل سوه چي په كائناتو كي هر څه كيږي هغه ټول د الله ﷻ په قدرت او اراده كيږي، شتمن او غريب ټول د هغه محتاج دي، ځكه نو عقلمند او هوښيار سړى يوازي د الله ﷻ څخه اميد لري، ګټه او تاوان د هغه له خوا څخه ګڼي، د ضرورت په اندازه د اسبابو اختيارولو وروسته يوازي په الله ﷻ باور لري، په دغه فاني دنيا باندي د يوې لحظې لپاره باور نه كوي، شيخ رحمه الله د دغه حقيقت ته توجه راګرځوي.

| ازين پس مكن تكيه بر روزگار | كه ناگاه زجانت بر آرد دمـار |
|---|---|
| وروسته تر دې مه كوه باور پر زمانې باندي | ځكه ناڅاپه به ستا ځان هلاك سي |

**مشكل الفاظ:** دمار: هلاكت، مرگ، روزگار: زمانه، ناگاه: ناڅاپه،

| مكن تكيه بر لشكر بي عـدد | كه شـايد زنصرت نيابي مدد |
|---|---|
| مه كوه باور پر بې شميره لښكر باندي | ځكه كېداى سي چي د هغه څخه نصرت تر لاسه نه كړې |

**خلاصه:** د فوځ مشرانو ته لارښوونه ده چي يوازي پر لښكر او وسله باندي باور مه كوئ ځكه د الله ﷻ د مرستي څخه ماسيوا لشكر جرار هم بې ګټي دی، په تاريخ كي په څو څو واره راغلي دي چي يو كوچني لښكر پر لوی لښكر غالب سوی دی كوم چي د الهي مرستي څخه محروم وه.

| مکن تکيه بر ملک وجاه وحشم | که پيش از تو بودست وبعد از تو هم |
|---|---|
| باور مه کوه پر ملک، مرتبې او مزدورانو باندي | ځکه ترتا مخکي هم سوي دي او وروسته به هم وسي |

**خلاصه**: يعني د دنيا ذکر سوي شيان مخکي هم د يو چا سره وه چي د هغه ځخه په نقل کېدو سره تا ته راورسېدل، بيا يوه ورځ به ستا ځخه بل چا ته منتقل سي ځکه نو بايد دنيوي شيان اصلي مقصد ونه گرځول سي.

| مکن بد که بدبيني ازيار نيک | نمي رويد از تخم بد بار نيک |
|---|---|
| بد مه کوه ځکه بد به ووينې د نيک ملگري ځخه | نه پيدا کيږي د بد تخم ځخه ښه ميوه |

**خلاصه**: يعني هيڅوک بايد بد ونه کړي او چا ته تکليف ونه رسوي کنه نو هغه به هم ستا سره بد چلند وکړي، ځکه دا يو منل سوی حقيقت دی چي د غنم ځخه غنم شنه کيږي او د اوربشو ځخه اوربشي.

| بسا بادشاهان سلطان نشان | بسا پهلوانان کشورستان |
|---|---|
| ډېر پاچاهان د غلبې ښه لرونکي | ډېر پهلوانان د هيوادو لرونکي |

**مشکل الفاظ**: بسا: ډېر، کشورستان: د هيواد لرونکي.

| بسا تندگردان لشکر شکن | بسا شيرمردان شمشيرزن |
|---|---|
| ډېر سخت پهلوانان لښکر ته ماتې ورکوونکي | ډېر زړه ور او توره وهونکي کسان |

| بسا ماهرويان شمشاد قد | بسانازنينان خورشيد خد |
|---|---|
| ډېر ښکلي د شمشاد غوندي قد لرونکي | ډېر معشوقان د لمر غوندي باړخو لرونکي |

**مشکل الفاظ**: ماهرويان: سپوږمۍ غوندي، شمشاد: د يو درختي نوم دی چي لوړه، سيده او ښکلې وي، نازنينان: نازلرونکي، خورشيد: لمر، خد: باړخو.

| بساماهرويان نوخاسته | بسا نو عروسان آراسته |
|---|---|
| ډېر د سپوږمۍ غوندي ښکلي ځوانان | ډېري ښکلي ناوي سنگار سوي |

**مشکل الفاظ**: نوخاسته: ځوانان، عروس: ناوې، آراسته: سنګار سوې.

| بسانامدار وبــــسا کامګار | بسا سر و قد وبسا ګلــــعذار |
|---|---|
| ډېر نامتو او ډېر کامیاب | ډېر قدر لرونکي او ډېر د ګل غوندي |

**مشکل الفاظ**: سرو: یوه جګه او ښکلې درخته، ګلعذار: یعني د ګل غوندي بارخوګان.

| که کردند پیراهن عمر چاک | کشیدند سردر ګریبان خاک |
|---|---|
| چې هغوئ د خپل عمر لمن پرې کړې وي | دننه یې کړی سر د خاورو په ګرېوان کي |

**مشکل الفاظ**: پیراهن: لمن، چاک: پرې کول، یعني مرګ ، سردرګریبان خاک کشیدن: یعني ښخېدل،

**خلاصه**: یعني په یادو سوو خلګو کي چي تر یو وخت پوري یې په دنیا کي په شان او شوکت، ښکلا او زور سره ژوند وکړی مګر په پای کي د خاورو سره خاوري سوه او د دنیا څخه د هغوئ نوم او نښان ختم سو، وروسته همدغه حقیقت بیانوي چي:

| چنان خرمن عمر شان شد بباد | که هرګز کسي زان نشاني نداد |
|---|---|
| همدارنګه د هغوئ د عمر درمن برباد سو | چي هیڅکله چا د هغوئ معلومات ونه کړی |

کله چي تا د فاني دنیا حقیقت وپېژندی نو اوس په راتلونکي کي په دغه نصیحت عمل وکړه:

| منه دل برین منزل جانستان | که دروی نه بیني دلي شادمان |
|---|---|
| مه اېږده زړه پر دغه ځان اخیستوني ځای باندي | چي ته به نه ووینې په هغه کي یو زړه خوشحاله |

**خلاصه**: یعني په دنیا کي هیچا ته پوره خوشحالي تر لاسه سوې نه ده، هر څوک په یو غم اخته وي، د چا سره چي څومره زیاته شتمني وي هغومره زیات پریشانه وي.

| منه دل برین کاخ خرم هــوا | که میبارد از آسمانش بــــلا |
|---|---|
| زړه مه لګوه پر دغه ښه هوا لرونکي ماڼۍ | ځکه اورېږي د هغه د آسمان څخه غمونه |

**خلاصه:** دنیا چي په ښکاره یو ښه او زړه وړونکې معلومیږي د هغې سره زړه مه لګوه ځکه دلته به د ډېرو مشکلاتو او ستونزو سره مخامخ سې .

| ثباتي ندارد جهان اي پــــسر | به غفلت مبر عمر دروی بسر |
| --- | --- |
| ثبات نه لري دنیا اي هلکه ! | په غفلت سره مه ختموه عمر په دې کي |

**مشکل الفاظ:** ثباتي: ثبات، همېشتوب، بسربردن: ختمول .

**خلاصه:** باید د فاني دنیا سره مینه ونه کړل سي او نه باید وخت په غفلت تېر کړل سي بلکه خپل قیمتي وخت په نیکۍ او عبادت کي تېر کړل سي .

| مکن تکیه بر ملک وفرماندهي | که ناګه چوفرمان رسد جان دهي |
| --- | --- |
| باور مه کوه پر ملک او حکومت باندي | ځکه کله چي حکم وسي نو ته به ځان ورکوې |

**خلاصه:** یعني په دنیا کي تر ټولو لوی شی پاچاهي او شتمني ده، دا هم انسان د مرګ څخه ساتلای نه سي، کله چي الله ﷻ پر ټاکلي وخت د مرګ ملائکي ته امر وکړي نو د دنیا هیڅ یو طاقت تا د یوې لحظې لپاره ځنډولای نه سي لکه چي د الله ﷻ ارشاد دی: (فاذا جاء اجلهم لایستاخرون ساعة ولایستقدمون). پ ۸.

| منه دل برین دیر ناپــــائیدار | زسعدي همین یک سخن یاد دار |
| --- | --- |
| زړه مه لګوه ددغه فاني بت خاني سره | د سعدي دغه یوه خبره په یاد ولره |

**مشکل الفاظ:** دیر: بت خانه، ګنبد، ناپائیدار: بې ثباته .

**خلاصه:** یعني که څیري د سعدي رحمه الله نور نصیحتونه یادولای نه سې نو کم تر کمه دغه یو نصیحت خو په یاد ولره چي دا دنیا فاني ده او باید هیڅکله ورسره مینه ونه کړل سي ، باید آخرت ته فکر وکړل سي چي تل پاتي ژوند او تل پاتي راحتونه دي، دنیا باید د آخرت د کامیابۍ لپاره یوه ذریعه وګرځول سي چي یوازیني صورت یې په انفرادي او ټولنیز ژوند کي د الله ﷻ د احکامو پوره پابندي او د سیرت نبوي ﷺ پوره تابعداري ده.

ربنا آتنا في الدنیا حسنة وفي الاخرة حسنة وقنا عذاب النار .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# در توحید باري تعالی

د الله ﷻ د توحيد په بيان کي.

**تشریح:** توحید: الله ﷻ یو منل ، باري: پیدا کوونکی، د الله ﷻ نوم، تعالی: لوړ دی،

| نام حق بر زبان هـــمي رانیم | که بجان ودلش همي خوانیم |
|---|---|
| موږ د الله ﷻ نوم پر ژبه راوړو | ځکه موږ هغه په ځان او زړه سره وایو |

**مشکل الفاظ**: نام حق: د خدای ﷻ یو نوم، حق: د الله ﷻ د صفاتي نومونو څخه یو نوم یعني واجب، موجود ثابت، خوانیم: وایو .

**خلاصه:** یعني موږ مسلمانان د الله ﷻ په ژبني ذکر بوخت یو ځکه زموږ زړونه د هغه په یاد کي اباد دي او د منافقانو په ډول نه دي چي زړونه یې غافل او د ذکر د خوند څخه ناخبره دي، او یا دا مطلب دی چي موږ یوازي پر ژبني ذکر اکتفاء نه کوو بلکه په زړه او ځان سره د هغه ذکر کوو.

| ملک وصانع وقدیم وحـــکیم | خالق ورازق وروف ورحـــیم |
|---|---|
| هغه پاچا، جوړوونکی، د تل څخه او حکیم دی | پیداکوونکی، رزق ورکوونکی، مهربان او رحم کوونکی دی |

**مشکل الفاظ**: ملک: پاچا، صانع: جوړوونکی، قدیم: پخوانی، د تل څخه، حکیم: حکمت والا، رؤف: مهربان، بخښونکی، رحیم: رحم کوونکی .

| هر چه هست از بلندي وپستي | همه زویافت صورت هـــستي |
|---|---|
| هر څه چي دي په لوړه او کښته کي | ټولو د هغه څخه تر لاسه کړی دی صورت |

**مشکل الفاظ:** هر چه هست: هر څه چي دي، بلندي: لوړي، یعني اسمانونه او داسي نور، پستي: کښته والی، یعني مځکه او هغه چي په مځکه کي دي، همه: ټول، یافت: تر لاسه کړي، صورت: شکل .

| طاعت اوست فرض عین شده | برهمه خلق همچو دین شـــده |
|---|---|
| د هغه اطاعت کول فرض عین سو | پر ټول مخلوق باندي د پور غوندي سو |

**مشکل الفاظ**: طاعت: فرمانبرداري، برهمه: پرټول، همچو: لکه، دین: پور.

| داد مارا کتاب تاخــــوانیم | کرد مارا خطاب تـــادانیم |
| --- | --- |
| موږ ته یې کتاب راکړی چې موږ یې وواییو | موږ ته یې خطاب وکړی تر څو موږ پوه سو |

**مشکل الفاظ**: مارا: موږ ته، دانیم: پوه سو، خطاب: خبري.

**خلاصه**: یعني الله ﷻ د خپل حبیب ﷺ په واسطه موږ ته قرآن کریم راکړی دی تر څو موږ د هغه په تلاوت کولو سره د الله ﷻ سره د خبرو کولو شرف تر لاسه کړو او موږ یې په خپلو شریفو ویناوو نازولي یو.

| هر چه او گفت آن کنیم همه | طاعت او بجان کنیم هـــمه |
| --- | --- |
| هر څه چې هغه ویلي دي باید موږ هغه وکړو | د هغه فرمانبرداري په ځان سره وکړو ټول |

**مشکل الفاظ**: هرچه: هر څه، گفت: ویلي دي، آن: هغه، کنیم: وکړو، همه: ټول.

**خلاصه**: هر څه چې الله ﷻ موږ ته په قرآن کریم کې ویلي دي باید په هغه باندي په هر حال عمل وکړو تر څو په دوارو جهانونو کې کامیابي تر لاسه کړو.

| آنچه او گفت غیرآن کـــردن | نیست سودي بجز زیان کردن |
| --- | --- |
| هر څه چې هغه ویلي دي د هغه څخه ماسیوا کول | نسته هیڅ ګټه پکښې بیله تاوانه |

**مشکل الفاظ**: سود: ګټه، غیرآن: ماسیوا د هغه څخه، بجز: بیله. زیان: تاوان.

**خلاصه**: یعني الله ﷻ چې موږ ته څه ویلي دي یوازې په هغه کولو کې د دوارو جهانونو ګټه ده او د هغه څخه ماسیوا په نورو کارو کې هیڅ ګټه نسته.

| روز وشب طالب قبول وی ایم | پیرو وامت رسول وی ایـــم |
| --- | --- |
| شپه او ورځ د هغه د قبلېدو غوښتونکي یو | موږ د هغه د رسول امت او پیروان یو |

**مشکل الفاظ**: پیرو: پیروان، د هغه پر نقش قدم تلونکي، روز: ورځ، ایم: یم.

# در نعت سيدالمرسلين ﷺ

د رسولانو د سردار ﷺ په ستاینه کي.

**تشریح**: در: په، نعت: ستاینه، ښېګڼه،

| شکر حق را که پیشوا داریـم | پیشوائي چو مصطفی داریـم |
|---|---|
| د الله ﷻ شکر دی چي موږ لاربنود لرو | ستر لاربنود د حضرت محمد ﷺ غوندي لرو |

**مشکل الفاظ**: حق: الله ﷻ، پیشوا: لاربنود، امام، چو: لکه، داریم: لرو.

**خلاصه**: مصنف رحمه الله وایي چي موږ د الله ﷻ شکر ادا کوو چي موږ ته یې د حضرت محمد ﷺ غوندي ستر پیشوا او لاربنود راکړی دی، دا دومره لوی انعام دی چي په ټول ژوند کي د هغه حق ادا کېدای نه سي، مصنف رحمه الله دغه آیت کریمه ته اشاره کړې ده: (لقد من الله علی المؤمنین اذ بعث فیهم رسولا من انفسهم...) پ۴،

| مهتر وبهتر وگـــزین همه | سرور وخاتـــم ونگین همه |
|---|---|
| د ېر بزرگ، غوره او په ټولو کي غوره کړل سوی دی | سردار، آخري نبي او د ټول مخلوق خلاصه ده |

**مشکل الفاظ**: مهتر: بزرگ، بهتر: ډېر ښه، گزین: چڼل سوی،غوره کړل سوی، همه: ټول، خاتم: ختمونکی، نگین: ملغلره، عقیق.

**خلاصه**: د خاتم په لفظ کي دغه آیت کریمه (وخاتم النبیین) ته اشاره ده، په ځینو نسخو کي د (خاتم نگین) الفاظ دي چي معنی به یې داسي وي: رسول الله ﷺ د ټولو نبیانو د شریعتونو خاتم یعني منسوخ کوونکی دی.

| او شریعت بیان کند مـــارا | او طریقت عیان کند مـــارا |
|---|---|
| هغه شریعت بیانوي موږ ته | هغه طریقت ښکاره کوي زموږ لپاره |

**مشکل الفاظ**: شریعت: په ظاهري کړنو کي د رسول الله ﷺ د پیروۍ کولو نوم شریعت دی،

طریقت: په باطني افعالو کي اقتداء ته طریقت وایي، عیان: څرګند ول.

| ضلوات خــــــدا بر وی باد | تا بروز جـــــــزا پیاپي باد |
|---|---|
| د الله ﷻ رحمتونه دي وي پر هغه باندي | د قیامت تر ورځي پوري پرله پسې دي وي |

**مشکل الفاظ:** صلوات: د صلوة جمع یعني رحمت، روزجزاء: د قیامت ورځ، پیاپي: پرله پسې.

| امت او و دوستدار وي ایــم | دوستدار چهاریـــــار وی ایم |
|---|---|
| موږ د هغه امت او د هغه سره مینه کوونکي یو | مینه کونکي د هغه د څلورو یارانو سره یو |

**مشکل الفاظ:** دوستدار: مینه کوونکي، چهاریار: څلور یاران. وی: د هغه . ایم: یو.

| چو ابوبکر هم عــــمر عثمان | مرتضی دان علیهم الرضـــوان |
|---|---|
| لکه ابوبکر هم عمر او هم عثمان | علي مرتضی د الله ﷻ رضا دي وي پر هغوئ |

**خلاصه:** لومړی خلیفه چي نوم یې عبدالله بن ابي قحافه دی، صدیق او عتیق یې لقب دی او ابوبکر یې کنیت دی، د نوموړي نسب په اتم نیکه کي د رسول الله ﷺ سره یو ځای کیږي، نوموړی تر رسول الله ﷺ وروسته د مسلمانانو خلیفه سو، دوه کاله دري میاشتي او نهه ورځي یې خلافت وکړی او په پای کي د جمادي الاخرى په دوه ویشتمه نېټه په ۱۳ هـ کال له دنیا څخه رحلت وکړی او د رسول الله ﷺ په څنګ کي خاورو ته وسپارل سو.

دوهم خلیفه امیرالمؤمنین حضرت عمر فاروق رضي الله عنه، نوم یې عمر، لقب یې فاروق او کنیت یې ابوحفص دی، په نسب کي د نهم نیکه څخه د رسول الله ﷺ سره یو ځای کیږي، د کعب دوه زامن وه، مره او عدي، د مره په اولاد کي رسول الله ﷺ او د عدي په اولاد کي فاروق اعظم رضي الله عنه وو، زیږیدنه یې د فیل تر پیښي دیارلس کاله مخکي سوې ده، عمر یې درو شپیته کاله وو، د نبوت په شپږم کال د دروديرشو کالو په عمر یې اسلام راوړی، د نوموړي په خلافت کي چي د اسلام څومره خیرونه او فتوحات وسوه د هغه بل مثال نه تر سترګو کیږي، دوه کُاله شپږ میاشتي او پنځه ورځي یې خلافت وکړی، د سهار په لمانځه کي د ابولولو له خوا په شهادت ورسیدی او د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په څنګ کي خاورو ته وسپارل سو.

دریم خلیفه امیر المؤمنین ذوالنورین عثمان بن عفان ﷺ: نوم یې عثمان او لقب یې ذوالنورین دی، د نسب په پنځمه پیړۍ کې د رسول الله ﷺ سره یو ځای کیږي، زیږیدنه یې د فیل تر پیښې شپږ کاله وروسته سوې ده، د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په بلنه په اسلام مشرف سو، دوولس ورځې کم دوولس کاله یې خلافت وکړی او په ۱۸ ذوالحجه ۳۵ھ کال په ډېر مظلومیت سره د باغیانو له خوا شهید کړل سو، دا لومړۍ پیښه وه چې د مسلمان توره پر مسلمان پوره سوه او لومړنی فتنه وه چې په دغه امت کې خپره سوه چې د فتوحاتو دروازه یې بنده کره.

څلورم خلیفه حضرت علي المرتضی کرم الله وجهه: نوم یې علي او لقب یې اسدالله، حیدر او مرتضی دی، کنیت یې ابو الحسن او ابوتراب دی، په نسب کې رسول الله ﷺ ته ډېر نژدې دی، د نوموړي پلار ابو طالب چې نوم یې عبدمناف وو او د رسول الله ﷺ د پلار حضرت عبدالله ورور وو، د نوموړي پلار په اسلام مشرف سوی نه وو ، د مور او پلار دواړو له خوا هاشمي دی، حضرت علي ﷺ د ورکتوب څخه د رسول الله ﷺ سره وو او د رسول الله ﷺ د لور بي بي فاطمې رضي الله عنها نکاح یې د هغه سره کړې وه، درې میاشتې کم پنځه کاله یې خلافت وکړی او په پای کې په یوویشتم د رمضان ۴۰ هجري په شهادت ورسیدی او د نجف په ځای کې خاورو ته وسپارل سو، رضي الله عنهم،

| رحمت حق نثـــــار یارانش | باد وبــــرجمله دوستدارانش |
|---|---|
| د الله ﷻ رحمت دې وي د هغه پر یارانو | او د هغه پر ټولو دوستانو دې قربان سو |

**مشکل الفاظ:** نثار: قربان، یارانش: د هغه یاران، جمله: ټول. باد: وي دې.

# آغاز كتاب مستطاب

## واعتذار از جانب مصنف كتاب

د پاک کتاب پیل او د کتاب د مصنف له خوا عذر کول.

**تشریح:** آغاز: پیل کول، مستطاب: ښه، پاک، اعتذار: عذره کول، مصنف: لیکوال.

| اي مصلي بيا طهارت كن | خانه دين خود عمارت كن |
|---|---|
| اې لمونځ كونكي! راسه پاكي وكړه | د خپل دين كور اباد كړه |

**مشكل الفاظ:** اې: حرف نداء، يو ځا ته د رغ كولو لپاره، مصلّي: لمونځ كوونكى، بيا: راسه، خانه: كور، عمارت كن: جوړ كړه، اباد كړه.

**خلاصه:** د شعر مطلب دادی چې لمونځ کوونکی باید لومړی د حقیقي او حکمي ناپاکی مسائل زده کړي او بیا د لمانځه احکام زده کړي، تر څو لمونځ په ښه توګه ادا کړل سي او د پنځو ستنو لرونکو کور څخه تر ټولو مهمه ستن یعني لمونځ ادا کړل سي، لکه چي په حدیث شریف کي دي (الصلوة عماد الدين...) لمونځ د دين ستن ده چا چي لمونځ وکړی هغه دين قائم کړی او چا چي لمونځ پرېښودی هغه بېله شکه دين ونړوی، په بل حديث کي دي (بني الاسلام على خمس...) يعني د اسلام مانۍ پر پنځو ستنو ولاړه ده چي كلمه شهادت، لمونځ، روژه، زكوة او حج دي.

| چون بياري طهارت ظاهر | باطنت نيز حق كند طاهر |
|---|---|
| كله چي وكړې ته د ظاهري بدن پاكي | نو ستا باطن به هم الله ﷻ پاک کړي |

**مشكل الفاظ:** چون: كه چيرې، كله چي، بياري: راوړې، طهارت: پاكي، طاهر: پاک.

| آن طهارت كه قسم جسم آمد | ظاهرت را همه سه قسم آمد |
|---|---|
| هغه پاكي چي د بدن د ډول څخه راځي | ستا د ظاهر لپاره ټول درې ډولونه دي |

**مشکل الفاظ**: قسم جسم: يعني انساني بدن،

**خلاصه**: يعني د انسان د بدن سره اړوند پاکي درې ډوله ده: اودس، غسل او تيمم.

| تن بغسل و وضو چو پاک کني | آب گر نيست قصد خاک کني |
|---|---|
| بدن په غسل او اوداسه چې څرنګه پاکوې | همدارنګه که اوبه نه وي نو د خاورو اراده وکړه |

**مشکل الفاظ**: تن: بدن، آب: اوبه، قصد: اراده، خاک: خاوره. گر: که چيري.

**خلاصه**: تر دې مخکې د پاکۍ درې ډولونه په اجمالي توګه ذکر سوه، اوس د هغو لږ غوندي تفصيل کوي که چيري پر اوبو قدرت وي نو حدث اصغر (کوچنۍ بې اودسي) په اوداسه سره پاکيږي او حدث اکبر (لويه بې اودسي) په غسل کولو سره پاکيږي، او که چيري پر اوبو باندي قدرت نه وي نو بيا په تيمم کولو سره هم پاکي تر لاسه کيږي.

| شرح اين هر سه نوع راگـويم | زان که چو گان شرع راگويم |
|---|---|
| زه ددغو درو ډولو تشريح کوم | په داسي توګه چې شريعت څرنګه وايي |

**مشکل الفاظ**: شرح: تشريح، نوع: ډول، قسم، گويم: وايم، زانکه: ددې لپاره.

**خلاصه**: مطلب دا چې څرنګه ګين د لرګي تابع وي همدارنګه زه هم د شريعت تابع يم، هري خوا ته چې ما شريعت بيايي هلته به ځم.

| در طهارت فريضه وســـــنت | بر تو خوانم روان وبي مـــنت |
|---|---|
| په پاکۍ کي فرضونه او سنتونه | تا ته وايم بيله تکلفه او پرته له احسان اچولو |

**مشکل الفاظ**: فرض: هغه چې ثبوت يې په دليل قطعي سره وي، سنت: هغه کار چې نبي کريم ﷺ زيات وختونه کړی وي، د فرض او سنت نور زيات تفصيل به وروسته راسي، روان: بيله تکلفه، منت: احسان اچول.

**خلاصه**: يعني زه مصنف د شريعت احکام او مسائل بيله احسان اچولو او بيله تکلفه بيانوم چې پر ويونکو باندي اسان وي تر څو ثواب مي ضائع نه سي.

| پس بیان نماز و روزه کــــنم | توشه عمر پنج روزه کــــنم |
| --- | --- |
| بیا به د لمانځه او روژې بیان وکړم | توښه به د عمر دا پنځه ورځي کړم |

**مشکل الفاظ:** پس: بیا، کنم: کوم، توشه: توښه، غزا، قوت،

**خلاصه:** د پنځو ورځو ژوند څخه لنډ ژوند مراد دی، دا هم ویل کیدای سي چي د اوني څخه د زیږېدني او مړني ورځ وایستل سي نو پنځه ورځي پاتیږي .

| آبدست ونماز بایـــــد کرد | دل مقام نیاز بایـــــد کرد |
| --- | --- |
| باید اودس او لمونځ وکړل سي | زړه باید د عاجزۍ ځای وي |

**مشکل الفاظ:** آبدست: اودس، نماز: لمونځ ، دل: زړه، نیاز: عاجزي .

**خلاصه:** زړه باید د عاجزۍ ځای وي: یعني لمونځ باید په خشوع او د زړه په حضور سره وکړل سي لکه چي الله ﷻ فرمائي: (قد افلح المؤمنون الذين هم في صلوتهم خاشعون) په تحقیق سره کامیاب سوه هغه مؤمنان چي په لمانځه کي خشوع کوونکي دي . سورة المؤمنون.

| روز محشر که جان گداز بـود | اولین پرسـش نمــــاز بود |
| --- | --- |
| د قیامت ورځ چي ځان ویلي کېدونکی دی | په هغه ورځ به لومړی پوښتنه د لمانځه کیږي |

**مشکل الفاظ:** روز محشر: د قیامت ورځ، محشر: د جمع کېدو ځای ، گداختن: ویلي کېدل، اولین: لومړی، پرسش: پوښتنه .

**خلاصه:** مصنف رحمه الله د لمانځه ازرښت بیانول غواړي چي د قیامت په ورځ چي انسان به د ډېري سختۍ څخه ویلي کیږي، تر ټولو مخکي د لمانځه حساب کیږي، لکه چي په حدیث شریف کي راغلي دي: اول ما يحاسب به العبد يوم القيامة الصلوة، تر ټولو مخکي چي د کوم شي حساب د بنده سره د قیامت په ورځ کیږي هغه لمونځ دی، سوال: په یو بل روایت کي راغلي دي: اول ما يقضى بين الناس يوم القيامة الدماء: یعني تر ټولو مخکي چي د کوم شي فیصله د قیامت په ورځ کیږي هغه به د وژني حساب وکړل سي، نو په ښکاره خو په دواړو روایتونو کي ټکر معلومیږي، جواب یې دادی چي په دواړو حدیثونو کي اولیت اضافي مراد دی یعني په

حقوق الله کي تر ټولو مخکي د لمانځه حساب کیږي او په حقوق العباد کي تر ټولو مخکي د وژني فیصله کیږي، فتطابقت الروایتان.

| پس مکن در نماز ها تقـصیر | تادران روز باشدت تـــوقیر |
|---|---|
| نو مه کوه په لمونځونو کي کوتاهي | تر څو په هغه ورځ ستا عزت وي |

**مشکل الفاظ**: پس: نو، مکن: مه کوه، تقصیر: کوتاهي، توقیر: درناوی، عزت.

**فائده**: په لمانځه کې د سستئ انتهاء داده چي د لمانځه وخت تېر سي او لمونځ قضاء کړل سي، دا ډېره لویه گناه ده، همدارنگه د واجباتو او سنتونو پرېښودل، په لمانځه کي مکروهات کول، دا ټول د سستئ او کهالئ نښي دي، اللهم احفظنا من التقصیر في الصلوة. آمین.

| خودسنائي چه بس نکوگفت ست | درمعنی نگر که چون سفت است |
|---|---|
| حکیم سنائي څومره ښه ویلي دي | وګوره د حقیقت ملغلري یې څرنګه پیولي دي |

**مشکل الفاظ**: خود: مثل، خپله، سنائي: د غزني یو مشهور شاعر چي د حدیقة الحقیقة مصنف دی، نکو: ډېر ښه، دُر: ملغلري، نگر: وګوره، سفتن: پیودل.

| غم دین خور که غم غم دین ست | همه غمها فـــروتر ازین است |
|---|---|
| د دین غم وکړه چي اصل غم د دین غم دی | نور ټول غمونه تر دې لاندي وي |

**مشکل الفاظ**: خور: وخوره، فروتر: ډېر کښته، غم دین: د دین فکر.

| غم دنیا مخور که بیهود است | هیچکس در جهان نیاسود است |
|---|---|
| د دنیا غم مه کوه ځکه بې ګټي دی | هیچا په دنیا کي آرام تر لاسه کړی نه دی |

**مشکل الفاظ**: مخور: مه خوره، مه کوه، بیهود: پالتو، بې ګټي، نیاسوداست: ارام یې تر لاسه نه کړي،

| من بعجز و قصور معترفـــم | ني چونادان واحمق وخـــرفم |
|---|---|
| زه د خپلي کمزورۍ او کوتاهۍ اقرار کوم | دناپوه، بې شعوره او بې عقل بوډا غوندي نه یم |

**مشکل الفاظ:** عجز: کمزوري، قصور: کوتاهي، معترفم: اقرار کوم، ني: نه، یا هغه لرګی چي قلمان ور څخه جوړیږي، خرف: بې عقل سپین ږیری.

**خلاصه:** د شعر مطلب څرګند دی چي مصنف رحمه الله د خپلي عاجزۍ او کمزورۍ په توګه وايي چي په ما کي انساني کمزوري سته مګر د ناپوه او بې عقل غوندي د خپلي علمي ورتیا دعوه کوونکی نه یم.

| عذر من صـنف قد استهدف | پیش ازین گفته اند اهل سلف |
|---|---|
| چا چي تصنیف کړی دی ېبله شکه په نښه سوی دی | تر دې وړاندي مخکنیو خلګو عذر کړی دی |

**مشکل الفاظ:** سلف: مخکني خلک، تصنیف: د کتاب جوړول، قد استهدف: بېله شکه هغه په نښه سو،

**خلاصه:** مصنف رحمه الله وايي چي د تصنیف او تالیف کار ډېر سخت دی تر دې چي مخکنیو خلګو هم دا عذر بیان کړی دی چي چا کتاب ولیکی نو پوه سه چي د خلګو د ملامتیا او نیوکو ښکار سو.

| به زبیکاري وخمـــــوشیدن | لیک بر قدر خویش کوشیدن |
|---|---|
| تر بېکار او پټه خوله کېدو غوره دي | مګر د خپل توان سره سم کوښښ کول |

**مشکل الفاظ:** لیک: د لیکن مخفف یعني مګر، قدر: طاقت، خموشیدن: پټه خوله کېدل.

**خلاصه:** دلته سوال پیدا سو چي کله د کتاب لیکنه د خلګو د ملامتیا او نیوکو سبب دی نو بیا مصنف رحمه الله ولي دغه کتاب تصنیف کړی، مصنف رحمه الله په دغه شعر سره د سوال جواب ورکوي چي تر بې کاره ناستي او پټه خوله کېدو د خپل توان مطابق کوښښ کول ښه خبره ده.

| فقه را برد نظم پـــــوشیدم | من بقدر مجال کـــــوشیدم |
|---|---|
| فقه ته مي د نظم څادر ور واغوست | ما د خپل توان سره سم کوښښ وکړی |

**مشکل الفاظ:** مجال: توان، کوشیدم: کوښښ کول، فقه: پوهه او په اصطلاح کي د شرعي مسائلو زده کولو ته فقه وايي، برد: څادر، پوشیدم: ور اغوستل.

**خلاصه:** فقه ته د نظم پټو اغوستل: يعني شرعي مسائل په شعرونو کي بيانول، مصنف رحمه الله د خاکسارۍ په توګه خپلو اشعارو ته معمولي ووېل ځکه برد عام پټو ته وايي.

| نکني عيب گر تـــــو بتواني | که در وحله بپـــــــوشاني |
|---|---|
| مه کوه عيب که چيري ته کولای سې | دا چي هغه ته جامه ور واغوندې |

**مشکل الفاظ:** نکني: مه کوه، بتواني: که ممکن وي، حله: جوړه، جامې، پپوشاني: واغونده.

**خلاصه:** مصنف رحمه الله وايي که چيري يو څوک د فقه مسائل په شعرونو کي بيانولای نه سي نو هغه بايد په عيب ويلو او نيوکو کي وخت ضائع نه کړي.

| اسپ تازي گر چه بـــه تازد | لاشه خر خويشـــــتن نيندازد |
|---|---|
| عربي آس که څه هم تېز ځغلي | کمزوری خر خپل ځان نه غزاروي |

**مشکل الفاظ:** اسپ: آس، تازي: عربي، به: غوره، ښه، تازد: ځغلي، لاشه: کمزوری، خويشتن: خپل ځان، نيندازد: نه ايله کوي، نه غزاروي.

**خلاصه:** هر څوک بايد د خپل همت موافق کوښښ وکړي، که څه هم ذهين او هوښيار سړی ژر منزل ته رسيږي او تر کمزوري سړي ژر مشهور کيږي خو کمزوری هم بايد همت له لاسه ور نه کړي.

**فائده:** مصنف رحمه الله د خاکسارۍ له مخي ځان په کم استعداد والا خلګو کي وشميری.

| صد وهشتاد بيت وده باب ست | لائق روزگار اصحـــاب است |
|---|---|
| يوسل اتيا شعرونه او لس بابونه دي | د زماني د خلګو لپاره مناسب دي |

**مشکل الفاظ:** صدوهشتاد: يوسل اتيا، بيت: شعر، ده: لس، لائق: وړ، روزگار: زمانه.

**خلاصه:** نام حق د ټولو شعرونو شمېر يوسل درو اتيا (۱۸۳) دی مګر د کسر محذوف کول مشهور دي ځکه نو پر مصنف رحمه الله نيوکه نه سي کيدای،

**فائده:** مصنف رحمه الله وايي چي د خلګو د علم سره شوق او مينه کميږي ځکه نو دغه مختصر کتاب مي مناسب وګڼی.

| موجز ودل پذیر افتـــاد است | لاجرم بي نظير افتـــاد است |
|---|---|
| مختصر او په زړه پوري دي | بېله شکه بې مثاله واقع سوي دي |

**مشکل الفاظ:** موجز: مختصر، دل پذیر: زړه ته خوښ، په زړه پوري، افتاد: دي، لاجرم: بېلهٔ شکه، خامخا.

**خلاصه:** کتاب په پندوالی او حجم کي د کمښت په وجه مختصر دی مګر د ضروري مسائلو شاملېدو په وجه په زړه پوري او بې مثله دی.

| این ترا یادگار از شرف است | نام او درجهان بهر طرف ست |
|---|---|
| دغه یادونه ستا لپاره د شراف الدين څخه ده | د هغه نوم په نړۍ کي هري خوا ته دی |

**مشکل الفاظ:** یادگار: یاد، نښاني، یعني زوی، د مصنف رحمه الله نوم شراف الدين دی چي د بخارا مشهور عالم وو،

| از بخارا ست مولد ونســبش | و زخراسان علـــوم مکتسبش |
|---|---|
| په بخارا کي د هغه زیږېدنه او نسب دی | او په خراسان کي هغه علوم تر لاسه کړي دي |

**مشکل الفاظ:** بخارا: د یو ښار نوم، مولد: د زیږېدو ځای، نسب: کورنۍ، خراسان: د افغانستان او ایران د ځیني سیمي نوم، مکتسبش: د هغه د تر لاسه کولو ځای.

**خلاصه:** یعني په بخارا کي زیږېدلی دی او په خراسان کي یې علم تر لاسه کړي دی.

| یا الهي بده تو تـــــوفیقم | راه بنما بسوئـــــي تحقیقم |
|---|---|
| اې الله! ته ما ته توفیق راکړي | ما ته لار وښيي د ښه والی په خوا |

**مشکل الفاظ:** یا الهي: اې الله! بده: راکړه، راه: لاره، بنما: وښيه، سوئي: خوا ته، تحقیق: پلټنه، یقین.

# باب اول

## در بیان وضو واین مشتمل است بر چهار فصل

لومړی باب د اوداسه په بیان کي، او هغه څلور فصلونه لري.

## فصل اول در فرائض وضو

لومړی فصل د اوداسه په فرضونو کي.

**تشریح:** باب: د کتاب يوه برخه، فصل: هغه چي يو دول مسائل پکښي ذکر سوي وي، وضو: اودس، مشتمل: شامل، چهار: څلور، فرائض: فرضونه. فرض هغه حکم ته وايي چي په دليل قطعي او يقيني ثابت وي او بل هيڅ احتمال پکښي نه وي لکه قطعي الدلات آيت يا متواتر حديث چي بل هيڅ احتمال پکښې نه وي يا هغه حکم چي د صحابه کرامو او تابعينو د اجماع څخه ثابت وي، د فرض حکم دادی چي منکر يې کافر دی او بيله عذره پرېښودونکی يې فاسق او د سخت عذاب مستحق دی.

**فائده:** اودس يې تر لمانځه مخکي بيان کړی ځکه اودس د لمانځه کيلي او شرط دی او شرط په طبعي توګه تر مشروط مخکي وي، او بيا يې په ټولو شرطونو کي پاکي مخکي کړه ځکه د هغې بيانول تر ټولو مهم دي چي په يو عام عذر سره نه ساقطيږي.

| در صباح و رواح ولیل ونـــهار | در وضو نیست جز فریضه چهار |
| --- | --- |
| په سهار او ماښام کي، په شپه او ورځ کي | نسته په اوداسه کي ماسيوا د څلورو فرضونو |

**مشکل الفاظ:** صباح: سهار، رواح: ماښام، ليل: شپه، نهار: ورځ، جز: ماسيوا.

**خلاصه:** مصنف رحمه الله پنځو لمونځونو ته اشاره کړې ده، د صباح څخه د سهار لمونځ، د رواح څخه د ماښام لمونځ، د ليل څخه د ماخستن لمونځ او د نهار څخه د ماپښين او مازديګر لمونځونو ته اشاره ده.

| شستن روئي ودست ومسح سر ست | شستن پائي نيز معتبر است |
|---|---|
| پرېولل د مخ او لاسونو دي او د سر مسح كول دي | د پښو پرېولل هم معتبر دی |

**مشكل الفاظ:** شستن: پرېولل. روئي: مخ، دست: لاسونه،مسح: لوند لاس پر يو شي تېرول، پائي: پښې.

**خلاصه:** په شعر كي د اوداسه د څلورو فرضونو بيان سوي دي كوم چي په دغه آيت كريمه كي ثابت دي: (يا ايها الذين آمنوا اذا قمتم الى الصلوة فاغسلوا وجوهكم وايديكم الى المرافق...الخ). سورة مائده،

د اوداسه د فرضونو تفصيل: ۱: د مخ پرېولل، د تندي د وېښتانو څخه تر زني لاندي پوري، د يوه غوږ د نرمۍ څخه د بل غوږ تر مې پوري.۲: د دواړو لاسونو تر څنګلو پوري يو وار پرېولل، ۳: د سر د څلورمي برخي يو وار مسح كول، ۴: د دواړو پښو تر بجلكو پوري يو وار پرېولل.

**فائده:** مصنف رحمه الله په (شستن پا معتبر است) سره پر روافضو رد وكړ ی چي د هغوئ په نزد د پښو پرېولل فرض نه دي بلكه مسح كول فرض دي.

| ربع سر مسح فرض بايد ديد | لازمش همچو قرض بايد ديد |
|---|---|
| د څلورمي برخي د سر مسح فرض ده بايد وګوري | ضروري ده د پور غوښتني بايد و ګڼل سي |

**مشكل الفاظ:** ربع: څلورمه برخه، ديد: وګوره.

**خلاصه:** د مطلق سر مسح كول فرض قطعي دي او د څلورمي برخي مسح كول فرضِ عملي دي يعني داسي فرض چي په دليل قطعي ثابت نه وي مگر د مجتهد په نظر په شرعي دلائلو سره ضروري وي، بېله وجه انكار كول فسق او ګمراهي ده مګر بل مجتهد په شرعي دليلونو سره انكار كولای سي.

# فصل دوم در سنتهائي وضو

دوهم فصل د اوداسه د سنتونو په بيان کي.

**تشريح:** سنت په لغت کي طريقې او خوی ته وايي، او په شريعت کي (طريقة مسلوكة في الدين) يعني هغه طريقه چي په دين کي رواج سوې وي، د سنت دوه ډولونه دي: سنت مؤکده، هغه چي رسول الله ﷺ زيات وختونه کړي وي او کله نا کله يې بېله عذره پرې اېښي وي ددې لپاره چي پر امت واجب نه سي، حکم يې دادی چي په پرېښودو سره گناه او د پرېښودو په عادت سره سخته گناه ده.

**فائده:** د احنافو په نزد سنت هغه عمل دی چي رسول الله ﷺ يا تر هغه وروسته صحابه کرامو کړی وي ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين من بعدي) او همدارنگه فرمايي: (اصحابي كالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم).

| سنت آبدست ده باشد | هر که دانست مرده باشد |
|---|---|
| د اوداسه سنتونه لس دي | څوک چي يې زده کړي د حق لاري نارينه دی |

**مشکل الفاظ:** آبدست: اودس، ده: لس، باشد: دي، ره: لار.

| شستن دست پيش ومسواک ست | نام حق گفتن از دل پاک ست |
|---|---|
| مخکي لاسونه پرېولل او مسواک وهل دي | د الله ﷻ نوم اخيستل په پاک زړه سره |

**مشکل الفاظ:** شستن: پرېولل، پيش: مخکي، نام حق: د الله ﷻ نوم.

**خلاصه:** مصنف رحمه الله په دغه شعر کي د اوداسه درې سنتونه بيان کړي دي: ۱: د دواړو لاسونو پرېولل تر مروندو پورې، ۲: د اوداسه شروع کولو په وخت کي بسم الله ويل، که چيرې په شروع کي بسم الله ويل هېر سي نو څه وخت چي يې په ياد سي بايد وه يې وايي. ۳: مسواک وهل،
**فائده:** که چيري د مسواک وهلو په وخت کي د خولې څخه وينه راځي نو بايد مسواک تر اوداسه مخکي ووهل سي.

| مضمضه مسح گوش واستنجا | بسه کرات شستن اعـــــضا |
| --- | --- |
| په خوله اوبه لغړول، د غوږو مسح او استنجاء | درې درې واره پرېولل د اندامونو |

**مشکل الفاظ:** مضمضه: په لغت کې ښورولو ته وايي او په اصطلاح کې په ټوله خوله اوبه لغړولو ته وايي، مسح: لوند لاس پر یو شي تېرول، گوش: غوږونه، سه کرات: درې واره،

**خلاصه:** په دغه شعر کې څلور سنتونه بیان سوي دي، ۱: درې واره په خوله اوبه لغړول او هر وار نوې اوبه اخیستل او خولې ته رسول، ۲: د غوږونو مسح کول، دواړه غوږونه باید په یو وار مسح کړل سي، راسته باید پر چپه مخکې نه کړل سي او د سر د مسح په لوندوالي دې د غوږونو مسح هم وکړي د نورو اوبو اخیستلو اړتیا نسته، ۳: استنجاء وهل، که چیرې په لوټه یا بل شي استنجاء وهل سوې وي او د درهم تر اندازې کمه ناپاکي وي نو بیا په اوبو استنجاء وهل سنت دي او که چیرې د درهم په اندازه وي نو بیا واجب ده او که تر درهم زیات وي نو بیا فرض ده. ۴: د ټولو اندامونو درې درې واره پرېولل، یعني د کومو اندامونو پرېولل چې فرض دي د هغو درې درې واره پرېولل سنت دي، لکه دواړه لاسونه، مخ او دواړې پښې درې واره پرېولل سنت دي.

| نیز انگشت پائي راتخـــــلیل | سنت آمدز مصطفی بي قـــیل |
| --- | --- |
| همدارنګه د پښو د ګوتو خلالول دي | سنت راغلی د رسول الله ﷺ څخه بېله اختلافه |

**مشکل الفاظ:** نیز: همدارنګه، انگشت پائي: د پښو ګوتي، تخلیل: خلالول، بي قیل: بېله نښوکې او بېله اختلافه.

**خلاصه:** د ګوتو خلالول سنت دي په هغه صورت کې چې اوبه رسېدلې وي او که چیرې د ګوتو بېخونه وچ وي نو بیا پرېولل یې فرض دي (بحر الرائق)، د لاسو د ګوتو د خلالولو طریقه داده چې د یوه لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کې واچوي او د پښو د ګوتو طریقه داده چې د چپه لاس د خچې ګوتې په ذریعه د راسته پښې د کوچنۍ ګوتې څخه لاندې لوړه خوا خلال کړي او د چپه پښې پر کوچنۍ ګوته یې ختم کړي.

| باز تخلیل لحیه استنـــــشاق | گفتم این جمله را علی الاطلاق |
| --- | --- |
| بیا د ږیرې خلالول او په پزه کې اوبه اچول | ما دا ټول یاد کړل په عامه توګه |

**مشکل الفاظ**: باز: بیا، لحیه: ږیره، استنشاق: په پزه اوبه لغړول، جمله: ټول، علی الاطلاق: په عامه توګه، یعني بېله ترتیبه.

**خلاصه**: مصنف رحمه الله په دغه شعر کي د اوداسه دوه سنتونه بیان کړي دي، ۱: د ږیري خلالول که چیري ږیره ګڼه وي نو خلالول یې سنت دي کنه نو د وېښتانو بیخونو ته اوبه رسول فرض دي، ۲: په پزه دري واره اوبه لغړول او هر وار نوي اوبه را اخیستل هم سنت دي، په پزه کي د اوبو اچولو پر وخت په ساه اخیستلو سره اوبه کښول شرط نه دي بلکه د پزي تر نرمی پوري اوبه رسول کافي دي، که چیري روژه نه وي نو باید په خوله اوبه لغړولو او پزه اوبه لغړولو کي مبالغه وکړل سي.

| عضو گر تر کني روا نـــبود | راندن آب جـز دوا نه بـــود |
|---|---|
| یوازي د اندامو لندول رواه نه دي | د اوبو بیول بېله دوا روا نه دي |

**مشکل الفاظ**: عضو: اندام، تر: لوند، دوا: علاج. جز: ماسیوا.

**خلاصه**: یعني یوازي د اندامو لندول کافي نه دي بلکه ضروري دي چي پر اندامونو باندي اوبه وبهیږي او یو څو څاڅکي لاندي توی سي او تر درو وارو زیاتي اوبه پر اندامونو تېرول هم روا نه دي مګر په نیت د دوا مثلاً د یو سړي ګرمي کیږي یا اندامونه صفا کول یې هدف وي.

**فائده**: د اوداسه سنتونه دیارلس دي مګر مصنف رحمه الله لس سنتونه ذکر کړي دي چي په هغو کي یې یو استنجاء شمېرلې ده، که څه هم استنجاء د اوداسه د سنتو څخه ده مګر پر اوداسه مقدم ده، (طحطاوي)، او څلور سنتونه یعني نیت، د ټول سر مسح کول، ترتیب او پرله پسي والی یې په مستحباتو کي شمېرلي دي چي د راجح قول موافق د اوداسه د مؤکده سنتونو څخه دي لکه چي مخکي ذکر سول.

# فصل سوم در مستحبات وضو

درېیم فصل د اوداسه د مستحباتو په بیان کې.

**تشریح:** مستحبات، جمع د مستحب ده یعني خوښ شی او په اصطلاح کې هغه کار ته وایي چې رسول الله ﷺ یا صحابه کرامو ښه ګڼلی وي مګر کله یې کړی وي او کله یې نه وي کړی، حکم یې دادی چې په کولو یې ثواب دی او په پرېښودو کې یې ګناه نسته.

| در وضو شش ز مستحبات ست | نیت وزان سپس مِوالات ست |
|---|---|
| په اوداسه کې شپږ مستحبات دي | نیت او تر هغه وروسته پرله پسې پرېولل |

**مشکل الفاظ:** شش: شپږ، سپس: وروسته، موالات: پرله پسې والی.

**خلاصه:** مصنف رحمه الله وایي چې په اوداسه کې شپږ مستحبات دي، لومړی: نیت کول، د احنافو په نزد په اوداسه کې نیت کول سنت دي او د نورو درو امامانو په نزد فرض دي، ۲: موالات: یعني د اندامونو پرله پسې پرېولل، د احنافو په نزد سنت دي په وجه د همېشتوب د رسول الله ﷺ ، د موالات حد دادی چې په برابر موسم کې د مخکې پرېولل سوي اندام لوندوالی ختم سوی نه وي او سمدستي بل اندام پرېولل سي. مراقي الفلاح.

| همه سر مسح وانگهي ترتیب | بمیامن بدایت از تـــادیب |
|---|---|
| د ټول سر مسح کول او هغه وخت ترتیب | د راسته اندام څخه شروع کول ادب دی |

**مشکل الفاظ:** همه سر مسح: د ټول سر مسح کول، آنګهي: هغه وخت، میامن: راسته خوا، بدایت: شروع کول، تادیب: ادب، مستحب.

**خلاصه:** په دغه شعر کې درې شیان بیان سوي دي، اول د ټول سر مسح کول ، که څه هم د قدوري مصنف د ټول سر مسح په مستحباتو کې شمېرلې ده او د نام حق مصنف د هغه اتباع کړې ده مګر د هدایې مصنف او نورو عالمانو په سنتو کې شمېرلې ده او همدغه صحیح قول دی. عمدة الفقه.

**د مسح کولو طریقه:** د سر مسح کولو مختلفې طریقې راغلې دي، تر ټولو ظاهره طریقه داده

چي دواړه لاسونه په نوو اوبو لانده کړي، دواړه ورغوي او ګوتي د سر پر مخکني برخه کښېږدي او د شا خوا ته يې يوسي چي پر ټول سر لاسونه تېر سي، بيا دي بېرته هغه ځای ته راسي چيري چي يې شروع کړی وي، بيا دي په دواړو ګوتو دواړه غوږونه مسح کړي، (علامه زيلعي)، همدارنګه نوري طريقې هم راغلي دي.

**مسئله:** د اندامونو مو‌ښل هم په اودا‌سه کي سنت دي، مراقي الفلاح.

| گر تو مسح از سرعمل گيري | مسح گردن ازين قبل گيري |
|---|---|
| که چيري ته د سر مسح کول پيل کړې | د غاړي مسح هم داسي وکړه |

**مشكل الفاظ:** گيري: واخله، شروع کړه، قبل: خواته،

**خلاصه:** مصنف رحمه الله وايي چي کله ته د سر مسح وکړې نو د غاړي مسح هم داسي وکړه يعني څرنګه چي د ټول سر مسح مستحب ده همدارنګه د غاړي مسح هم مستحب وګڼه، نو د مصنف رحمه الله په نزد دواړه مستحب دي.

**مسئله:** د غاړي مسح بايد د دواړو لاسونو د ګوتو په شا سره مسح سي.

# فصل چهارم در مكروهات وضو

څلورم فصل د اوداسه د مکروهاتو په بيان کي.

**تشريح:** مکروهات د مکروه جمع ده يعني ناخوښه، د مکروه دوه ډولونه دي، اول مکروه تنزيهي: هغه کار چي په پرېښودو کي يې ثواب وي او په کولو کي يې عذاب نه وي مګر بدي پکښې وي، د بحر مصنف ليکلي دي چي دا حلت ته قريب دی، دوهم مکروه تحريمي: هغه کار چي منع يې په دليل ظني سره ثابت وي، انکار کوونکی يې فاسق او بېله عذره پرېښودونکی يې ګناه کار دی او د شفاعت نبي ﷺ څخه محروم دی، حکم يې دادی چي منکر يې کافر او بېله عذره پرېښودونکی يې فاسق او د سخت عذاب مستحق دی. عمدة الفقه والطحاوي.

| آب اندردهان و دربيني | بكف چپ كراهيت بيني |
|---|---|
| اوبه په خوله او پزه کي اچول | په چپه لاس مکروه وګڼه ته |

**مشکل الفاظ:** آب: اوبه، دهان: خوله، بیني: پزه، کف: لاس.

| عورت خویش رانظر کـــردن | آب بروئي سخت تر کــــردن |
|---|---|
| خپلي شرمګاه ته کتل | اوبه پر مخ باندي په زور سره وهل |

**مشکل الفاظ:** روئي: مخ، سخت تر کردن: په زور سره اوبه پاشل، خویش: خپل.

**خلاصه:** یعني پر مخ باندي په زور سره اوبه پاشل او همدارنګه د استنجاء کولو په وخت کي خپل عورت ته کتل مکروه دي.

| سخن اندر مقام اســــتنجا | خوی در آب مشتن از عـــمدا |
|---|---|
| د استنجاء په ځای کي خبري کول | په بیت الخلاء کي نارِي توکل په قصد سره |

**مشکل الفاظ:** خوی: نارِي، ازعمدا: په قصد سره، سخن: خبري. مقام: ځای.

**خلاصه:** په بیت الخلاء کي نارِي توکل او پزه سوڼ کول مکروه دي او همدارنګه د استنجاء په ځای کي خبري کول هغه وخت چي ستر لوڅ وي.

| درمیان کراهیت مــــاني | ور توبیني براست افـــشاني |
|---|---|
| نو په کراهت کي به سې ته | او که چیري ته پزه په راسته لاس پاکه کړې |

**مشکل الفاظ:** در: په، راست: راسته، افشاني: سوڼ کول، ماني: پاته کېدل.

**خلاصه:** بایذ په خوله او پزه کي په راسته لاس اوبه واچول سي او پزه په چپه لاس پاکه کړل سي او ددې برعکس کول مکروه دي.

| دائم اندر رفاهیت مــــاند | هر که این شش کراهیت داند |
|---|---|
| هغه به همېشه په ګټي کي وي | څوک چي دغه شپږ مکروهات زده کړي |

**مشکل الفاظ:** داند: زده کړي، دائم: همېشه، رفاهیت: ګټه.

**خلاصه:** څوک چي دغه مکروهات زده کړي نو هغه به دا ګټه تر لاسه کړي چي د مکروهاتو څخه به خوندي وي څکه بېله زده کولو ځان ساتل ممکن نه دي، څرګنده دي وي چي مکروهات

یوازي شپږ نه دي ، په نورو کتابو کي تر دې هم زیات بیان سوي دي، خلاصه دا چې کوم کار د سنت یا مستحب خلاف وي هغه مکروه دی، د مثال په توګه د اندامونو تر درې واره کم یا زیات پرېولل، همدارنګه د اوداسه په وخت کي دنیوي خبري کول. (عمدة الفقه) .

# باب دوم

## در بیان شکننده هائي وضو

دوهم باب د اوداسه د ماتونکو شیانو په بیان کي .

**تشریح:** شکننده: ماتوونکي،

| آنچه از پیش وپس عیان گردد | آبدست ترا زیان گـــــــردد |
|---|---|
| کوم چي د مخ او شا څخه ظاهر سي | په هغه سره ستا اوداسه ته تاوان رسیږي |

**مشکل الفاظ:** آنچه: کوم چي، هغه شی، عیان: ښکاره، پیش: د مخ خوا، پس: د شاخوا، زیان: تاوان، آبدست: اودس.

**خلاصه:** یعني کوم شی چي د مخ شرمګاه یا د شا شرمګاه څخه راووزي لکه باد، تشي بولي، ډکي بولي او داسي نور نو په دې سره اودس ماتیږي. (مراقي الفلاح).

| مګر آن بادکان زپیش بـــود | که وضو هم بجائي خویش بود |
|---|---|
| مګر هغه باد چي د مخ د خوا څخه ووزي | نو اودس هم پر خپل ځای پاته وي |

**مشکل الفاظ:** بجائي خویش: پر خپل ځای، کان: هغه.

**خلاصه:** په مخکني شعر کي عموم وو چي باد د مخ له خوا څخه ووځي یا د شا له خوا څخه نو په هغه سره اودس ماتیږي ، اوس مصنف رحمه الله دا استثناء وکړه چي د مخ له خوا څخه باد ووزي نو په هغه اودس نه ماتیږي ځکه دا باد نه دی بلکه د اندام غورځېدل دي، او که باد وي نو د نجاست څخه پیدا کېدونکی نه دی. (مراقي الفلاح مع الحاشیه) .

| خواب تکیه زده وضو شکـند | تکیه بر خواب هیچکس نه کند |
| --- | --- |
| په تکیه کولو سره خوب کول اودس ماتوي | باور دي په خوب هیڅوک نه کوي |

**مشکل الفاظ**: خواب: خوب، تکیه زده: تکیه وهلې، څنګ وهلی، وضوشکند: اودس ماتوي، هیچکس: هیڅوک. تکیه: باور.

**خلاصه**: په تکیه لګولو سره خوب کول اودس ماتوي ، مصنف رحمه الله په دوهم شعر کي د اودس ماتولو سبب بیان کړی دی چي کیدای سي یو شی ووزي او په خوب کي خبر نه سي ځکه نو باید په خوب باور ونه کړل سي.

| قهقهه در نماز و بي هــوشي | باز دیوانګي و مدهـــــوشي |
| --- | --- |
| په زوره خندا په لمانځه کي او بې هوشي | بیا لیونتوب او په نشه کي کېدل |

**مشکل الفاظ**: قهقهه: په زوره خندا چي په څنګ کي سړی یې واوري، باز: بیا، دیوانګي: لیونتوب، مدهوشي: نشه کېدل.

| هر کراشد مباشرت فاحــش | فرج بر فرج وایر در بـــالش |
| --- | --- |
| څوک چي وکړي مباشرت فاحش (یعني) | شرمګاه پر شرمګاه او د نارینه شرمګاه په غتهېدو کـي |

**مشکل الفاظ**: مباشرت: بدن د بدن سره یو ځای کېدل بېله پردې؛ فرج: شرمګاه، وایر: د نارینه شرمګاه، بالش: پورته کېدل، انتشار.

**خلاصه**: مباشرت فاحشه اودس ماتوي که څه هم مذي نه راووزي ځکه دا مباشرت فاحشه سبب د خروج مذي دی.

# باب سوم

## دربيان غسل وآن مشتمل ست بر سه فصل

دريم باب د غسل په بيان کي او هغه درې فصلونه لري.

## فصل اول

### در بيان فرائض غسل

لومړی فصل د غسل د فرضونو په بيان کي.

| هر که بادانش وتميز بـــود | فـرض درغسل اوسه چيز بود |
|---|---|
| څوک چي عاقل او بالغ وي | د هغه په غسل کي درې فرضونه دي |

**مشکل الفاظ:** دانش: پوه، بادانش: عاقل، باتميز: بالغ، غسل: د بدن پرېولل.

**خلاصه:** ښکاره خبره ده چي پر عاقل او بالغ نارينه او ښځي باندي په غسل کي درې شيان فرض دي.

| آب در بيني ودهان کـــردن | بر همه عضو خود روان کردن |
|---|---|
| اوبه په پزه او خوله لغړول | پر خپلو ټولو اندامو د بدن اوبه بيول |

**خلاصه:** په غسل کي درې فرضونه دي: ۱: په خوله اوبه لغړول، ۲: په پزه اوبه لغړول، ۳: پر ټول بدن يو وار اوبه بيول.

# فصل دوم

## در بیان سنتهائي غسل

دوهم فصل د غسل د سنتونو په بیان کي.

| سنت غسل جملګي پنج ست | یادګیرش که بهتر از ګنج ست |
|---|---|
| د غسل ټول سنتونه پنځه دي | په یاد یې کړه ځکه دا تر خزانې غوره دي |

**مشکل الفاظ**: جملګي: ټول، ګنج: خزانه، یادګیرش: په یاد یې کړه.

| شستن دست وفرج باید پیش | دور کردن نجاست از تن خویش |
|---|---|
| لومړي د لاسونو او شرمګاه پرېولل | لیري کول د مرداری د خپل بدن څخه |

**مشکل الفاظ**: شستن: پرېولل، پیش: مخکي، دورکردن: لیري کول. تن: بدن. خویش: خپل

**خلاصه**: مصنف رحمه الله په دغه شعر کي درې سنتونه بیان کړي دي، ۱: د دواړو لاسونو درې واره تر مړوندو پوري پرېولل، ۲: استنجاء وهل، ۳: که چیري پر بدن باندي نجاست وي نو هغه لیري کول او پرېولل.

| پس وضو ساختن زبهر خـــدا | شستن تن سه بار سرتا پــــا |
|---|---|
| بیا اودس کول د الله ﷻ لپاره | د بدن پرېولل درې واره د سر څخه تر پښو پوري |

**مشکل الفاظ**: ساختن: جوړول، سرتاپا: له سره تر پایه.

**خلاصه**: په دغه شعر کي دوه سنتونه بیان سوي دي، ۴: اودس کول لکه د لمانځه لپاره چي اودس کیږي مګر که چیري د غسل په ځای کي اوبه درېږي نو بیا دي پښې تر غسل کولو وروسته پرېولي، ۵: د ټول بدن درې واره پرېولل، اول دي پر سر اوبه واچوي، بیا پر راسته وږه او بیا پر چپه وږه.

| شايد آن موئي رانه بشگافـــند | آن زناني كه موئي را بافـــند |
|---|---|
| بايد هغه وېښتان خلاص نه كړي | هغه ښځه چي وېښتان يې ودلي وي |

**مشكل الفاظ**: بافند: ودل، شايد: ښايي، نه بشگافند: خلاص نه كړي.

| يافته خشک همچنان مـــانند | درتگ موچو آب را رانـــــند |
|---|---|
| ودل سوي دي همدارنگه وچ وي | د وېښتانو بېخو ته چي اوبه ورسيږي |

**مشكل الفاظ**: تگ: بيخ، راندن: بېول، بافته: اودل سوي. ماند: پاته سي.

**خلاصه**: كه چيري د ښځي وېښتان ودل سوي وي نو دهغو خلاصول ضروري نه دي بلكه د وېښتانو بېخو ته اوبه رسول كافي دي لكه چي د ام سلمه رضي الله عنها د حديث څخه ثابت دي، او نارينه ته د ودل سوو وېښتانو خلاصول فرض دي. (مراقي الفلاح).

# فصل سوم

## دربيان مقدار آب وضو وغسل

د ريم فصل د اوداسه او غسل د اوبو په اندازه كي.

| چون ولا تسرفوا همي خـواني | مكن اسراف ماء مـــــجاني |
|---|---|
| لكه ته چي ولاتسرفوا هم وايې | په مفتو اوبو كي اسراف مه كوه |

**مشكل الفاظ**: مكن: مه كوه، اسراف: پالتو مصرفول، ماء مجاني: مفتي اوبه، لاتسرفوا: اسراف مه كوئ.

**خلاصه**: يعني كه څه هم اوبه مفتي وي بيا هم اسراف كول گناه ده.

**فائده**: اسراف كول پر دوه ډوله دي، ۱: په كميت كي يعني اندامونه تر درې واره زيات پرېول، ۲: په كيفيت كي يعني تر اړتيا زياتي اوبه استعمالول.

| تلف آب چون روا نــــبود | تلف عمر جز خـــطا نبود |
|---|---|
| کله چي د اوبو ضائع کول روا نه دي | د عمر ضائع کول د غلطی ماسیوا بل هیڅ نه دي |

**مشکل الفاظ:** تلف: ضائع کول، جز: ماسیوا. خطا: غلطي.

**خلاصه:** دغه شعر د نصیحت لپاره معترضه جمله ده چي کله د مفتو اوبو ضائع کول جائز نه دي نو عمر چي یو قیمتي شی دی د هغه ضائع کول به کله جائز وي.

| در وضو آب یک من ونیم ست | غسل را چـــارمن زتعلیم ست |
|---|---|
| په اوداسه کي اوبه یو نیم من دي | د غسل لپاره څلور مڼه د تعلیم څخه دي |

**خلاصه:** په دغه شعر کي د اوداسه او غسل د اوبو اندازه ښودل سوې ده چي د اوداسه لپاره یو نیم من او د غسل لپاره څلور منه اوبه باید استعمال کړل سي او تر دې زیات اسراف دی،

| در وضو کن به نیم من استنجا | دار مر دست و روئي نیمن را |
|---|---|
| په اوداسه کي په نیم من استنجا وکړه | ولره د لاس او مخ لپاره نیم من |

| پس بدان نیم من که مي ماند | پائي شوید هر آنچه مي داند |
|---|---|
| بیا د هغه نیم من څخه چي پاته سي | پښې پرېوله لکه چي ته پوهیږې |

**مشکل الفاظ:** بدان: په هغه، ماند: پاته سو، شوید: پرېوله، مي داند: پوهیږي.

**خلاصه:** د اوداسه لپاره د اوبو اندازه یو نیم من ده، نیم من د استنجاء لپاره، نیم من د لاسونو او مخ لپاره او په پاته نیم من دي پښې پرېولل سي لکه چي ته پوهیږې چي یوازې پښې پرېولل پاته دي.

| همچنین گیر غسل را تـــعلیم | برسر خویش ریز دومـــن ونیم |
|---|---|
| همدارنګه د غسل لپاره تعلیم تر لاسه کړه | پر خپل سر توی کړه دوه نیم منه |

**مشکل الفاظ:** ریز: توی کړه،

**خلاصه:** د غسل لپاره څلور منه اوبه دي، دوه نیم منه د استنجاء او اوداسه لپاره، پاته دوه نیم

منه پر سر واچوه تر څو پر ټول بدن وبهیږي.

| که بود آب توبه پیــــمانه | هست این احتیاط درخـــانه |
|---|---|
| چي ستا . اوبه په پیمانه سره وي | دا احتیاط په کور کي دی |

**مشکل الفاظ**: خانه: کور، پیمانه: د اندازه کولو آله.

**خلاصه**: څرګنده دي وي چي د اوداسه او غسل لپاره د اوبو اندازه یوازي په کور کي وي چي اوبه په لوښو کي محدودي وي او که چیري په ویاله یا بل ځای کي وي نو د هغه حکم په راتلونکي شعر کي ذکر سوی دی:

| نیست اسراف هر چه مي شوئي | ور توای خواجه بر لب جـوئي |
|---|---|
| نسته اسراف هر څه چي پرېولې | او که چیري ته اې مشره! د ویالې پر غاړه یې |

**مشکل الفاظ**: خواجه: سردار، مشر، لب: غاړه، څونده، جوئي: ویاله.

**خلاصه**: مطلب دا چي د ویالې پر غاړه د اوداسه او غسل لپاره هر څومره اوبه توی سي پروا نه لري،

**سوال**: دا شعر د رسول الله ﷺ د حدیث مخالف دی چي په هغه کي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: که څه هم ته د ویالې پر غاړه یې بیا هم اسراف دی، (مشکوة). جواب دوه ډوله کېدای سي، اول که چیري مستعملي اوبه په ویاله کي لوېږي نو اسراف نه دی، او که چیري استعمال سوي اوبه ویالې ته نه ځي نو بیا به زیاتي اوبه استعمالول اسراف وي.

# باب چهارم

## در بیان آنچه غسل را واجب مي کند

څلورم باب د هغو شیانو په بیان کي چي غسل واجبوي.

| گر تو خواهي که شرع آموزي | بایدت جدوجهد ودلسوزي |
|---|---|
| که چیري ته غواړي چي شریعت زده کړي | ته باید کوښښ، محنت او شوق ولرې |

**مشکل الفاظ:** خواهي: غواړې، آموزي: زده کړې، جد وجهد: کوښښ کول، دلسوزي: د زړه سوز یعني شوق.

| آنچه از وی سوال خواهد بود | نه سزد گر ملال خواهد بود |
|---|---|
| هر څه چي د هغه سره سوال وي | نه ده پکار چي خفگان وکړي |

**مشکل الفاظ:** بود: وي، نه سزد: پکار نه ده، وړ نه ده، ملال: غم، خفگان.

**خلاصه:** مطلب دا چي ضروري مسائل کوم چي د قیامت په ورځ یې پوښتنه کیږي ته باید د هغو په زده کولو کي خفه نه سې بلکه په ډېر شوق سره د دین علم تر لاسه کړې.

| در طلب کردن حقیقت کار | از خدا شرم دار وشرم مدار |
|---|---|
| د یو کار د حقیقت په پلټنه کي | د خدای څخه شرم وکړه او شرم مه کوه |

**مشکل الفاظ:** حقیقت کار: یعني شرعي مسائل، از خدا شرم دار: د خدای ﷻ څخه شرم وکړه د گناه په کولو کي، وشرم مدار: او له خلګو څخه د مسائلو په زده کولو کي شرم مه کوه.

| غسل از پنج چیز فرض شود | بر زن و مرد همچو قرض شود |
|---|---|
| غسل په پنځو شیانو فرض کیږي | پر نارینه او ښځي باندي د پور غوندي کیږي |

**خلاصه:** مصنف رحمه الله د غسل د فرض کېدو اسباب بیانوي چي پنځه شیان دي، ۱: جنابت، ۲

: حیض، ۳: نفاس، ۴: بېله کوروالي کولو مني په غورځېدو سره وتل، ۵: په مخکنۍ شرمګا
یا د شا په شرمګاه کي دخول که څه هم انزال سي یا نه .

| چون شود پاک زن ز حیض ونفاس | غسل واجب شود بشرع وقیاس |
|---|---|
| کله چي ښځه د حیض او نفاس څخه پاکه سي | غسل واجبیږي په شریعت او قیاس سره |

**مشکل الفاظ**: حیض: بهېدل، یعني د ښځي میاشتنۍ ناروغي، نفاس: زېږول، یعني د ښځي
تر ماشوم زېږېدو وروسته .

**د ښځي د ویني ډولونه**: کومه وینه چي د ښځي د رحم څخه راوزي، پر درې ډوله ده، ۱:
حیض، ۲: نفاس، ۳: استحاض، حیض هغې ویني ته وایي چي د ځواني ښځي د رحم څخه بېله
ناروغۍ راوځي، د حیض کم تر کمه وخت درې ورځي او زیات وخت یې لس ورځي دی، نفاس:
هغه وینه ده چي د ماشوم زېږېدو وروسته د رحم څخه راوزي، د کم وخت یې هیڅ حد نسته او
زیات وخت یې څلوېښت ورځي دی، استحاض: هغه وینه چي تر حیض درې ورځي کم او لسو
ورځو زیات وي او یا په نفاس کي تر څلوېښتو ورځو زیاتي سي .

**حکم** : د حیض او نفاس په حالت کي لمونځ، روژه، د قرآن کریم د تلاوت او یا بېله پوښه لاس
ور وړل، مسجد ته ننوتل، د کعبې شریفې طواف کول او داسي نور حرام دي، د لمونځونو قضا
نسته مګر د روژو قضا لازمه ده، او همدارنګه د هر یوه انقطاع د غسل واجبونکې ده، په
استحاض کي د ذکر سوو کارونو څخه یو کار هم منع ته دی مګر مستحاضه باید د هر لمانځه
لپاره نوی اودس وکړي .

| هر زنيُ را که گم شود ایـــام | غسل باید بهر نماز مـــدام |
|---|---|
| د کومي ښځي چي ورځي ورکي سي | هغه باید د هر لمانځه لپاره غسل وکړي |

**مشکل الفاظ**: بهر: د هر، ګم شود: ورک سي، مدام: تل.

**خلاصه**: د ورځو ورکېدو صورت داسي دی چي د مثال په توګه یوې ښځي ته د حیض او پاکۍ
دواړه وختونه معلوم دي، وروسته تر دې د ناروغۍ په وجه د هغې وینه ورکه سوه او د حیض
ورځي یې هیري سي ، داسي ښځي ته متحیره ویل کیږي، د دې مسئلې درې صورتونه دي، اول

دا چې د ورځو شمېر یې هیر سي، د مثال په توګه دا یې په یاد وي چې د هري میاشتي په اوله نېټه حیض راځي مګر دا چې درې ورځي راځي یا زیات، دا یې په یاد نه وي، حکم یې دادی چې د هري میاشتي اولي درې ورځي حیض دی نو په هغو کي دي لمونځ او نور شیان نه کوي او په پاته ورځو کي دي د هر لمانځه لپاره غسل وکړي کېدای سي چې د حیض ځخه پاکه سوې وي او په پاته ورځو کي باید د معذور غوندي د هر لمانځه لپاره نوی اودس وکړي.

دوهم صورت دادی چې د ورځو شمېر یې یاد وي مګر د هغه تعین یې هېر وي، د مثال په توګه دا یې په یاد وي چې درې ورځي وي مګر نېټې یې یاد نه وي، حکم یې دادی چې د هري میاشتي اولي درې ورځي دي د هر لمانځه لپاره نوی اودس کوي او په پاته ورځو کي دي د هر لمانځه لپاره غسل وکړي.

دریم صورت دادی چې د ورځو تعین او شمېر یې دواړه هیر وي، د دې حکم دادی چې فکر وکړي او بیا دي هغه ورځي چې ددې غالب ګمان وي حیض وګڼي او لمونځ دي نه کوي او کومي ورځي چې د طهر (پاکۍ) وګڼي په هغو کي دي لمونځ کوي، او که چیري غالب ګمان نه وي بلکه هر وخت یې شک وي نو د هر لمانځه لپاره دي غسل وکړي مګر د فرضو، واجباتو او سنت مؤکده ځخه ماسیوا نور نفلي عبادت دي نه کوي او نفلي روژې نیسي، همدارنګه د لمونځونو په رکعتونو کي دي تر درې آیاتونو زیات نه وایي او همدارنګه قرآن کریم دي تر لمانځه ماسیوا په بل وخت کي نه وایي.

| که در اندام زن نهان گردد | مرد را چون ذَکر چنان گردد |
|---|---|
| چي د ښځي په اندام کي پټ سي | کله چي د نارینه اندام داسي سي |

**مشکل الفاظ**: ذکر: د نارینه خاص اندام، نهان: پټهدل.

**خلاصه**: د نارینه د خاص اندام د ښځي په شرمګاه کي پټېدو سره غسل واجبیږي که څه هم انزال وسي یا نه (عمدة الفقه).

| گر چه زان حال نیست انزالش | غسل واجب شود ازان حالش |
|---|---|
| که څه هم په دغه حال سره انزال نه سي | غسل واجبیږي په دغه حالت سره |

| بر زن ومرد اي مدار کــــرم | غسل واجب کند جنابت هـم |
|---|---|
| پر نارينه او ښځې باندي اي د ورکړې مداره | غسل واجبوي جنابت هم |

**مشکل الفاظ**: جنابت: يعني انزال کېدل که په خوب کي وي او که په وېښه، مدار: د گرځېدو ځای، مرکز، کرم: بخښنه، ورکړه.

# باب پنچم در بيان تيمم

پنځم باب د تيمم په بيان کي.

تيمم په لغت کي ارادې ته وايي، تيمم يوازي ددغه امت د ځانگړتياوو څخه دی، تيمم يې تر اوداسه وروسته ذکر کړي ځکه تيمم د اوداسه او غسل خليفه دی، او په اصطلاح کي (مسح الوجه واليدين عن صعيد مطهر) يعني په پاکه خاوره پر مخ او دواړو لاسونو لاس تېرول (مراقي الفلاح)، په تيمم کي دوه رکنونه دي، ۱: دوه واره لاس پر مځکه وهل، ۲: مسح، او پاته شرطونه به ذکر سي.

| ميدهم مرترا بدانش عــــرض | چار چيز ست در تيمم فرض |
|---|---|
| بيانوم يې ستا لپاره چي ته يې زده کړې | په تيمم کي څلور شيان فرض دي |

**مشکل الفاظ**: ميدهم: درکوم، بدانش: په عقل سره، عرض: وړانديز.

**خلاصه**: يعني د تيمم فرضونه څلور دي چي په هغو کي دوه رکنونه دي، ۱: دوه واره لاس پر مځکه وهل، ۲: مسح، يعني يو وار دواړه لاسونه پر مځکه يا د مځکي پر جنس وهل او پر مخ موښل، بيا دوهم وار لاس پر مځکه يا د مځکي پر جنس وهل او پر دواړو لاسونو تر څنگلو پوري موښل، او پاته نور شرطونه دي.

| خاک از جائي پاک اي مـــهتر | نيت وقصد خاک اي ســــرور |
|---|---|
| خاوره د پاک ځای څخه اي بزرگه | نيت او د خاوره اراده اي سرداره! |

**خلاصه**: په دغه شعر کي دوه شرطونه ذکر سوي دي، ۱: نيت کول، ۲: پاکه خــاوره، يعني

پر پاکه خاوره باندې يا د مځکې پر جنس باندې دې تيمم وکړي.

| که نمازت مباح گـــرداني | نيت اين است گرنمي دانـــي |
|---|---|
| چې .خپل لمونځ جائز کړې ته | نيت دادی که چيرې ته نه پوهېږې |

**مشکل الفاظ**: گرداني: وګرځوې، نمي داني: نه پوهيږې. مباح: روا. جائز.

**خلاصه**: د تيمم صحيح کېدو يو شرط نيت دی، د لمانځه جائز کېدو نيت دې وکړي او يا د بې اودسۍ او جنابت ليرې کولو نيت دې وکړي، يا د داسې عبادت مقصوده نيت دې وکړي چې د پاکۍ ماسيوا نه صحيح کيږي، د مثال په توګه د جنازې د لمانځه لپاره يا د تلاوت د سجدې لپاره دې نيت وکړي.

| پس بمالش برو که گردي پاک | چون زدي هر دو پنجـه را برخاک |
|---|---|
| بيا هغه وموښه پر مخ باندې چې ته پاک سې | کله چې ووهې ته دواړه لاسونه پر خاوره |

**مشکل الفاظ**: زدي: وهل، پنجه: لاس، بمالش: وموښه، را تېر کړه، گرديدن: ګرځېدل، کېدل

| هر دوساعد بمرفقين بـــمال | پس ديگر بار پنجه زن در حال |
|---|---|
| دواړه لاسونه تر څنګلو پورې وموښه | بيا دوهم وار لاس وواهه همدغه وخت |

**مشکل الفاظ**: درحال: همدغه وخت، دا يوازې د شعر پوره کولو لپاره دی کنه نو په تيمم کې موالات (پرله پسې والی) شرط نه دی، ساعد: مرونډ، مرفقين: څنګلې، بمال: وموښه.

| که ترا ازين چهار ناچار ست | در تيمم فريضه اين چار ست |
|---|---|
| چې پر تا باندې ددغه څلورو زده کول ضروري دي | په تيمم کې دغه څلور فرضونه دي |

| درتيمم تو نکته را دريـــاب | نزد ما شرط نيست استيعـاب |
|---|---|
| ته په تيمم کې نکتې تر لاسه کړه | زما په نزد شرط نه دی د ټول کښې ايستل |

**مشکل الفاظ**: استيعاب: احاطه کول، ټول کښې ايستل، نکته: باريکي، درياب: معلومول

**خلاصه:** دا چي په اوداسه کي د اندامونو استیعاب (ټول پرېولل) ضروري دي، په تیمم کي دا شرط نه دي، دا یوه نکته چي هر څوک نه په پوهیږي ځکه نو ته یې باید زده کړې.

| هر چه آن ناقض وضو باشد | ناقض اندر تیمم او باشد |
|---|---|
| هر شی چي د اوداسه ماتونکی دی | په تیمم کي هم هغه شی د تیمم ماتونکی دی |

**مشکل الفاظ:** هرچه: هر هغه شی، ناقض: ماتونکی، اندر: په.

**خلاصه:** ښکاره خبره ده چي د اوداسه ماتونکي د تیمم ماتونکي هم دي او د اوداسه ماتونکي مخکي ذکر سول او د دې ماسیوا نور ماتونکي به مخته ذکر سي.

| وآنکه قادر شود بر آب طهور | زو شود در زمان تیمم دور |
|---|---|
| او دا چي قادر سي پر پاکو اوبو باندي | په دې سره هم هغه وخت تیمم ختمیږي |

**مشکل الفاظ:** طهور: پاک، زو: له ده څخه، دور: ختم، لیري.

**خلاصه:** یعني هغه عذر چي له کبله یې تیمم جائز سوی وو، د مثال په توګه څاه موجود وو مګر د اوبو راکښلو لپاره سامان نه وو، یا ناروغ وو او د اوبو په استعمال سره ناروغي زیاتیږي، کله چي دغه عذر ختم سي نو تیمم ماتیږي ځکه اوس پر اصل (اوبو) قادر سو ځکه نو خلف (تیمم) باطل سو.

| هر که میلي ز آب دور بود | این تیمم ورا طهور بود |
|---|---|
| څوک چي یو میل د اوبو څخه لیري وي | دغه تیمم به د هغه لپاره پاکونکی وي |

**مشکل الفاظ:** وراء: هغه ته، دور: لیري، میلي: یو میل. طهور: پاکونکی.

| در بود آب کمتر از میلي | نیست در ناروائیش قیلي |
|---|---|
| او که اوبه تر یو میل نژدې وي | نو د هغه د تیمم په ناجائز کیدو کي خبره نسته |

**مشکل الفاظ:** کمتر: کم تر، ناروا: ناجائز، قیلي: خبره،

| میل در شرع ثلث فرسنگ ست | گرترادانش ست وفرهنگ ست |
|---|---|
| میل په شریعت کې دریمه د فرسخ ده | که چیرې ته پوهه او عقل لرې |

**مشکل الفاظ:** ثلث: دریمه برخه، فرسنګ: فرسخ، درې میله مسافت. فرهنګ: پوهه. ادب

| ثلث فرسنګ ست چار هـزار | از قد مهائي اشتر رهـــوار |
|---|---|
| دریمه برخه د فرسنګ څلور زره قدمه دي | د میاني تګ کوونکي اوښ د قدمونو څخه |

**مشکل الفاظ:** اشتر: اوښ، رهوار: دمیانه تګ کوونکی یعني نه ډېر تیز او نه ډېر کرار، ره: لاره، ثلث: دریمه برخه. چارهزار: څلور زره.

**خلاصه:** د ذکر سوو درو شعرونو مطلب دادی چې د تیمم د جائز کېدو د اسبابو څخه یو سبب دادی چې اوبه یو میل لیرې وي، یو میل د فرسخ دریمه برخه کیږي چې څلور زره ګزه دي، هر ګز څلیرویشت ګوتې او هره ګوته شپږ اوربشې ده، ذکر سوې فاصله څلور زره ګزه زموږ د زمانې په اعتبار دوه زره ګزه کیږي یعني د انګریزي میل په اعتبار یو میل یو فرسخ شل ګزه یا یو اعشاریه اته کلومیتره کیږي. (عمدة الفقه).

# باب ششم

## دربيان نماز، مشتل بر چهار فصل

شپږم باب د لمانځه په بيان کي، او مشتمل پر څلورو فصلونو دی.

## فصل اول در بيان فريضه هائي نماز

لومړی فصل د لمانځه د فرضونو په بيان کي.

| هر که او طالب لطيفه بود | مقتدايش ابوحنيفه بود |
|---|---|
| څوک چي د باريکی غوښتونکی وي | د هغه پيشوا به امام ابوحنيفة رحمه الله وي |

**مشکل الفاظ:** طالب: غوښتونکی، لطيفه: باريکي، پاکي، مقتدا: هغه چي پيروي يې کيږي، ابوحنيفه: نوم يې نعمان بن ثابت دی او ابو حنيفه يې کنيت دی.

**امام ابوحنيفة** رحمه الله: اصلي نوم يې نعمان بن ثابت دی، ابوحنيفه يې کنيت دی، څرنګه چي دحنفيه په نامه د امام صاحب هيڅ اولاد نه وو ځکه نو ابوحنيفة په معنی د صاحب الملة الحنيفه کيږي يعني د سيده لاري خاوند، او يو قول دا هم دی چي د عراقيانو په لغت کي حنيفه مشوانۍ ته ويل کيږي، د نوموړي سره هر وخت مشوانۍ وه ځکه ورته ابوحنيفه ويل کېده، (تاريخ فقهاء جلد ۱)، امام اعظم يې لقب دی ځکه په څلورو امامانو کي ده ته تقدم تر لاسه دی د زماني په لحاظ هم او د فضيلت په لحاظ هم.

د زماني په لحاظ: ځکه چي هغه تابعي دی او نور دري امامان تابعي نه دی، د نوموړي زيږيدنه په ۸۰ م هـ کال کي او وفات يې په ۱۵۰م هـ کي سوی دی، د امام مالک رحمه الله زيږيدنه په ۹۳هـ او وفات يې په ۱۷۹ هـ کي سوی دی، د امام شافعي رحمه الله زيږيدنه په ۱۵۰ هـ کال او وفات يې په ۲۰۴هـ کال کي سوی دی، د امام احمد رحمه الله زيږيدنه په ۱۶۴هـ کال او وفات يې په ۲۴۱ هـ کي سوی دی.

د فضيلت په لحاظ: د دې دپاره وجې دي چي يو څو يې دلته ذکر کيږي.

۱: د نوموړي امانت، ديانت، اتباع سنت او پرهيزګاري يې منل سوي صفتونه دي، ځکه د غه

آيت کريمه (ان اکرمکم عند الله اتقاکم) د هغه د فضيلت لپاره کافي دی.
۲: دغه حديث شريف: (لوکان الايمان عند الثريا لناله رجال او رجل من هولاء) بخاري جلد ۱، يعني که چيري ايمان ثريا ته ورسيږي نو ډېر کسان يا يو سړی به يې په فارسي ويونکو کي به يې خامخا تر لاسه کړي، د حضرت امام ابو حنيفة رحمه الله فارسي الاصل کېدل په تاريخي توګه يو ثرګند حقيقت دی او دغه صحيح حديث چي ثرنګه پر نورو فارسيانو عالمانو د فضيلت لپاره دی همدارنګه د هغه لومړنی مصداق حضرت امام ابو حنيفة رحمه الله هم دی، امام جلال الدين سيوطي رحمه الله ليکي: (قد بشر صلي الله عليه وسلم بالامام ابي حنيفة في الحديث...) يعني رسول الله ﷺ د امام ابو حنيفة رحمه الله په اړه په دغه حديث کي زيری ورکړی دی، (مقام ابو حنيفة صفحه ۶۴)،
۳: نوموړی لومړنی مدون دی چي د امت د عالمانو د اسانتيا لپاره يې تر ټولو وړاندي کتابونه ترتيب او د بابونو ضرورت محسوس کړي، امام سيوطي رحمه الله ليکي: (انه اول من دون علم الشريعة ورتبها ابوابا ثم تبعه مالک ابن انس في ترتيب الموطا ولم يسبق اباحنيفة احد...) يعني تر ټولو مخکي هغه د شريعت علم ترتيب کړی او بابونه يې پکښې جوړ کړه، بيا امام مالک رحمه الله په موطا کي د هغه پيروي وکړه. (مقام ابو حنيفة صفحه ۶۴)،
۴: ډېر ستر عالمانو د هغه صفت کوي، امام شافعي رحمه الله وايي: (من اراد الفقه فهو عيال علی ابي حنيفة.) يعني څوک چي فقه تر لاسه کول غواړي نو هغه د امام ابو حنيفة رحمه الله محتاج دی، (مقام ابو حنيفة صفحه ۵۱)، علامه ذهبي رحمه الله هغه ته په الامام الاعظم، فقيه العراق، امام متورع، عالم، عامل، متقي او کبير الشان وايي، (تذکرة الحفاظ جلد ۱). علامه تاج الدين سبکي شافعي وايي: فقه ابي حنيفة دقيق، يعني د ابو حنيفة رحمه الله فقه دقيقه ده، امام اوزاعي رحمه الله وايي: هو من اعلم الناس بمعضلات المسائل: يعني ابو حنيفة رحمه الله په مشکلو او پيچيده مسائلو کي تر ټولو خلکو زيات پوه دی، د عبد الله بن مبارک رحمه الله وينا ده چي: (ابو حنيفة احسنهم وادقهم فطنة واغوصهم علی الفقه وهو افقه الثلاثة،) امام ابو حنيفة رحمه الله په هغوئ ټولو کي ښه او نکته پوه دی او د فقه په باريکيو کي ښه پوه دی، ملا علي قاري رحمه الله د امام محمد بن سماعه رحمه الله څخه نقل کوي چي: ان الامام ذکر في تصانيفه نيفاد و سبعين الف حديث و انتخب الاثار من اربعين الف حديث، (مناقب علي القاري جلد ۲). يعني امام

ابو حنيفة رحمه الله په خپلو تصانيفو كي تر اوريا زره زيات حديثونه بيان كړي دي او د څلوېښتو زرو حديثونو څخه يي د كتاب الآثار انتخاب كړى دى، د نور زيات تفصيل لپاره (مقام ابو حنيفة تاليف مولانا سرفراز خان صفدر) وګورئ.

| او در اسلام صوفي وصــــافي | در شريعت وفي وهم وافــــي |
|---|---|
| هغه په اسلام كي صوفي او پاک دى | په شريعت كي كامل او كافي دى |

**مشكل الفاظ**: صوفي: د وړيو اغوستونكى، د خپل زړه د غير څخه پاک ساتونكى، د پاک زړه خاوند، وافي: كامل.

**خلاصه**: يعني امام ابو حنيفة رحمه الله د شريعت او طريقت جامع وو.

| بشنو از من بيان مــــذهب او | زانكه صافي ترست مشرب او |
|---|---|
| واوره زما څخه د هغه د مذهب بيان | ځكه ډېره صفا ده د هغه طريقه |

**مشكل الفاظ**: بشنو: واوره، مذهب: لار، دين، مشرب: طريقه.

| ضبط كن اين دوشش فريضه كنون | شش درون نماز وشــش بيرون |
|---|---|
| په ياد كړه دغه دوولس فرضونه اوس | شپږ په لمانځه كي دننه او شپږ دباندي |

**مشكل الفاظ**: ضبط كن: ياد كړه، دوشش: دوه شپږه يعني دوولس، درون: دننه، بيرون: دباندي، كنون: همدارنګه، اوس.

**خلاصه**: مصنف رحمه الله د دوازده (دوولس) پر ځاى دو شش (دوه شپږه) وويل ځكه دغه فرضونه پر دوه دوله دي ځيني شرطونه او ځيني اركان دي، د لمانځه څخه دباندي فرضونو ته شرطونه او په لمانځه كي دننه فرضونو ته ركنونه ويل كيږي، د فرض لفظ عام او دواړو ته شامل دى.

| تا نماز تو با نوا گـــــــردد | فرض ونفلت همه رُوا گـــردد |
|---|---|
| تر څو ستا لمونځ اسانه سي | ستا فرضونه او نفل ټول جائز سي |

**مشكل الفاظ**: نوا: سامان، اسباب، همه: ټول،

| عرض دارم كه موضع عرض ست | آنچه بيرون كنون ترا فرض ست |
| --- | --- |
| بيانوم يې ځكه د بيانولو ځاى دى | هغه چې دباندې پر تا فرض دي |

**مشكل الفاظ:** كنون: اوس، عرض: وړانديز، موضع: ځاى.

| پوشش عورت ومكان طهير | نيت ست وطهارت وتكبير |
| --- | --- |
| د ستر پټول دي او پاك ځاى دى | نيت دى او پاكي ده او تكبير ويل دي |

**مشكل الفاظ:** طهارت: پاكي، تكبير: الله اكبر ويل، پوشش: پټول، عورت: ستر. طهير: پاك، مكان: ځاى.

| روئي هم سوئي قبله آوردن | غم اسلام بايدت خوردن |
| --- | --- |
| مخ هم د قبلې خوا ته كول | ته بايد د اسلام غم وخوري |

**مشكل الفاظ:** آوردن: كول، راوړل، روئي: مخ، سوئي: خوا ته، طرف، خوردن: خوړل.

**مسئله:** د وخت داخلېدل هم د لمانځه شرط دى مګر ځينو د سبب كېدو په وجه د شرطونو څخه جلا كړى دى او تحريمه يې د اركانو سره يو ځاى كړې ده. (عمدة الفقه باختصار جلد ۱).

| فرض گير ونماز كن به نياز | شش دگر در اندرون نماز |
| --- | --- |
| فرض يې وګڼه او لمونځ وكړه په عاجزي سره | شپږ نور فرضونه په لمانځه كې دننه |

**مشكل الفاظ:** دگر: نور، اندرون: دننه، گير: وګڼه، نياز: عاجزي، پاملرنه. توجه.

| قعده آخرين وسجده خضوع | آن قيام وقراءت ست وركوع |
| --- | --- |
| آخري ناسته او په عاجزي سره سجده كول | هغه ولاړه، قرائت او ركوع كول دي |

**مشكل الفاظ:** قيام: ولاړه، قرائت: ويل، قعده: ناسته، خضوع: عاجزي.

| از نماز اي مدار عقل وقياس | پس برون آمدن فريضه شناس |
| --- | --- |
| اي د عقل او قياس مداره | بيا د لمانځه څخه وتل فرض و پېژنه |

**مشكل الفاظ**: برون آمدن: وتل، شناس: و پيژنه، مدار: مركز،

**خلاصه**: د لمانځه فرضونه ديارلس دي، ۱: د بدن پاكول. ۲: د جامو پاكول، ۳: د ځاى پاكوالى، ۴: د ستر پټول، ۵: د لمانځه وخت داخلېدل، ٦: قبلې ته مخ كول، ۷: نيت كول، ۸: تكبير تحريمه ويل، ۹: ولاړه، ۱۰: قرائت، ۱۱: ركوع، ۱۲: سجده، ۱۳: اخيري ناسته.

## فصل دوم در واجبات نماز

دوهم فصل د لمانځه د واجباتو په بيان كي.

واجب هغه عمل ته ويل كيږي چي په دليل ظني سره ثابت وي، يعني داسي دليل چي په هغه كي يو بل ضعيف احتمال هم وي لكه د دوو معناوو آيت، حديث احاد او هغه چي د اجتهاد او قياس څخه ثابت وي، منكر يې فاسق دي او بېله عذره پرېښودونكى يې فاسق او د سخت عذاب مستحق دى مګر تر فرضو كم، په فرضو او واجب كي فرق يوازي په اعتقاد كي دى چي د فرض منكر كافر دى او د واجب منكر كافر نه بلكه فاسق دى، په دواړو عمل كول ضروري دي. (عمدة الفقه جلد ۱ صفحه ۹۰).

| واجبات نمازها هــفت است | زانكه از مصطفى چنين رفت ست |
|---|---|
| د لمونځونو واجبات اووه دي | ځكه د رسول الله ﷺ څخه همداسي راغلي دي |

**مشكل الفاظ**: واجبات: په لمانځه كي واجبات هغو كارو ته وايي چي ادا كول يې ضروري دي او كه چيري په هېره پاته سي نو سجده سهوه كول لازمي دي.

| فاتحه ضم سوره قـــــــرآن | در دوئي اول از فريضه بخوان |
|---|---|
| الحمدلله، د قرآن كريم د سورت يو ځاى كول | د فرضو په اولو دوو ركعتونو كي يې ووايه |

**مشكل الفاظ**: ضم: يو ځاى كول، بخوان: ووايه.

| ليك اندر تــطوع وســـــنت | سوره با فاتحه بكـــن ضمت |
|---|---|
| مګر په نفلو او سنتو كي | سورت د الحمدلله سره يو ځاى كوه |

**مشکل الفاظ:** لیک: لیکن، مگر، تطوع: نفل، بکن ضمت: یو ځای کړه.

**خلاصه:** یعني د نفل او سنت لمانځه په ټولو رکعتونو کي د فاتحې سره سورت هم ویل کیږي.

| کاخرینش چو اولین باشد | سوره با فاتحه قرین باشد |
|---|---|
| چي د هغو آخر رکعتونه د اولو په ډول وي | سورت د فاتحې سره یو ځای سوي وي |

**مشکل الفاظ:** کاخرینش: چي اخریې، چو: لکه، اولین: اول، قرین: یو ځای.

| در بلندي بلند باید خواند | و آنچه پست ست پست باید خواند |
|---|---|
| په جهري لمانځه کي په لوړ آواز ووایه | او په سرّي لمانځه کي یې په کراره ویل دي |

**مشکل الفاظ:** بلندي: هغه لمونځونه چي په لوړ آواز قرائت پکښې ویل کیږي، بلند: په لوړ آواز، پست: کښته،

**مسئله:** د سهار لمونځ، د ماښام لمونځ، د ماخستن لمونځ، د جمعې لمونځ، د اخترونو لمونځ، د تراویح لمونځ، او په رمضان کي د وترو په ټولو رکعتو کي باید امام په لوړ آواز قرائت ووایي، د ماپښین او مازدیگر په لمانځه کي په کرار آواز قرائت ویل واجب دي، د کرار او لوړ آواز په اړه اختلاف دی، صحیح خبره داده چي کم تر کمه جهر دادی چي بل څوک یې واوري او کم تر کم خفاء داده چي په خپل ځان یې واوري. (عمدة الفقه جلد ۳ صفحه ۱۰۱).

| قعده اول از وجوبات است | باز در آخرین تحیات است |
|---|---|
| اوله ناسته د واجباتو څخه ده | بیا په آخري ناسته کي التحیات ویل دي |

**مشکل الفاظ:** قعده اول: اوله ناسته، آخرین: اخر.

**مسئله:** د صحیح قول مطابق په اوله ناسته کي هم التحیات ویل واجب دي. (مراقي الفلاح).

| نیز در وتر شد قنوت عیان | باز تعدیل جمله ارکان |
|---|---|
| همدارنگه په وترو کي دعاء قنوت ښکاره ده | او بیا په ټولو ارکانو کي اطمینان |

**خلاصه:** یعني رکوع، سجده، قومه او جلسه په اطمینان سره او په ښه توگه ادا کول واجب دي

او همدغه صحيح قول دی. (عمدة الفقه جلد ۲ صفحه ۹۹).

| زانکه تکبير عيد مـــي بايد | ليک در عيد واجب افــزايد |
|---|---|
| ځکه د اختر د لمانځه تکبيرونه ضروري دي | مگر د اختر په لمانځه کي واجب زياتيږي |

**مشکل الفاظ**: ليک: مگر، افزايد: زياتيږي، زانکه: ځکه.

**خلاصه**: يعني د اختر په لمانځه کي دري تکبيرونه په اول رکعت کي تر قرائت مخکي او دري تکبيرونه په دوهم رکعت کي تر قرائت وروسته واجب دي.

**فائده**: د لمانځه واجبات ډېر دي مگر مصنف رحمه الله يو څو واجبات بيان کړي دي.

## فصل سوم در سجده سهو

دريم فصل د سجده سهوي په بيان کي.

| واجب آمد باتفـــــاق امم | سجده سهو با تلاوت هـــــم |
|---|---|
| واجب راغلي ده په اتفاق د امامانو | سجده سهوه په تلاوت سره هم |

**مشکل الفاظ**: سهو: هيره، امم: جمع د امت يعني امتونه، تلاوت: ويل.

**خلاصه**: په قرآن کريم کي څوارلس داسي ځايونه دي چي په ويلو او اورېدو سره يې سجده سهوه واجبيږي.

| و اندرين راه نســــبتي دار | داند آنکس که حســـبتي دار |
|---|---|
| او په دغه لاره کي څه نسبت لري | پوهيږي هغه څوک چي د ثواب اميد لري |

**مشکل الفاظ**: داند: پوهيږي، حسبتي: د ثواب اميد، نسبتي: مناسبت، دارد: لري.

| وآنچه مشکل بود عيان کـردن | سجده سهو را بيان کـــردن |
|---|---|
| او د مشکل شي ښکاره کول | د سجده سهوه بيانول |

**خلاصه**: څرنگه چي د سجده سهو د مسائلو زده کول د لمانځه پر فرضونو او واجباتو زده

کولو موقوف دي نو د هغو د ذکر کولو څخه وروسته یې د سجده سهو د مسئلې ارزښت بیان کړی چې د سجده سهو مسائل بیانول او د هر مشکل کار وضاحت کول هغه چا ته ممکن دي چې د دین سره مینه او اړیکي لري او د دین په تر لاسه کولو کې د عظیم ثواب امید لري لکه چې الله ﷻ وعده کړې ده: (من جاء بالحسنة فله خیر منها). سورة نمل.

| گر کسي فرض را کند تاخیر | یا کند ترک واجب از تقصیر |
| --- | --- |
| که یو څوک په فرضو کې ځنډ وکړي | یا واجب پرېږدي د کوتاهۍ څخه |

| سجده سهو را چون سازکند | جبر نقصان آن نماز کند |
| --- | --- |
| کله چې سجده سهو ادا کړي | د هغه لمانځه د نقصان تاوان راوګرځوي |

**مشکل الفاظ:** تاخیر: ځنډ، ترک: پرېښودل، تقصیر: کوتاهي، هېره، ساز: جوړول، کول، جبر: د تاوان پوره کول.

**خلاصه:** د سجده سهو د واجبېدو درې اسباب دي، ۱: په فرضو کې ځنډ کول، ۲: د واجب پرېښودل، ۳: په واجب کې تاخیر کول.

**مسئله:** که چیرې د لمانځه په فرضونو کې یو شی په قصد سره پرېښودل شي نو لمونځ فاسدېږي او د هغه راګرځول فرض دي، او که چیرې په واجباتو کې یو شی په قصد سره پرېږدي نو لمونځ یې ناقص کیږي او راګرځول یې واجب دي. (عمدة الفقه جلد ۱ صـ ۳۶۲).

| اي مصلي بدست راست سلام | گوئي وآنگه بیار سجده تمام |
| --- | --- |
| اې لمونځ کوونکې! راسته خوا ته سلام | ووایه (وګرځوه) او وکړه سجده پوره |

**خلاصه:** مطلب دادی چې د سجده سهو لپاره په آخرې ناسته کې تر التحیات ویلو وروسته یوازې راسته خوا ته سلام وګرزوه او په الله اکبر ویلو سره سجدې ته ولاړ سه او دوې سجدې وکړه، د سجدې کولو همدغه صحیح طریقه ده.

**فائده:** سجده سهو د څلورو شیانو مجموعه ده، ۱: قعده، ۲: تشهد، ۳: سلام، ۴: دوې سجدې.

| او بتقوی چون بوذر وسلمان | این چنین ست مذهب نعمان |
|---|---|
| هغه په پرهيزګارۍ کې د ابوذر او سلمان غوندې وو | همدارنګه مذهب دی د امام نعمان رحمه الله |

**خلاصه:** حضرت ابوذر او سلمان فارسي رضي الله عنهما د سترو صحابه کرامو څخه دي. او نعمان د حضرت امام ابو حنيفة رحمه الله نوم دی.

| شرع آموز گر ترا هوس ست | از یکي سهو وده دوسجده بس ست |
|---|---|
| شريعت زده کړه که چيرې ته حرص لرې | د يوې او لسو غلطيو لپاره دوې سجدې بس دي |

**خلاصه:** يعني که چيرې په لمانځه کې يوه غلطي وسي يا ډيرې، د ټولو لپاره په آخرې ناسته کې تر التحيات وروسته دوې سجدې کول کافي دي.

| سهو او سهو مقتدي باشد | هرامامیکه مهتدي باشد |
|---|---|
| د هغه سهو د مقتدي سهوه ده | هر امام چې لاربنوونکی وي |

**مشکل الفاظ:** مهتدي: هدايت کوونکی، لاربنوونکی، يعني پرهيزګار او متقي امام.

| سجده سهو او نه معتاد است | مقتدي را چو سهو افتاداست |
|---|---|
| نو د هغه سجده سهو معمول نه ده | که چيرې مقتدي سهوه وکړي |

**خلاصه:** يعني د مقتدي په خطا سره پر هيڅ سجده سهوه نه لازميږي نه پر مقتدي باندې او نه هم پر امام باندې.

| طاعت او خدائي بپذيرد | سهو او را امام بر گيرد |
|---|---|
| د هغه بندګي الله ﷻ قبلوي | د هغه خطا امام پورته کوي |

**مشکل الفاظ:** برگيرد: پورته کوي، اخلي، طاعت: بندګي، بپذيرد: قبلوي.

**خلاصه:** په حديث شريف کې دي: الامام لکم ضامن يرفع عنکم سهوکم وقرائتکم. (مراقي الفلاح) يعني ستاسو امام ستاسو ضامن دی، ستاسو هيره او قرائت پر خپل ځان اخلي.

# فصل چهارم در سنتهائي نماز

څلورم فصل د لمانځه د سنتونو په بيان كي.

كه چيري په لمانځه كي سنت پرېښودل سي نو نه لمونځ ماتيږي، نه سجده سهو لازميږي او نه گناه كار دى، مگر په قصد سره پرېښودونكى د ملامتيا مستحق دى، كه چيري سنت حق ونه گڼل سي او يا يې سپكاوى وسي نو كافر كيږي. (عمدة الفقه جلد ۲ صـ ۱۰۲).

| سنت اندر نماز آمد بيست | ده ازان قولي ست وده فعلي ست |
|---|---|
| سنتونه په لمانځه كي شل راغلي دي | لس په هغو كي قولي دي او لس فعلي دي |

**مشكل الفاظ**: قولي سنت: هغه سنت چي په ژبه ادا كيږي، فعلي سنت: هغه سنت چي په بدن سره ادا كيږي.

| آنچه قوليست هست استفتاح | بعد ازان در اعوذ گشت فلاح |
|---|---|
| هغه چي قولي دي سبحانك اللهم ويل دي | وروسته تر هغه په اعوذ كي كاميابي ده |

| زان سپس تسميه است وآمين ست | سمع الله گفتن ازديـــن است |
|---|---|
| وروسته تر هغه بسم الله ويل او امين ويل دي | سمع الله ...الخ، ويل د دين څخه دي |

| امام سمع الله پـــردازد | مقتدي ربنالك آغـــــازد |
|---|---|
| امام په سمع الله لمن حمده كي بوخت وي | مقتدى دي ربنالك الحمد شروع كړي |

**مشكل الفاظ**: استفتاح: سبحانك اللهم ويل، اعوذ: اعوذبالله، تسميه: بسم الله، پردازد: بوخت سي، خالي كېدل، آغازد: شروع كړي.

| باز تسبيح در ركوع وسـجود | نيز تكبير در هبوط وصـعود |
|---|---|
| بيا تسبيح په ركوع او سجده كي | همدارنگه تكبير په كښته تلو او لوړ راتلو كي |

**مشکل الفاظ**: باز: بیا، نیز: همدارنګه، هبوط: کښته تلل، صعود: لوړ تلل.

| فاتحه در دوئي اخیر از فرض | گیر سنت ولي مګیر از فرض |
| --- | --- |
| فاتحه په اخیرو دوو رکعتو کي د فرضو | سنت یې وګڼه مګر فرض یې مه ګڼه |

**مشکل الفاظ**: گرفتن: نیول، ولي: مګر.

**خلاصه**: یعني د فرضو د اولو دوو رکعتونو ماسیوا په نورو ټولو رکعتو کي الحمدلله ویل واجب نه دي بلکه سنت دي.

| پس برون آمدن بلفظ ســـلام | نزد ما سنت ست در اســـلام |
| --- | --- |
| بیا دباندي وتل د سلام په لفظ سره | زموږ په نزد سنت دي په اسلام کي |

**خلاصه**: صحیح قول دادی چي د سلام په لفظ سره د لمانځه څخه وتل او دغه الفاظ دوه واره ویل واجب دي. (در مختار وغیره).

## سنتهائي فعلي نماز

### د لمانځه فعلي سنتونه

| سنت فعلي در نماز ده است | یادگیرش اگر ترا شره اســـت |
| --- | --- |
| فعلي سنتونه په لمانځه کي لس دي | په یاد یې کړه که چیري ته حرص لري |

**مشکل الفاظ**: ده: لس، یادگیرش: په یاد یې کړه، شره: حرص.

| هست رفع الیدین تا اذنـــین | وآنګه بر جائي سجده دارد عین |
| --- | --- |
| د دواړو لاسونو پورته کول تر دواړو غوږونو پوري | او هغه وخت دي د سجدي پر ځای نظر وي |

**مشکل الفاظ**: رفع الیدین: د دواړو لاسونو پورته کول، اذنین: غوږونه، نظر: سترګي.

| بعد ازان دست راست را بر چپ | بنهي زير ناف بهـــــر ادب |
|---|---|
| وروسته تر دې دي راسته لاس پر چپه | کښېږدي تر نامه لاندي د پاره د ادب |

**خلاصه:** د نارينه لپاره تر نامه لاندي لاسونه نېول ادب دي نه پر سينې باندي.

| مرزنان را بجمله اقــــــوال | دست بر سينه به بود همه حال |
|---|---|
| په خاصه توگه د ښځو لپاره په ټولو مذهبو کي | لاس پر سينه باندي ښه دی په ټولو حالاتو کي |

**مشکل الفاظ:** مر: په خاصه توگه، بجمله: ټول، همه حال: په هر حال.

**خلاصه:** د ښځو لپاره پر سينه لاس ابښودل سنت دي ځکه په دې سره ښه پرده راځي.

| دست بر رکبه در رکــوع بنه | پشت هموار دار کـــوز منه |
|---|---|
| لاس پر زنگانه کښېږده په رکوع کي | ملا سيده کړه او مه يې کړوه |

**مشکل الفاظ:** رکبه: زنگون، بنه: کښېږده، پشت: ملا، منه: مه ايږده، کوز: کوږ. هموار: برابر، سيده،

| سجده آريد درميان دوکــــف | شکم از ران دور ودست ازدف |
|---|---|
| سجده وکړه د دوو لاسونو په منځ کي | نس د ورانه ځخه او لاس د بغلو ځخه ليري وي |

**مشکل الفاظ:** آريد: راوړه، وکړه، کف: ورغوی، لاس، دف: بغل. ران: ورون.

| نيز بر پائي چپ نشست کني | سرانگشت سوئي قبــــله کني |
|---|---|
| همدارنگه پر چپه پښه ناسته وکړه | د گوتو سرونه د قبلې خوا ته کړه |

**مشکل الفاظ:** پائي چپ: چپه پښه، نشست: ناسته، سرانگشت: د گوتو سرونه، سوئي: خوا.

**خلاصه:** په جلسه او ناسته کي دي بايد چپه پښه وغوړول سي او پر هغې دي کښېني او راسته پښه دي داسي ودروي چي د گوتو سرونه يې قبلې خوا ته وي. ښځي بايد پر چپه کوناټي کښېني او دواړي پښي دي راسته خوا ته وباسي. (عمدة الفقه صفحه ۱۰۴ و مراقي صفحه ۲۱۷).

| باز گردان تو رو وقت سـلام | به یمین ویسار خویش تمـام |
|---|---|
| بیا وګرځوه مخ د سلام په وخت کي | خپل راسته او چپه خوا ته په پوره توګه |

**خلاصه:** یعني د سلام ګرځولو په وخت کي باید مخ راسته او چپه خوا ته داسي وګرځول سي چي راسته خوا ته راسته بارخو او چپه خوا ته چپه بارخو ولېدل سي (یعني تر شا چي ځوک ناست وي هغه یې ووینې).

| ګرکسي بر تو شبهت انـدازد | مستحب را نه زسنت انـګارد |
|---|---|
| که یو څوک پر تا باندي شک وکړي | چي مستحب او سنت نه سره پېژني |

**خلاصه:** یعني که چیري یو څوک نېوکه وکړي چي په ذکر سوو سنتونو کي ځیني مستحب دي، د مثال په توګه په ولاړه کي د سجدې ځای ته کتل، حال دا چي په دغه فصل کي د سنتونو بیان کیږي نو:

| اي دلت پر زنور واز حـکمت | مستحب دور نیست از سنت |
|---|---|
| اي د نور او حکمت څخه د ډک زړه خاونده! | مستحب لیري نه دي د سنت څخه |

**خلاصه:** دغه شعر د ذکر سوي نیوکي جواب دی یعني په مستحب او سنت کي ډېر فرق نسته ځکه نو څوک نیوکه نه سي کولای.

| بعد ازان هر چه هست آداب ست | یادګیرش که نسخه کمیاب ست |
|---|---|
| تر دې وروسته چي هر څه دي ادبونه دي | یاد یې کړه چي نسخه ډېره کمه پیدا کیږي. |

**مشکل الفاظ:** نسخه: لیکل سوی شی، کمیاب: کم تر لاسه کېدونکی.

**د لمانځه مستحبات:** د لمانځه د مستحباتو پرېښودل د عتاب سبب خو نه دي مګر کول یې افضل او د ثواب سبب دي، ځیني مستحبات ذکر کیږي.

۱: د ولاړي په حالت کي د دواړو قدمونو په منځ کي د څلورو ګوتو اندازه باید وي، په ځینو کتابونو کي دې ته سنت ویل سوي دي، (عمدة الفقه صفحه ۱۰۵). لکه چي په حدیث شریف کي دي: (کان النبي ﷺ ینهض في الصلوة وعلی صدور قدمیه) ترمذي.

۲: د ولاړي په حالت کي د سجدې ځای ته، په رکوع کي د پښو شا ته، په سجده کي پزې ته، په جلسه او ناسته کي خپل غیږې ته او د سلام گرځولو په وخت کي راسته او چپه وږې ته کتل.
۳: د ارږمی په وخت کي خوله بندول او که ممکن نه وي نو د قیام په حالت کي د راسته لاس په شا او په نورو حالاتو کي د چپه لاس په شا خوله پټول.
۴: د دواړو سجدو په منځ کي په ناسته کي دغه دعاء ویل: (اللهم اغفرلي وارحمني واهدني وعافني وارزقني) یا یوازي رب اغفرلي یو واریا درې واره ویل.
۵: تر خپله وسه د ټوخي بندول ځکه په لمانځه کي بېله عذره ټوخل چي حروف ور څخه پیدا سي لمونځ ماتوي. (عمدة الفقه).

# باب هفتم

## در رکعات فرائض شبا روزي

اووم باب د شپې او ورځي د فرضونو د رکعتونو په بیان کي.

| | |
|---|---|
| آنچه فرض ست در شبـاروزي | هفده رکعت بود گـــر آموزي |
| هغه چي فرض دي په شپه او ورځ کي | اووه لس رکعته دي که یې زده کړې |

**مشکل الفاظ**: شباروزي: شپه او ورځ، آموزي: زده کول.

| | |
|---|---|
| دو بصبح وچهارپشـــین ست | چار در وقت عصر تعیین ست |
| دوه رکعته د سهار او څلور د ماپښین دي | څلور د مازدیگر په وخت کي ټاکل سوي دي |

| | |
|---|---|
| سه بشام وچهار در خـــــفتن | زین نکوتر نمي توان گـــــفتن |
| درې رکعته د ماښام او څلور د ماخستن دي | تر دې ښه ویل ممکن نه دي |

| | |
|---|---|
| وتر از واجبات مي دارنـــــد | برهمه واجب ست بگـــذارند |
| وتر د واجباتو څخه گڼل کیږي | پر ټولو واجب دي باید ادا یې کړي |

# باب هشتم

## در بیان سنتهائي مؤکده شبا روزي

اِتم باب د شپې او ورځې د سنت مؤکده لمونځونو په بیان کې.

| علما گفته اند بي شـــــبهت | هست سنت دوازده رکــعت |
|---|---|
| عالمانو ويلي دي بېله شکه او شبهې | سنت دي دوولس رکعتونه |

| شش به پیشین گذار ودو بسحرِ | دوپس از شـــام دو بخفتن در |
|---|---|
| شپږ رکعته په ماپښين کې او دوه په سهار کې | دوه د ماښام تر لمانځه وروسته او دوه ماخستن |

**مشکل الفاظ**: پیشین: ماپښین، سحر: سهار، خفتن: ماخستن.

**خلاصه**: د ماپښين د فرضونو څخه مخکې څلور او وروسته دوه رکعته سنت دي، د سهار په وخت کې دوه رکعته تر فرضو مخکې سنت دي، دوه رکعته د ماښام تر فرضو وروسته او د ماخستن تر فرضو وروسته دوه رکعته سنت مؤکده دي.

| سنت خالص صلوات این ست | آنچه هست از موکدات این ست |
|---|---|
| د لمانځه خالص سنتونه همدغه دي | هغه چې د مؤکده سنتونو څخه دي همدغه دي |

**مشکل الفاظ**: خالص: خاص، صلوات: جمع د صلوة يعني لمونځ.

| غیر ازین هر چه ست نافله است | خواجـــــه ما امیر قافله است |
|---|---|
| تر دې ماسيوا نور هر څه چې دي نفل دي | زموږ سردار د قافلې امیر دی |

**مشکل الفاظ**: خواجه: يعني امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله، قافله: امت محمدي،

# باب نهم

## در بیان روزه رمضان شریف

نهم باب د رمضان شریف د روژو په بیان کي.

د روژې فرضیت د هجرت په دوهم کال د شعبان په میاشت کي نازل سو، د رمضان لفظ د رمض څخه دی یعني سوځل، دغه مبارکه میاشت هم د روژاتي ګناهونه سوځي، صوم په لغت کي د یو شي څخه منع کېدو ته وايي او په شریعت کي د مکلف سړي د روژې په نیت د صبح صادق څخه تر لمر لوېدو پوري د خوراک، څښناک او جماع څخه ځان ساتل دي، د ښځي لپاره د حیض او نفاس څخه پاکېدل شرط دي.

| نیست در حکم شرع گرداني | روزه جز قهر نفس شـــهواني |
|---|---|
| نسته د شریعت په حکم کي که چیري ته پوهیږې | روژه د شهوت لرونکي نفس لپاره مګر منع کونکي |

| از جماع و شراب دور شـــدن | و از همه خوردني نفور شـــدن |
|---|---|
| د کوروالي او څښناک څخه لیري کېدل | او د خوراک د ټولو شیانو څخه نفرت کول |

**مشکل الفاظ:** شراب: څښناک، دور: لیري، خوردني: د خوراک شیان، نفور: نفرت کول.

| فرض دان جمله روزه رانـــیت | تابیابي ز روزه امـــــــنیت |
|---|---|
| فرض وګڼه د ټولو روژو لپاره نیت | تر څو پیدا کړې د روژې څخه امید |

**مشکل الفاظ:** امنیت: امید، جمله: ټول، بیابي: تر لاسه کړې. پیدا کړې.

| نیت روزه اګر ادا نـــــبود | در قضا جز بشب روا نـــبود |
|---|---|
| که د روژې نیت ادا نه وي | په قضا کي نیت د شپې ماسیوا جائز نه دی |

**خلاصه:** یعني که چیري روژه ادا نه وي بلکه قضاء وي نو د شپې نیت کول ضروري دي.

**فائده:** د قضا، نذر غیر معین او کفارې د ټولو روژو همدغه حکم دی، دا ټول دري دولونه دي

چي د شپې نيت کول يې ضروري دي.

| تا به پيش از زوال هست روا | ليک مر وقتي و نوافل را |
|---|---|
| تر زوال مخکي نيت کول جائز دي | مگر د خاص وختي او نفلو لپاره |

**مشكل الفاظ**: وقتي: هغه روژه چي پر ټاکلي وخت ادا کړل سي، يعني د رمضان او ټاکل سوي نذر روژې،

**خلاصه**: يعني په کومو روژو کي چي د شپې نيت کول شرط نه دي هغه درې ډولونه دي، ۱: د رمضان د مياشتي اداء روژې، ۲: د ټاکل سوي نذر روژې، ۳: د نفل اداء روژې، نو په دغو درو ډولو کي د نيت وخت د لمر لوېدو څخه وروسته شروع کيږي او بيا د ورځي تر نيمي پوري.

| نيت روزه جز به شب نكني | همچنين گر خلل طلب نه كني |
|---|---|
| نو د روژې نيت د شپې ماسيوا مه کوه | همدارنگه که چيري ته خلل نه غواړې |

**خلاصه**: يعني غوره خبره داده چي د هر ډول روژې نيت د شپې څخه وکړل سي تر څو روژه په بشپړ توگه ادا سي او هيڅ تاوان پکښې را نه سي ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (لاصوم لمن لم ينو من الليل) يعني د هغه چا روژه صحيح نه ده چا چي د شپې څخه نيت نه وي کړی، يعني کامله روژه يې نه ده.

| نيست نقصان روزه تو پديد | مگس و پشه در گلو چو پريد |
|---|---|
| نشته ستا د روژې تاوان په ښکاره | که چيري مچ او غوماشه په ستوني کي ننوزي |

**مشكل الفاظ**: مگس: مچ، پشه: غوماشه، گلو: غاړه، ستونی، پديد: ښکاره، چو: که چيري، پريد: په هوا سي، ننوزي.

**خلاصه**: يعني که چيري مچ يا غوماشه په ستوني کي دننه سي نو روژه فاسده نه ده.

| مي نشايد او را ملامت كرد | گر كسي رگ زد وحجامت كرد |
|---|---|
| نو د هغه ملامتول مناسب نه دي | که يو چا رگ ووهی يا يې وينه وکښل |

**مشکل الفاظ:** رگ زد: رگ وهل، حجامت: وینه کښل.

**خلاصه:** که چیري د کمزوری ېیره نه وي په رگ وهلو او وینه کښلو کي هیڅ پروا نسته او که چیري د کمزوری بیره وي نو بیا وینه کښل مکروه دي. (عمدة الفقه جلد ۳ ص ۲۷۰).

| نمک وسرکه کزدهان بچشید | روزه باقي ست گر فرونکشید |
|---|---|
| که مالگه یا سورکه په خوله وڅکي | روژه پاته ده که چیري لاندي ولاړ نه سي |

**مشکل الفاظ:** نمک: مالگه، دهان: خوله، بچشید: خوند وگوري، وڅکي. فرو: دننه.

| روزه باقي بود ولي مــــکروه | از کراهت مباش بي انـــدوه |
|---|---|
| روژه یې پاته ده مگر مکروه ده | د کراهت څخه مه بې فکره کیږه |

**مشکل الفاظ:** مباش: مه کیږه، بې اندوه: بې فکره. بې پروا.

**خلاصه:** د دواړو شعرونو مطلب دادی که بېله عذره د یو شي څکل مکروه دي او که عذر وي نو بیا مکروه نه دي، عذر دادی چي د مثال په توگه د یوې ښځي خاوند د بد طبیعته وي او په کتغ کي د مالگي په زیاتوب یا کمښت سره ناراضه کیږي او سختي کوي نو ښځه د کتغ خوند کتلای سي مگر باید تُو یې کړي او دننه ولاړ نه سي. (عمدة الفقه جلد ۳ ص ۲۶۵).

| ورکني مسح روغن وســرمه | بر سر وچشم نیست جــرمه |
|---|---|
| او که وموښې تېل او رانجه | پر سر او سترگو نسته هیڅ گناه |

**مشکل الفاظ:** روغن: تېل، سرمه: رانجه، چشم: سترگي، جرمه: پروا، گناه.

| نان که از بهر طفل مي خایند | علما اندرین چه فرمــــایند |
|---|---|
| ډوډۍ چي د کوچني لپاره ژول کیږي | عالمان په دې اړه څه فرمایي |

| گر ضرورت بود روا بــــاشد | بي ضرورت چنین خطا بــاشد |
|---|---|
| که چیري ضرورت وي نو روا ده | او بېله ضرورته غلطي گڼل دي |

**خلاصه**: یعني که چیري د کوچني لپاره دودی وړول سي نو که چیري د ضرورت لپاره وي پروا نه لري مګر بېله ضرورته مکروه دي، ضرورت دادی چي د روژاتې ښځي سره بل بې روژې نه وي چي کوچنی ته دودی ورکړي او کوچنی وږی وي نو داسي ښځي ته دودی ژول د کوچني لپاره هیڅ پروا نه لري. (عمدة الفقه).

| بفراموشي اركني وخــــوري | هست هر دو ترا هني ومـري |
|---|---|
| که چیري په هېره جماع وکړې یا خوراک | دواړه ستا لپاره مبارک او ښه دي |

**مشکل الفاظ**: فراموشي: هېره، ارکني: که جماع وکړې، هني: مبارک، مري: هضمېدونکې

| روزه تست همچنان بـــاقي | گر تو سيري وگر تو مشتاقي |
|---|---|
| ستا روژه هم هغسي پاته ده | که چیري ته موړ او که په شوق کې يې |

**مشکل الفاظ**: سيري: موړ، مشتاق: خواهشمند.

**خلاصه**: یعني په هېره کوروالي کول او همدارنګه په ماړه نس دودی خوړل روژه نه ماتوي.

| وربقصد ست خوردن وكارت | لازم آيد قـــــضا وكـــفارت |
|---|---|
| او که په قصد وسي خوراک او یا جماع | نو لازمیږي پر تا باندي قضا او کفاره |

**خلاصه**: یعني په قصد سره کوروالي کول او یا داسي شی خوړل چي په هغه سره د بدن اصلاح مقصد وي نو په دغو دواړو صورتونو کي روژه ماتیږي، باید قضا او کفاره دواړه راوګرځوي.

| گرخوري آنچه زوغذا نــــبود | بر تو لازم بجز قضا نـــــبود |
|---|---|
| او که چیري ته وخوړې هغه چي غذا نه وي | پر تا باندي د قضا ماسیوا بل څه لازم نه دي |

**مشکل الفاظ**: یعني د داسي شي په خوراک سره چي د غذا یا دوا په توګه نه استعمالیږي یوازې د روژې قضا لازمیږي او کفاره نسته.

| همچو سنگ وكلوخ وآهن و روی | نبود زين قبيل گل سرشـــوی |
|---|---|
| لکه دبره، لوټه، اوسپنه او رویي | نه دي ددغه دول څخه د سر پرېولو شیان |

**مشكل الفاظ:** سنگ: ډبره، كلوخ: لوټه، آهن: اوسپنه، روی: ګل، سرشوی: هغه خاوره چي مخكنيو به سرونه په پرېولل.

**خلاصه:** يعني د ډبري، لوټي، اوسپني او داسي نورو شيانو په خوراک سره يوازي قضا لازميږي مگر د سر پرېوللو والا خاوره (ميټ) څرنگه چي خلک يې د خوراک لپاره هم استعمالوي نو په دې سره قضا او كفاره دواړه لازميږي.

| در تطوع اگر شـــــروع كني | پس رجوع از براى جـوع كني |
|---|---|
| كه چيري ته نفلي روژه شروع كړې | او بيا يې د لوږي په وجه ماته كړې |

**مشكل الفاظ:** تطوع: نفل، جوع: لوږه.

| تا تواني اداش بايـــــد كرد | نزد نعمان قضاش بايد كـــرد |
|---|---|
| تر څو چي ممكن وي بايد اداسي | د امام ابوحنيفه په نزد بايد قضاء يې راوړل سي |

**خلاصه:** كه چيري يو څوک نفلي روژه شروع كړي او بيا يې د لوږي په وجه ماته كړي نو څرنگه چي د نفلي روژې په شروع كېدو سره واجبيږي نو بايد تر خپله وسه يې ماته نه كړي او پوره يې كړي، او كه چيري يې ماته كړې نو د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد قضاء يې واجب ده.

# باب دهم

## در بيان كفاره روزه رمضان

لسم باب د رمضان د روژې د كفارو بيان.

يوازي د رمضان د مياشتي د روژې په ماتولو سره كفاره واجبيږي او د نورو روژو په ماتولو سره كفاره نه لازميږي بلكه يوازي قضاء لازميږي.

| گر كسي قصد كرد درخوردن | بنهار ومـجـــامـــعت كردن |
|---|---|
| كه يو څوک په قصد سره په ورځ كي خوراک وكړي | يا څښناک يې وكړي او يا كوروالي يې وكړه |

**خلاصه:** نو پر هغه كفاره لازميږي چي بيان به يې په راتلونكو شعرونو كي راسي.

| شصت مسکین طعام باید داد | یا یکي بنده کـــردنش آزاد |
| --- | --- |
| باید شپیتو مسکینانو ته ډوډۍ ورکړي | او یا یو غلام باید ازاد کړي |
| یا دوماه روزه زا پیاپـــي دار | تا شوي از حیات بر خـــوردار |
| یا باید دوې میاشتي پرله پسې روژې ونیسي | تر څو د ژوند څخه ګټه تر لاسه کوبنکی سې |

**مشکل الفاظ:** شصت: شپېته، بنده: غلام، پیاپي: پرله پسې، حیات: ژوند.

**خلاصه:** د رمضان د میاشتي د روژې په ماتولو سره کفاره لازمیږي مګر په لاندي ترتیب سره:

۱: غلام دي ازاد کړي.

۲: که چیري د غلام ازادولو توان ونه لري نو دوې میاشتي پرله پسې روژې دي ونسي، په داسي توګه چي په منځ کي د اخترونو، تشریق او بل رمضان ورځي رانه سي، که چیري په منځ کي یوه روژه ماته سي نو باید بیا له سره روژې نېول پیل کړي.

۳: که چیري یې نه سي نیولای نو باید شپیتو مسکینانو ته دوه وخته په ماړه نس ډوډۍ ورکړي یا د سرسایې په اندازه غله ورکړي، او یا یوه مسکین ته تر شپیتو ورځو پوري دوه وخته په ماړه نس ډوډۍ ورکړي.

# خاتمه

| از برائي تو این قدر گـــفتم | یادګیرش که مختصر گـــفتم |
| --- | --- |
| ستا لپاره مي دومره اندازه وویل | په یاد یې کړه ځکه ما مختصر وویل |
| هر که این را بصدق برخـواند | واجب وفرض ونفل حـق داند |
| څوک چي دغه په رېښتیا سره ووایي | د الله ﷻ واجب، فرض او نفل به و پېژني |

**خلاصه:** یعني څوک چي دغه کتاب په رېښتیا او اخلاص سره ووایي نو هغه به په شرعي

احکامو پوه سي او همدا رنګه فرض، واجب، سنت او نفل به وپېژني.

| از وفات رسـول تـا امـسال | نو دوسه برفت وششصد سال |
|---|---|
| د رسول الله ﷺ د وفات څخه تر سږ کال پوري | شپږ سوه درو نيوي کاله تېر سوي دي |

**مشکل الفاظ**: امسال: سږ کال، رفت: تللي دي.

**خلاصه**: يعني د کتاب د پوره کېدو تر کال پوري د رسول الله ﷺ د وفات شپږ سوه درو نيوي کاله تېر سوي دي.

| بود کاين نظم گشت مستکمل | نيمه از جـمادي الاول |
|---|---|
| وه چي دغه نظم مکمل سو | نيمه د جمادي الاول د مياشتي |

**مشکل الفاظ**: نيمه: نيم. مستکمل: پوره، بشپړ.

| بـاز گويـنده ورسـانـنده | رحمت حق نثار خـوانـنده |
|---|---|
| بيا پر ويونکو او رسوونکو باندي | د الله ﷻ رحمت دي پر لوستونکو قربان سي |

**مشکل الفاظ**: خواننده: ويونکي، يعني شاګردان، ګوينده: ويونکی، يعني مصنف، او رسانند‌ه: رسوونکی، يعني استادان.

تمت بالخير

# محمود نامه

مصنف

محمود غزنوي
او یا
ایاز

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

# محمود نامه

## د محمود کتاب

**تشریح:** د دغه کتاب د لیکوال په اړه اختلاف دئ، ځیني وایي چي پخپله محمود غزنوي دئ، ځیني وایي چي د نوموړي غلام ایاز دغه توګه لیکلی ده او ځیني بیا وایي چي لیکوال یې یو بزرګ وو.

| | |
|---|---|
| ای داغ بر دل از غم خال تو لاله را | شرمنده ساخت آهو چشمت غزاله را |
| اې پر زړه داغه ستا د خال د غمه د لاله ګل | شرمنده یې کړه هوسۍ ستا سترګو |

**مشکل الفاظ:** لاله: ګل لاله، آهو: هوسۍ، غزاله: هوسۍ.

| | |
|---|---|
| از انفعال لعل لبت لاله درچمن | دیگر بدست خویش نگیرد پیاله را |
| ستا د سرو شوندو په وجه ګل لاله په چمن کي | بیا به په خپل لاس کي نه واخلي پیاله |

**مشکل الفاظ:** لعل: سور، لبت: ستا شونډي، دیگر: بیا. خویش: خپل.

| | |
|---|---|
| آگه نگشت شاهد گل گرچه صد هزار | بلبل ز روی دردکشد آه وناله را |
| خبر نه سو د ګل مین که څه هم سل زره ځله | بلبل د درد څخه آه او فریاد وکړي |

**مشکل الفاظ:** آگه: خبر، شاهد: مین، ناله: فریاد.

| | |
|---|---|
| آمد برون بگرد رخت خط عنبرین | کس گرد مه ندید بدینگونه هاله را |
| راغله ستا د مخ شاوخوا د عنبرو کرښه | چا د سپوږمۍ شاوخوا داسي شغلې لیدلې نه دي |

**مشکل الفاظ:** رخت: ستا مخ، عنبرین: د عنبرو په ډول، گرد: شاوخوا: مه: سپوږمۍ، هاله: د سپوږمۍ شاوخوا شغلې.

| آسان زخوان وصل تو کس بهره نیافت | مشکل توان گرفت بدست این نواله را |
| --- | --- |
| ستا د سترخوان څخه چا په اساني برخه نه ده اخیستې | په سختۍ سره به تر لاسه کړي دغه ګوله |

**مشکل الفاظ:** خوان: سترخوان، بهره: برخه، نواله: ګوله.

| اوصاف گل زبلبل بیدل توان شنید | چون مثل او نخواند کسي این رساله را |
| --- | --- |
| د ګل صفتونه باید د بلبل څخه واوریدل سي | د هغه په دول هیچا ویلي نه ده دغه رساله |

**مشکل الفاظ:** بلبل بېدل: بې زړه بلبل.

| آزرده کی کند دل محمود را آیاز | نیکو کند مطالعه گر این قباله را |
| --- | --- |
| ایاز به د محمود زړه کله خفه کړي | که چیري دغه قباله ښه ووایي |

**مشکل الفاظ:** آزرده: خفه، نیکو: ښه، مطالعه: ویل.

=======

| برفگن از ماه رخ خـــود نقاب | تا نکند دعــوی حسن آفتاب |
| --- | --- |
| پورته ګړه د خپل سپوږمۍ غوندي مخ څخه پرده | چي ونه کړي دعوه د ښکلا لمر |

**مشکل الفاظ:** برفګن: پورته کړه، ماه رخ: د سپوږمۍ غوندي مخ، نقاب: پرده، آفتاب: لمر

| باده گلگون چه کشي بارقـیب | چند کني جان ودلم راکباب |
| --- | --- |
| سره شراب به تر څو پوري د رقیب سره څښېږي | تر څو به مي ځان او زړه کبابوي |

**مشکل الفاظ:** باده: شراب، ګلګون: سره، کشي: څښېږي.

| بهر قدمبوس تو آمد بـــــسر | نعره زنان آب بصد اضـطراب |
| --- | --- |
| ستا د قدم مچولو لپاره پر سر راغلي | چغي وهونکي اوبه په سلو بې تابیو |

**مشکل الفاظ:** بهر: دپاره، بوس: مچول، نعره زنان: چغي وهونکي. اضطراب: بې تابي.

| بیتو محالست که در چشم من | جای کند در شب هجر تو خواب |
| --- | --- |
| بیله ستا ناممکن دي چي زما په سترګو کي | ځای ونیسي ستا د بېلوالي په شپه کي خوب |

**مشکل الفاظ**: محال: ناممکن، هجر: بېلوالی.

| بـزم تـو یـــاد آورد و مي کـنـد | ناله چوني هر نفس از غم رباب |
| --- | --- |
| ستا مجلس یادوي او کوي | ژړا په دول د شپېلۍ هر ګړی د غم رباب |

**مشکل الفاظ**: بزم: مجلس، ناله: ژړا،

| بـا قـــد تو سرو برابر نــشد | پیش رخت شد زخجالت گل آب |
| --- | --- |
| ستا د قد سره د چنار درخته برابره نه سوه | ستا و مخته د شرمندګۍ څخه ګل اوبه سو |

**مشکل الفاظ**: سرو: د چنار درخته، رخت: ستا مخ، خجالت: شرمندګي. گل آب: د ګلاب اوبه.

**خلاصه**: یعني ګل ستا د مخ په لېدو سره د شرم څخه اوبه سو.

| باز ایـــاز از دل مـــحمود بـرد | صبـر و قرار وخرد وخورد وخوب |
| --- | --- |
| بیا ایاز د محمود د زړه څخه یوور | صبر او قرار او عقل او خوراک او څښناک |

**مشکل الفاظ**: باز: بیا، برد: یوور، خرد: عقل،

=======

| پرده‌ساقي پیاله گاه راس وگاه چپ | از شراب دیر ساله گاه راس وگاه چپ |
| --- | --- |
| د که پیاله راکوي ساقي کله راسته او کله چپه خواته | د زړو شرابو څخه کله راسته او کله چپه خواته |

**مشکل الفاظ**: پر: ډک، دهد: راکوي، ساقي: اوبه کوونکی، گاه: کله، دیرساله: زاړه.

| پند ناصح میکند از باده ام اما چه سود | میکند ساقي حواله گاه راس وگاه چپ |
| --- | --- |
| ماته ناصح نصیحت کوي د شرابو څخه مګر څه ګټه | حواله کوي ساقي کله راسته او کله چپه خواته |

**مشکل الفاظ**: باده: شراب، سود: ګټه،

| | |
|---|---|
| پیش او گر لاف خوبي گل زند بادافگند | از خجالت این رساله گاه راس وگاه چپ |
| د هغه په مخکي که چیري گل د ښکلا لاپي ووهي نو باد به یې وغورځوي | د شرمندگی څخه دغه رساله کله راسته او کله چپه خوا ته. |

**مشکل الفاظ**: لاف: لاپي وهل، باتي ویشتل، افگند: وغورځوي،

| | |
|---|---|
| پاکبازان راست وچپ باستاده اندر عشق تو | رونمای همچو لاله گاه راس وگاه چپ |
| ربښتني مینان راسته او چپه خوا ته ستا په مینه کي ولاړ دي | مخ ښکاره کړه لکه د لاله گل، کله راسته خوا او کله چپه خوا |

**مشکل الفاظ**: پاکبازان: ربښتني مینان، باستاده: ولاړ، رونمای: مخ ښکاره کړه.

| | |
|---|---|
| پرتو حسن تو مارا مزرع امیدهست | لیک هجرت همچو ژاله گاه راس وگاه چپ |
| ستا د ښکلا رڼا زما لپاره د کښت امید دئ | مگر ستا بېلوالی لکه ژلۍ کله راسته او کله چپه خواته |

**مشکل الفاظ**: پرتو: رڼا، مزرع: کښت، هجرت: ستا بېلوالی، ژاله: ژلۍ،

| | |
|---|---|
| پیروبرنابرمه روی تو عاشق شد بجان | صف زده گردت چوهاله گاه راس وگاه چپ |
| زوړ او ځوان ستا پر مخ مین سول په اخلاص | صف ترلي شاوخوا ستا لکه شغلي کله راسته او کله چپه |

**مشکل الفاظ**: پیر: بوډا، برنا: ځوان، هاله: د سپوږمۍ شاوخوا شغلي.

| | |
|---|---|
| پارسای تابکي محمود رامی میدهد | ساقي مشکین کلاله گاه راس وگاه چپ |
| پرهیزگاري به تر څو محمود ته شراب ورکړي | چي تورو زلفو والا ساقي وي کله راسته او کله چپه خواته |

**مشکل الفاظ**: پارسای: پرهیزگاري، می: شراب، کلاله: زلفي،

---------

| تاب روی تو شمع انجمن ست | گل روی تو زینت چمن ست |
|---|---|
| ستا د مخ ځلا د مجلس ډېوه ده | ستا د مخ گل د باغ ښکلا ده |

**مشکل الفاظ:** تاب: ځلا، انجمن: مجلس،

| توی امروز یوسف ثاني | زان سبب عاشق تو مردوزن ست |
|---|---|
| ته نن ورځ دوهم یوسف یې | له دې کبله ستا مینان نارینه او ښځې دي |
| تن تو هر که دید گفت از شوق | الله الله که این چه سمیتن ست |
| ستا بدن چې هر چا ولیدی و یې ویل د شوق څخه | خدایه! خدایه! دا څومره سپین بدن دئ |

**مشکل الفاظ:** تن: بدن، سمیتن: سپین بدن.

| تنگ دربر گرفت هر که ترا | دل او شاد کام از حسن ست |
|---|---|
| تا چې څوک په غېږ کې ټینګ ونیسي | د هغه زړه خوشحاله سي د ښکلا څخه |

**مشکل الفاظ:** تنگ: ټینګ، دربر: په غېږ کې، کام: مقصد، شاد: خوشحاله.

| ترک عشق توچون کنم من زار | تامراجان خسته در بدن ست |
|---|---|
| زه عاجزه به ستا مینه څنګه پرېږدم | تر څو چې زما په بدن کې زخمي روح وي |

**مشکل الفاظ:** زار: عاجز، تامرا: تر څو چې ما لره، خسته: خفه.

| تازه تر شد رخ تو از خط سبز | بنده او بنفشه وسمن ست |
|---|---|
| تازه سو ستا مخ په شین خط سره | د هغه غلام دي بنفشه او یاسمین گلان |

**مشکل الفاظ:** رخ: مخ، بنده: غلام، بنفشه: یو دول گل، سمن: د یاسمین گل.

| تار زلف ایاز اي محمود | بهر پابند تو عجب رسن ست |
|---|---|
| د ایاز د زلفو تار اې محموده! | ستا د ترلو لپاره عجیبه رسی ده |

**مشکل الفاظ**: بهر: دپاره، پابند: د پښو تړل، رسن: رسی۔

======

| | |
|---|---|
| ثابت نشد بوعده خود یار الغیاث | زین غصه گشت جان ودلم زار الغیاث |
| پر خپله وعده ټینګ نه سو یار افسوس! | له دغه خپنمه مي ځان او زړه خوار سو افسوس |

**مشکل الفاظ**: الغیاث: افسوس، زار: خوار. عاجز.

| | |
|---|---|
| ثور ست و شیرجان من ومحنت فراق | باشیر وګاو ور شده پیکار الغیاث |
| غوایي او زمری دئ زما روح او کوښښ د بېلوالي | د زمري او غوایي په منځ کي جنګ دئ افسوس |

**مشکل الفاظ**: ثور: غوایی، فراق: بېلوالي، پیکار: جنګ.

| | |
|---|---|
| ثالث میان ما و تو پیدا شده رقیب | این از کجا رسید دګربار الغیاث |
| دریم زما او ستا په منځ کي رقیب پیدا سو | دا له کومه بیا راغلی افسوس دئ |

| | |
|---|---|
| ثمن می مغانه دهم نقد جان اګر | باشد زدست آن بت خمار الغیاث |
| د مغانه شرابو بیه به ورکړم که چیري | وي د هغه مست مین د لاسه افسوس دئ |

**مشکل الفاظ**: ثمن: بیه، مغانه: د یوې سیمي نوم، می: شراب، بت: معشوق.

| | |
|---|---|
| ثالث پیاله ساقي اګر بخشدم تمام | ګردم زبار درد سبکسار الغیاث |
| که دریمه پیاله راکړي ساقي ټوله | د درد د بار څخه به سپک سم افسوس دئ |

**مشکل الفاظ**: سبکسار: سپک.

| | |
|---|---|
| ثبت است بر جریده حسنت که ګفته اند | مردم بدور چشم تو بیمار الغیاث |
| ثابته ده ستا د ښکلا پر تخته چي ویلي یې دي | خلک ستا د سترګو په زمانه کي ناروغ دي افسوس |

**مشکل الفاظ**: جریده: تخته، دور: زمانه. چشم: سترګي، بیمار: ناروغ.

| محمود شد به غصه گرفتار الغیاث | ثوب از تن ایاز چو بگرفت کام دل |
|---|---|
| محمود په خپم سو افسوس دئ | جامې د ایاز د بدن څخه چې واخیست مقصد د زړه |

**مشکل الفاظ**: ثوب: جامه، کام: مقصد.

=========

| بیکدیدن بجان هستند محتاج | جمالت را هزاران صاحب تاج |
|---|---|
| د یو ځل لیدنې لپاره د روح محتاج دي | ستا ښکلا ته په زرګونو د تاج خاوندان |

| که درماند به پیش بـاز دُرّاج | چنان هجر تو مارا ساخت عاجز |
|---|---|
| لکه تیتر چې د باز په وړاندې عاجز سي | ستا بیلتون زه داسې عاجز کړم |

**مشکل الفاظ**: هجر: بیلتون، درماند: عاجز سي، دراج: تېتر.

| شد او را گویا بر چرخ معراج | چو جا بربام وصلت یافت عاشق |
|---|---|
| لکه هغه چې د آسمان معراج وکړي | کله چې مین ستاد وصال پر بام ځای پیدا کړي |

**مشکل الفاظ**: چرخ: آسمان.

| زمن آن ساعد صافي تر ازعاج | جهان شد تیره برمن چون نهفتي |
|---|---|
| زما څخه هغه مروند چې تر هډوکو پاک دئ | نړۍ راباندې تیاره سوه کله چې دې پټ کړی |

**مشکل الفاظ**: نهفتي: پټ دې کړی، ساعد: مروند، عاج: هډوکی.

| گرفت از قندمصري شکرت باج | جگرخون کرد زلفت مشک چین را |
|---|---|
| واخیستی د مصري قندو څخه ستا بورې جزیه | زړه یې ور وینې کړی ستا زلفو د چین مشک |

**مشکل الفاظ**: جگرخون: د زړه وینې، باج: محصول، جزیه.

| جدا از آفتـــــاب عـارض تو | سیه شد روز برمن چون شب واج |
|---|---|
| بېل ستا د مخ د لمر څخه | توره سوه ورځ پر ما لکه توره شپه |

**مشکل الفاظ**: آفتاب: لمر، سیه: تور، واج: تک تور.

| جمال خود ایاز از وی نهان داشت | که ماهي بیندش محمود ای کاج |
|---|---|
| خپله ښکلا ور څخه پټه کړله اياز | چي په یوه میاشت کي ولیدی محمود افسوس |

**مشکل الفاظ**: نهان: پټ، ماهي: یوه میاشت، کاج: افسوس.

| چومي بینم ترا ای مه دهان هیچ | زوصفت مي نیارم برزبان هیچ |
|---|---|
| کله چي وینم تا اې د سپوږمۍ خولې | ستا د صفت څخه راوړم پر ژبه هیڅ |

| چه گویم وصف آن موی میان را | که عقل آگه نگشته زان میان هیچ |
|---|---|
| څه صفت به وکړم د هغه وېښته ملا لرونکي | چي عقل خبر سوی نه دئ د هغه ملا څخه هیڅ |

**مشکل الفاظ**: موی: وېښته، میان: ملا، آگه: خبر،

| چرا یارب ندارد مهـــــــرباني | بعاشق آن مه نامهربـــان هیچ |
|---|---|
| ولي اې خدایه! نه لري مهرباني | پر مین د هغه سپوږمۍ نامهربانه هیڅ |

| چگونه گل بود چون روی آن ماه | که نبود گل چو اودر بوستان هیچ |
|---|---|
| څنګه ګل به وي په ډول د هغه سپوږمۍ مخ | چي نه به وي ګل د هغه په ډول په باغ کي هیڅ |

| چنان مائل شدم برحسن جانان | که جز ذکرش ندارم بر زبان هیچ |
|---|---|
| داسي مائل سوم په ښکلا د جانان | چي پرته د هغه د یادوني بل هیڅ نه لرم پر ژبه |

**مشکل الفاظ**: چنان: داسي، جز: ماسیوا،

| | |
|---|---|
| چه دانستي ازان دلبر توچندان | نشان شوخي دیگر ازان هیچ |
| څه دي زده کړه د هغه مین څخه یو څه | د شوخی نښې او نور هیڅ |

| | |
|---|---|
| چمن گل گل شده محمود امّا | دلم نشگفت بیرویش ازان هیچ |
| باغ ټول ګلان سو اې محمود مګر | زړه مي ونه غوړېدی د هغه د مخ څخه هیڅ |

**مشکل الفاظ**: اما: مګر، دلم: زما زړه، نشگفت: نه وغوړېدی.

| | |
|---|---|
| حرام باد بجز یار گلعذار قدح | فدای باده لعلش کنم هزارقدح |
| حرام دي وي بېله ګل مخي یار پیاله | قربانوم په سرو شونډو د هغه زر پیالې |

**مشکل الفاظ**: گلعذار: د ګل غوندي مخ، قدح: پیاله، فدای: قربان، باده: شونډي.

| | |
|---|---|
| حبیب من چو شود ساقي وقدح گیرد | روان بچرخ درآید هزاربار قدح |
| زما جیب چي ساقي سي او پیاله ونیسي | د آسمان له خوا راسي په زرګونو ځله پیاله |

| | |
|---|---|
| حسود را از حسد خون دل بجوش آید | چو پر زباده بدستم دهدنگار قدح |
| د حسدکوونکي زړه د حسد څخه په جوش راغلی | چي دکه پیاله په لاس راکړي مین |

| | |
|---|---|
| حلال نیست می لعل بی لب ساقي | بود حرام چو نوشند خوشگوار قدح |
| بېله شونډو د ساقي سره شراب حلال نه دي | حرام دي چي څښښي ښه پیالې |

| | |
|---|---|
| حکایت از جم وجام گذشته دارد یاد | میان خلق ازان دارد اعتبار قدح |
| د جام تېره سوي قصه په یاد ولره | د خلکو په منځ کي د هغه په وجه اعتبار لري پیاله |

| | |
|---|---|
| حریف باده کشانست انکه ازره شوق | بنقدجان بستاندزدست یار قدح |
| ملګري د شراب خوړونکو دي هغه چي د شوق څخه | د روح په بیه اخلي د یار د لاس پیاله |

**مشکل الفاظ:** حریف: ملگری، از ره: له کبله. بنقد: په بیه اخلي.

| حدیث توبه وتقوی مپرس از محمود | دهد ایاز چو اورا می دو وچار قدح |
|---|---|
| د توبې او پرهیزگارۍ خبره مه پوښته د محمود څخه | چي ورکړي ایاز هغه ته د شرابو دوې څلور پیالې |

**مشکل الفاظ:** حدیث: خبري، مپرس: مه پوښته، می: شراب، قدح: پیاله.

===========

| خبر از حال مانگرفت آن شوخ | چو او دیگر ندیدم دلستان شوخ |
|---|---|
| زما د حال خبر یې نه واخیست هغه شوخ | د هغه په ډول مي ونه لیدی زړه وړونکی شوخ |

**مشکل الفاظ:** شوخ: توند، دلستان: زړه وړونکی.

| خروش از دست او دارند پیران | کسي کم دید مثل آن جوان شوخ |
|---|---|
| خروښ لري سپین ږیري د هغه د لاسه | چا لیدلی نه دئ د هغه ځوان په ډول شوخ |

**مشکل الفاظ:** خروش: خروښ: شور، پیران: سپین ږیري. جوان: ځوان.

| خرابي کرد در هر گوشه چشمش | نباشد کس سیه دل تر ازان شوخ |
|---|---|
| د هغه سترګو هري خوا ته خرابي پېښه کړه | نه به وي تور زړه تر هغه بې شرمه |

**مشکل الفاظ:** گوشه: شاوخوا، چشم: سترګي، سیه: تور،

| خدا پایــــنده دارد خوبي او | اگر چه نیست چون او در جهان شوخ |
|---|---|
| خدای دي تل ولري د هغه ښکلا | که څه هم نسته د هغه په ډول په نړۍ کي شوخ |

**مشکل الفاظ:** پاینده: تل، خوبي: ښه والی،

| خدا را چند خواهي کرد شوخي | نباید بود زینسان جاودان شوخ |
|---|---|
| د خدای لپاره به څومره شوخي وکړي | باید نه وي دا ډول تل شوخي |

| بعاشق آشکارا ونهان شـــوخ | خرد حیران آن شوخست کامد |
|---|---|
| عاشق ته ښکاره او پټ وي هغه شوخ | عقل حیران دئ د هغه شوخ څخه چي راغلی |

**مشکل الفاظ:** خرد: عقل، کامد: چي راغلی، آشکارا: ښکاره، نهان: پټ.

| ایاز اوست بس نامهربان شوخ | خراب از عشق او محمود شد زانکه |
|---|---|
| ایاز د هغه بې رحمه دئ شوخ | خراب سو محمود د هغه د مینې څخه ځکه چي |

========

| وصف تو صد هزار مي گوید | دل تــرا گلعـــــذار میگوید |
|---|---|
| ستا صفت په زر ځله وایي | زړه تا ته د ګل په دول مخ وایي |

| خلق مشک تتار مي گـــوید | دانه خال عــــــنبرین ترا |
|---|---|
| خلک ورته د تتار مشک وایي | ستا د عنبرین خال دانه |

**مشکل الفاظ:** عنبر: یو دول خوشبویي، تتار: د یوې سیمې نوم

| وصف رخسار یار مي گـــوید | در دهان هر که او زبـان دارد |
|---|---|
| د یار د مخ صفت وایي | هر څوک چي په خوله کي ژبه لري |

| تُرک مردم شکار مي گـــوید | دلبرا خلق چشم مست تـــرا |
|---|---|
| ښکار کوونکي عسکر وایي | اې محبوبه! خلک ستا مستو سترګو ته |

**مشکل الفاظ:** دلبر: محبوب، چشم: سترګي.

| باده خوشگوار می گـــوید | داروئي درد یار را عــــاشق |
|---|---|
| خوندور شراب ورته وایي | د یار د درد درملو ته عاشق |

**مشکل الفاظ**: دارو: درمل، باده: شراب. خوشگوار: خوندور.

| در اشکم چو یار مي بـــــیند | گوهر آبدار مـــي گــــــوید |
|---|---|
| زما د اوښکو ملغلري چي یار ویني | آبداره ملغلره ورته وایي |

**مشکل الفاظ**: در: ملغلره، اشکم: زما اوښکي، گوهر: ملغلره.

| درد تو با ایاز اي مــــــحمود | دیده اشکبار مــي گــــوید |
|---|---|
| ستا درد ایا ز ته اي محمود! | اوښکي تویوونکي سترګي ورته وایي |

**مشکل الفاظ**: دیده: سترګي، اشکبار: اوښکي تویوونکي.

=======

| ذکر لب تو هست بسي برزبان لذیذ | آریکه هست طعم شکر در دهان لذیذ |
|---|---|
| ستا د شونډو یادول ډېر خواږه دي پر ژبه | هو چي دئ خوند د بوري په خوله کي خوږ |

**مشکل الفاظ**: بسي: ډېر، لذیذ: خوندور، خوږ،

| ذاکر چــومن کجـــــاست ترا درجهان دگر | زانرو که هــست ذکر تو اي دلستاں لذیذ |
|---|---|
| زما په ډول یادونکی ستا چیري دئ په نړۍ کي | ځکه ستا یاد ډېر خوږ دئ اي محبوبه |

| ذوالمنتي ومنت تو میکشم بجان | عشاق راست منت شیرین لبان لذیذ |
|---|---|
| د احسان خاوند يې او احسان دي ورم پر ځان | مینانو ته احسان د خوږو شونډو خوږ دئ |

**مشکل الفاظ**: ذوالمنتی: د احسان خاوند، منت: احسان، میکشم: پر ځان ورم،

| ذره صفت زمــــهر تــو هستم در اضطراب | چون هســـت مهـــرت ای مـــه نامهربان لذیذ |
|---|---|
| د ذرې په اندازه ستا د میني څخه یم بې تابه | چي دئ ستا صفت اي سپوږمۍ بې رحمه خوږ |

| ذل تو عزتست وغـــــمت به زشادي ست | زهر آمـده زدست تو در کام جان لذیذ |
|---|---|
| ستا ذلیل کېدل عزت دئ او غم دي تر خوشحالی ښه دئ | زهر سول ستا د لاس په تالو کي د ځان خواږه |

**مشکل الفاظ**: ذل: ذلیل کېدل، خوار کېدل، کام: تالو.

| ذنب عظیم پیش لبت هســـت وصف قند | کامد زطعم قـــند لب گلرخان لـــذیذ |
|---|---|
| د قندو صفت ستا د شونډو سره لویه ګناه ده | ځکه د قند د خوند څخه د معشوق شونډي خوږې دي |

**مشکل الفاظ**: ذنب: ګناه، عظیم: لوی، طعم: خوند، قند: یو ډول خوږشی.

| ذیل ایاز رازده محمود دست شوق | چون آمده گرفتن ذیل بتان لذیذ |
|---|---|
| د ایاز په لمن وهلی دئ محمود لاس د شوق څخه | کله چي د مینانو د لمن نیول خوندور دي |

**مشکل الفاظ**: ذیل: لمن، بتان: مینان. محبوبان.

| روی تو هست غـــیرت گلزار | گشت زان پیش روی تو گلزار |
|---|---|
| ستا مخ د ‌ه‌غیرت باغ دئ | له دې کبله ګل ستا د مخ په وړاندي عاجز سو |

| راز دل باسگ درش گــــویم | پیش مردم چرا کـــنم اظهار |
|---|---|
| د زړه راز به ستا د دروازې سپي ته ووایم | د خلکو په وړاندي یې ولي ښکاره کړم |

**مشکل الفاظ**: سگ: سپی، در: دروازه، اظهار: ښکاره کول، څرګندول.

| روزئي ما نشد وصـــال حبیب | زینها راز قـــــرین بد زنهار |
|---|---|
| زما په برخه نه سو د یار وصال | امان دي وي د بد ملګري څخه امان |

| روز تا شب در آتش هـــجرم | وقـــــنا ربنا عـــذاب النار |
|---|---|
| ورځ او شپه د بېلتون په اور کي | او موږ وساتې اې زموږ ربه! د اور د عذاب څخه |

**مشکل الفاظ**: آتش: اور، هجر: بېلتون، وقنا: او موږ وساتې، النار: اور.

| رنگ من زعفراني از غم تـــست | ریزم ازدیدهَ اشک چون گلنار |
|---|---|
| ستا د غمه مي رنگ د زعفرانو (ژړ) دئ | تویوم د سترګو څخه اوښکي لکه د انار ګل |

| روی تـــــو از گلست نازک تر | نیست گل چون رخت یکي زهزار |
|---|---|
| ستا مخ تر ګل ډېر نازک دئ | نسته ګلُ ستا د مخ په ډول یو په زرهاوو کي |

| راست تیر ایـــاز ای محـــمود | در دل من نشست تا ســـوفار |
|---|---|
| سم غشی د ایاز اې محمود! | زما په زړه کي ولګېدی تر بېخه پوري |

**مشکل الفاظ**: راست: سم، تیر: غشی، سوفار: بېخ.

===========

| زهي ز رویتو شرمنده لاله وگل نیز | شد از کلام تو طوطي زبون وبلبل نیز |
|---|---|
| ستا د مخ څخه شرمنده دئ لاله او ګل هم | دا ستا د خبرو څخه عاجز دي طوطي او بلبل هم |

| زروی حسن خط وزلف عنبرین ترا | بنفشه داد خط بندگي وسنبل نیز |
|---|---|
| ستا د ښکلا د خط او تورو زلفو له کبله | بنفشه ورکړی د بندګۍ خط او سنبل هم |

| زمان زمان سوی من کن زعین لطف نگاه | خدنگ غمزه مزن ناوک تغافل نیز |
|---|---|
| ګړی ګړی ما ته د مهربانۍ په نظر ګوره | غشی د غمزه مه وهه او هم د بې پرواهۍ غشی |

**مشکل الفاظ**: خدنګ: غشی، ناوک: غشی، تغافل: بې پرواهي، نیز: دغه ډول.

| زدم چو بوسه برآن لب بگیرم آن سر زلف | که باد دورمی لعل را تسلسل نیز |
|---|---|
| چي مچوم هغه شونډي نو د سر زلفي هم نیسم | چي سره شراب وي پرله پسي هم |

| زوال نیست ازاں آفتاب حسن ترا | که داد جاه ترا لطف حق بتجمل نیز |
|---|---|
| زوال نسته ، هغه ستا ښکلا لره | چي درکړه مرتبه تا ته د خدای مهرباني د ښائست هم |

**مشکل الفاظ**: زوال: ختمېدل، جاه: مرتبه، حق: الله ﷻ، بتجمل: په ښکلا.

| زکوی دوست زبیم رقیب کی گردم | که هست همره من همت وتوکل نیز |
|---|---|
| د یار د کوڅي څخه به د رقیب د بیري کله را وګرځم | چي لرم زه قصد او توکل هم |

**مشکل الفاظ**: کوی: کوڅه، زبیم: د بیري څخه.

| زکوة حسن به محمود زود داد ایاز | نه کرد هیچ تغلل درین تامل نیز |
|---|---|
| زکوة د ښکلا یې محمود ته ژر ورکړ ایاز | په دې کي یې هیڅ بهانه او ځنډ ونه کړ |

**مشکل الفاظ**: زود: ژر، تغلل: بهانه، تامل: ځنډ، فکر.

=========

| ژند چون پوشـــیده مدرای ژاژ | زانکه نتوان شد زسرتا پای ژاژ |
|---|---|
| زاړه چي دي اغوستي دي مه وايه عبث | ځکه نه سي کیدای سر تر پایه عبث |

**مشکل الفاظ**: ژند: زوړ، ژاژ: عبث، نتوان: نه سي کیدای،

| ژرف دریا یکـست عشقش اي رقیب | انــدرین دریا دگر مدرای ژاژ |
|---|---|
| د هغه د میني یو ژور دریاب دئ اي رقیبه! | په دغه دریاب کي خبري مه کوه عبث |

**مشکل الفاظ**: ژرف: ژور، مدرای: مه ګډېږه، ژاژ: عبث.

| ژاله اشکم که در ابر غم است | نیست این خر مهره دریای ژاژ |
|---|---|
| ژلی د اوښکو مي د غم په وريځ کي دي | نه ده دغه شنه دانه د درياب عبث |

**مشکل الفاظ:** ژاله: ژلی، اشکم: زما اوښکي، ابر: وريځ، خرمهره: شنه دانه.

| ژاژ خای میکند با ما رقـــیب | ما چه غم داریم گو میخای ژاژ |
|---|---|
| پالتو خبري کوي په ما پسي رقيب | زه څه غم لرم ورته ووايه چي وايه پالتو |

| ژفت نبود چون رقیب سگ صفت | یاوه گـوئی ابلهي خودرای ژاژ |
|---|---|
| بي خونده به نه وي تر رقيب سپي صفته | پالتو ويونكی، بي عقل، كبرجن پالتو |

**مشکل الفاظ:** ژفت: بي خونده، سگ صفت: د سپي صفت لرونکی، یاوه: پالتو، ابهلي: بي عقل، خودرای: لويي کوونکی، کبرجن.

| ژاژ غم آمد مسلم بر دلـــــم | تانگوئی میخورم غـمهای ژاژ |
|---|---|
| غلبه د غم مي راغلة پر زړه تينګه | تر څو ونه وايي چي خورم غمونه پالتو |

| ژخ کجا چون ناله اش باشد حزین | ناله مـــحمود نبود وای ژاژ |
|---|---|
| ژنگ به کله غمجن وي د هغه د ژړا په دول | ژړا د محمود نه وي عبث افسوس |

**مشکل الفاظ:** ژخ: ژنگ، ناله: فریاد، ژړا، حزین: غمجن، وای: افسوس.

==========

| سینه من سپر تیر تومیباشد وبس | دل محنت زده نخچیر تو میباشد وبس |
| --- | --- |
| زما سینه به ستا د غشي سپر وي او بس | تکلیف ځپلی زړه به ستا ښکار وي او بس |

**مشکل الفاظ**: نخچیر: ښکار، محنت‌زده: تکلیف وهلی.

| ساختي مرشد من پیر خرابات ایدل | عاقبت رهبر من پیر تو میباشد وبس |
| --- | --- |
| زما پیر دي د شرابخانې پیر جوړ کړی اې زړه | په پای کې زما رهبر به ستا پیر وي او بس |

**مشکل الفاظ**: خرابات: شرابخانه، عاقبت: په‌پای کې. مرشد: پیر.

| سخت غمناک مشو زانکه دولت وصل | شادي خاطر دلگیر تو میباشد وبس |
| --- | --- |
| ډېر مه غمجن کیږه ځکه د یوځای کېدو دولت به | ستا د خفه زړه د خوشحالۍ سبب وي او بس |

| سروقدیکه زهجر رخ اومي میري | غم مخور زانکه دگر میرتومیباشد وبس |
| --- | --- |
| هغه د چنار درخته چې د هغه د مخ د بېلتون ځخه مري | غم مه کوه چې بیا به ستا سردار وي او بس |

| سازحال دل خودپیش سگ او تقریر | شاهد حال توتقریر تو میباشد وبس |
| --- | --- |
| بیان کړه د خپل زړه حال د هغه سپي ته | ستا د حال شاهد ستا خبره ده او بس |

**مشکل الفاظ**: ساز: جوړ کړه، سگ: سپی، تقریر: بیان.

| سوی من تیر نظر گرفگني اي محمود | سینه هن سپرتیرتومیباشد وبس |
| --- | --- |
| که‌زما په‌خوا د نظر غشی وغورځوې اې محمود! | زما سینه به ستا د غشو سپر وي او بس |

**مشکل الفاظ**: سوی من: زما په خوا، گرفگني: که چیرې وغورځوې.

========

| شهسوارنکه آمـــــدملک خوبي کشورش | بادشاه مسند حسنست وخوبان لیشکرش |
| --- | --- |
| زماپاچا چي راغلی د ښکلا هیواد ته | د ښکلا د تخت پاچا دئ او معشوق د لښکر |

**مشکل الفاظ**: شهسوار: پاچا، کشور: هیواد، مسند: تخت.

| شادکـــی گردد دل غـــمگـــین بیروید وست | خرم آنساعت کـه میبینم روی بار دیگرش |
| --- | --- |
| کله به خوشحاله سي غمجن زړه ښله د یار د مخ | ځومره ښه به وي چي بیا ووینم هغه مخ |

**مشکل الفاظ**: شاد: خوشحاله، خرم: ښه،

| شاخ گل نازک نباشـــد چون نهال قد یـار | عاقبت روز ی بـــآب دیده آرم دربرش |
| --- | --- |
| د گل ښاخ به دومره نازک وي لکه د یار قد | اخیر به یې یوه ورځ په اوښکو د سترګو و غیږ ته راولم |

| شمع از سوز درونم ســــربسر دارد خبر | سوخته برمن دلش زان میرود دود از سرش |
| --- | --- |
| زما د زړه په سوز شمع ښه خبره ده | پر ما یې زړه وسوځي ځکه یې دود د سره وځي |

**مشکل الفاظ**: شمع: ډیوه، سوز: سوځل، سوخته: سوځلی،

| شب همـه شب میــکنم فریاد و فغان تاسحر | عمرها شـــد کار من اینست برخاک درش |
| --- | --- |
| د شپې ټوله شپه فریاد او چغې وهم تر سهاره | ډېر عمر وسو چي دغه مي کار دئ د هغه د دروازي پر خاوره |

**مشکل الفاظ**: افغان: چغې، سحر: سهار، خاک: خاوره.

| | |
|---|---|
| شربت شیــرین نباشــــد روز هجران خوشگوار | دردمنــدیرا که باشد تلخکام از شکرش |
| خواږه شربت خوندور نه وي د بېلتون په ورځ | هغه مین ته چي تریخ وي د هغه تالو د شوندو د هغه څخه |

**مشکل الفاظ**: شیرین: خواږه، هجران: بېلتون، خوشگوار: خوندور،

| | |
|---|---|
| شــدعجب آرزده دل محمود از هجر ایاز | خوش نبــاشد بیوصال یار تاج وافسرس |
| عجیبه خفه سو زړه د محمود د ایاز په بېلتون | نبه به نه وي بېله وصاله د یار تاج او تخت |

**مشکل الفاظ**: آرزده: غمجن، خفه،

| | |
|---|---|
| صبر کن ایدل که گــردی از غم هجران خلاص | جان مــحزون نیز گردد از غم هجران خلاص |
| صبر وکړه اې زړه چي د بېلتون د غمه خلاص سې | غمجن زړه به دي هم د بېلتون د غمه خلاص سي |

| | |
|---|---|
| صید آن صــیاد گشــته مرغ جان بیدلان | مشکلست ایــــدل که گردی اینچنین اسان خلاص |
| چرګ د هغه ښکاري ښکار سو د روح د عاشقانو | سخته ده اې زړه که داسي اسان خلاص سې |

**مشکل الفاظ**: صید: ښکار، صیاد: ښکاري، مرغ: چرګ.

| | |
|---|---|
| صد جـفا وجوز مي بیــــنم زهجر گلرخان | زین جفا کـــی میشود یارب دل حیران خلاص |
| سل جفاوي او ظلم وینم د بېلتون د مین څخه | د دغه جفا څخه به کله خلاص سې اې ربه حیران زړه |

| | |
|---|---|
| صابرم در بند زلف یار شاکر هم که من | گــــــشته ام از محنت اندوه بیپایان خلاص |
| صابر یم په بند د زلفو د یار کې او شاکر یم ځکه زه | گرځېدلی یم د بې پایه غم له سختۍ څخه خلاص |

**مشکل الفاظ**: صابر: صبر کوونکی،

| | |
|---|---|
| صانع بیچون زلطــف خود درین زند انسرا | یوسف عـــیش مرا کرد از غم اخوان خلاص |
| بې مثله پیدا کونکي په خپله مهربانۍ په دغه محبس کې | یوسف زما ژوند د ورونو د غم څخه خلاص کړ |

**مشکل الفاظ**: صانع: جوړونکی یعني الله ﷻ، بیچون: بې مثله، زندانسرا: محبس.

| | |
|---|---|
| صانع آدم که پیــدا کـــرد دور ماه وچرخ | ساخت مــارا درهـماندم از غم دوران خلاص |
| د آدم ﷺ پیدا کوونکي چې د میاشتي او اسمان دوري پیدا کړی | زه يې هم هغه وخت د زمانې د غمه خلاص کړم |

**مشکل الفاظ**: ماه: سپوږمۍ: چرخ: آسمان،

| | |
|---|---|
| صاف می محمـــود را روزي اگر بخشد ایاز | از غـــــم دوران شود آن بیسر وسامان خلاص |
| که يوه ورځ اياز محمود ته پاک شراب ورکړي | د زمانې د غم څخه به هغه بې سره او سامانه خلاص سي |

| | |
|---|---|
| ضرورتست که حال ترا بیار کنم عرض | غم نهان تو ایدل باشکار کنم عرض |
| ضروري ده چي ستا حال يار ته ووايم | ستا پټ غم په ښکاره ووايم اي زړه |

| ضمیر دوست چوجـــام جمست ایدل زار | چه حاجت ست کـه اظهار حال زار کنم عرض |
|---|---|
| د یار زړه د جمشید د جام په دول دیٔ اې خوار زړه! | څه اړتیا ده چې څرګندونه د بد حال ووایم |

| ضمان عیش تو پیرمغان شدست ایدل | زبار رنج تو پیشش هزار بار کنم عرض |
|---|---|
| ستا د عیش ضامن د مغان پیر دیٔ اې زړه! | ستا تکلیف به هغه ته په زر ځله ووایم |

| ضریر گشت رقیب از قـــضا من ازوی زار | زیاده گوئي آنـــسگ به پیش یار کنم عرض |
|---|---|
| د خدای په حکم رقیب ړوند سو او زه عاجز وم | د عبث ویلو د هغه سپي څخه به یار ته ووایم |

**مشکل الفاظ:** ضریر: ړوند، زار: عاجز،

| ضبع صفت چو بگردد رقیب بردرآن | هزار بار بآن سروگلعذار کنم عرض |
|---|---|
| د یږ په دول چي ګرځي پر دروازه د یار | زر ځله به هغه ګل مخي یار ته ووایم |

**مشکل الفاظ:** ضبع: یږ، در: دروازه،

| ضعیف گشته ام ازغم چنان شود آخر | هزار بار بآن سروگلعذار کنم عرض |
|---|---|
| کمزوری سوم د غمه او اخر به داسي وسي | زر ځله به هغه ګل مخي یار ته ووایم |

| ضرر رسید مرا از ایاز اي محمود | ضرور گشت که حال ترا بیار کنم عرض |
|---|---|
| تکلیف ورسیدی ما ته د ایاز څخه اې محموده! | ضروري ده چي ستا حال یار ته ووایم |

| طاقت من طاق گشت از غم آن سبزخط | یکسر موی بمن رحم ندارد فقط |
|---|---|
| زما توان ختم سو د غمه د هغه شین خطه | د وېښته په اندازه رحم پر ما نه لري او بس |

| طوروفاپیش گیر رسم جفاراگذار | زانکه زخوبان خوشست درهمه جا این نمط |
| --- | --- |
| طریقه د وفا ټینګه کړه او د جفا رواج پرېږده | ځکه مینانو ته هر ځای دغه طریقه ښه وي |

**مشکل الفاظ**: طور: طریقه، گذار: پرېږده، خوبان: مینان، ښکلي، نمط: طریقه.

| طرفه ترستَ اینکه یار آمده از راه لطف | سوی من خاکسار کرد مگر ره غلط |
| --- | --- |
| ډېره نادره ده چي یار د مهربانۍ څخه راغلی | زما عاجز په خوا کیدای سي لاریې غلطه کړې وي |

**مشکل الفاظ**: طرفه: نادره، راه لطف: د مهربانۍ له موخي، سوی: طرف،

| طالب دیدار دوست دمبدم ازآب چشم | آتش هجران عجب میکشد از دل چوبط |
| --- | --- |
| غوښتونکی د یار د لیدني هر ګړی په اوښکو | عجبه وژني اور د بېلتون د زړه څخه لکه بطه |

**مشکل الفاظ**: آب چشم: اوښکي، آتش: اور، میکشد: وژني.

| طوبی باغ بهشت باقدتو کوته است | آب دوچشم دروهست روان همچوشط |
| --- | --- |
| د جنت د باغ درخته ستا تر قد کوچنۍ ده | اوبه د دواړو سترګو پکښې بهیږي لکه دویالې |

**مشکل الفاظ**: طوبی: د جنت یوه درخته، بهشت: جنت، کوته: کوچنۍ، شط: ویاله.

| طرفه عذارش زخال زیب دگریافته | هست بلی دائماً زینت خط اونقط |
| --- | --- |
| بارخوګانو د ده د خط څخه ښکلا اخیستې | هو تل د خط ښکلا وي په ټکو |

| طی نه کنم دفترعشق تومحمود وار | برسر حرف وفا گر چه کشیدي تو خط |
| --- | --- |
| طی به نه کړم دفتر د میني ستا لکه دمحمود | که څه هم پر حرف د وفا تا خط کش کړی |

**مشکل الفاظ**: وار: په دول، لکه، کشیدي: وکښی،

=========

| ظلم کردي پیشه خـــود از تو یارانرا چه حـظ | گرنباشـــد عدل از تو دوستدرا انرا چه حـظ |
|---|---|
| ظلم دي خپل کسب وګرځوی ستا څخه د یارانو څه ګټه | که چیري ستا له خوا عدل نه وي نو څه خوند دئ |

**مشکل الفاظ:** حظ: برخه، ګټه.

| ظالما نامهربانا مرهم جان نیستي | مهر از تو گر نباشد دلفگار انرا چه حظ |
|---|---|
| اې ظالمه، اې بې رحمه! مرهم د ځان نه يې | که ستا څخه مينه نه وي نو زخمي زړو ته څه خوند دئ |

**مشکل الفاظ:** ظالما: اې ظالمه، نامهربانا: اې بې رحمه، مهر: مينه، فگارا: زخمي.

| ظهر گفتي باز مي آيم وديگر نامدي | شام غم بی ماه رويت غمگسار انراچه حظ |
|---|---|
| ماپښين دي وويل چي بيا راځم او نه راغلې | د ماښام غم بې له سپوږمۍ مخ ستا څخه مينانو ته څه خوند لري |

**مشکل الفاظ:** ظهر: ماپښين، ماه: سپوږمۍ، نامدي: نه راغلې.

| ظاهرا کم مي برآید از تو امید کسي | ناامیدي چون بود امیدوار انرا چه حظ |
|---|---|
| په ښکاره خو ستا څخه د چا مقصد نه ترلاسه کیږي | ناامیدي چي وي نو امیدلرونکو ته څه خوند وي |

| ظرف جان دردمندان پرزعشق روی تست | خالی از عشق تو بودن بيقرارانرا چه حـظ |
|---|---|
| د مینانو د روح لوښی ستا د مخ د مینې ډک وي | خالي کېدل ستا د مينې څخه بې قرارو ته څه خوند وي |

**مشکل الفاظ:** ظرف: لوښی، پرزعشق: د مینې څخه ډک، دردمندان: مینان.

| ظاهر ست ای گل که آمـد عاشق تو صد هزار | بایکـــي اما نمي خندي هزارانرا چه حظ |
|---|---|
| ښکاره ده چي ګله ستا مینان سل زره راغلل | یوه ته هم نه خاندي نو زرو ته به څه خوند وي |

**مشکل الفاظ:** ظاهر: ښکاره، صدهزار: سل زره، بایکي: یوه ته.

| ظهر من بشکشت چون محمود از جوار ایاز | یارب از آزار موری شهسوارانرا چه حظ |
| --- | --- |
| زما ملا ماته سوه لکه محمود د ظلمه د ایاز څخه | اې ربه! د ازارولو څخه د میږي پاچاهانو ته څه خوند وي |

**مشکل الفاظ:** ظهر: ملا، شکشت: ماته سوه، جوار: ظلم، مور: میږی، شهسوار: پاچا.

==========

| عیب باشد گرفروزم پیش روی یار شمع | زانکه گرددبیفروغ از شرم آنرخسار شمع |
| --- | --- |
| عیب به وي چي بله کرم د یار په مخکي ډیوه | ځکه بې قدره به شي د هغه په مخ کي شمع |

**مشکل الفاظ:** فروزم: بله کرم، بیفروغ: بې تابه،

| عام وخاص از بهر آن میسوزدش کزحسن خویش | کرد یکشب پیش رویش شمه اظهار شمع |
| --- | --- |
| عام او خاص یې سوځي د خپلي ښکلا څخه | یوه شپه شمع وکړی اظهار د هغه په مخکي |

| عاشق بیدل چو سازد شمع روشن شام هجر | میکنند بر حال زارش گریه های زار شمع |
| --- | --- |
| بې زړه مین چي ډیوه بله کړي د بېلتون په شپه | د هغه پر حال ژړاوي کوي ډیوه |

| عندلیب ازعشق گل جان میدهد پروانه هم | زار میسوزد وچوافروزدرخ گلنار شمع |
| --- | --- |
| بلبل د گل د مینې څخه ځان ورکوي او پتنگ هم | په خواری سوځي کله چي بله کړي سوځونکی مخ ډیوه |

**مشکل الفاظ:** عندلیب: یو مرغه، پروانه: پتنگ،

| عیش ازین خوشتر کجاباشد که درشام وصال | گردد از مهر رخ او مطلع الانوار شمع |
| --- | --- |
| تر دې بنه ژوند به چیري وي چي د وصال په شپه | وګرځي د نور د هغه ځای د ختلو د انوارو ډیوه |

**مشکل الفاظ**: عیش: ژوند: خوشتر: غوره، مهر: نور.

| عمرها شد از گناه آنکه لاف حسن زد | هست آویزان به پیش هر سر بازار شمع |
| --- | --- |
| ډیرو ختونه وسول د دې ګناه چي د ښکلا لاپې یې کولې | زړیږي د هر بازار پر سر ډیوه |

| عهد گل محمود می مینوش از دست ایاز | چون برافروزد بهر سو لاله وگلزار شمع |
| --- | --- |
| د ګل په زمانه کي اې محمود وڅښه د ایاز د لاس شراب | چي بله کړي هري خوا ته لاله او ګلزار ډیوه |

=======

| غیر را چند نهي اي مه من بر جان داغ | چند سوزي دل غمدیده مارا زان داغ |
| --- | --- |
| تر څو به د نورو پر روح داغ ایږدې اې زما سپوږمۍ | تر څو به سوځي زما غمجن زړه د هغه داغه |

| غرض اینست که برجان ودلم لاله رخی | سوزد از آتش عشق رخ خود پنهان داغ |
| --- | --- |
| مطلب دا چي زما پر ځان او زړه یو محبوب | وسوځی د میني د اور څخه خپل مخ پټ داغ |

**مشکل الفاظ**: لاله رخي: د ګل غوندي مخ لرونکی، پنهان: پټ.

غم نداريم اگر داغ نهي بر دل ما ‌‌|‌ خُرم آن لحظه که جانان نهدبرجان داغ

غم نه لرم که داغ کښيږدي زما پر زړهٔ ‌|‌ ښه وي هغه گړی چي جانان زما پر روح داغ کښيږدي

غائب از ديده غمديده اگر گردديار ‌|‌ زود باشد که نهد بردل بيسامان داغ

که يار زما د غمجنو سترګو څخه ورک سي ‌|‌ ژر به کښيږدي پر بې سامانه زړه داغ

غوطها ميخـــــورم از دست تو در بحر سرشک ‌|‌ که بـــماند بـــدل ريـــش من چرا داغ

غوټې خورم ستا د لاسه د اوښکو په درياب کي ‌|‌ چي ولي پاته سي زما پر زخمي زړه داغ

**مشكل الفاظ**: غوطها: غوټې، بحر: درياب، سرشک: اوښکي،

غصّها چون نخورد عاشق غمديده که يار ‌|‌ بردل ريـــش رقـــيبان بنـــهد اسان داغ

خښم به ولي نه خوري غمجن مين چي يار يې ‌|‌ پر زخمي زړه د رقيبانو ايږدي په اساني سره داغ

غالبًا بر دل محمود گربار اياز ‌|‌ مي نهد زآتش جان سوزغم هجران داغ

غالبًا د محمود پر زړه باندي بيا اياز ‌|‌ ايږدي د اور سوځونکی غم د هجران داغ

==========

| | |
|---|---|
| فرّخ آن لحظه که ساقي بدهد باده صاف | که من دلشده دارم زغم هجر مصاف |
| ښه به وي هغه ګړی چې ساقي راکړي پاک شراب | چې زه مين لرم د غم د هجران سره جنګ |

**مشکل الفاظ:** فرخ: ښه ، باده: شراب، دلشده: مين، مصاف: جګړه.

| | |
|---|---|
| فرصت عيش نگهدار منه جام زکف | که به ازباده گلگون نبود وجه کفاف |
| د ژوند فرصت غنيمت وګڼه او جام مه ايږده | ځکه ښه سره شراب د رواه والي وجه نه وي |

**مشکل الفاظ:** منه: مه ايږده، کفاف: رواه والي . گلگون: سره. باده: شراب.

| | |
|---|---|
| فارغ البال مى لعل بنوشيم مدام | که خدا عفو کند گرچه نداريم عفاف |
| په ارام زړه به تل شراب څښنو | چي خدای به بخښنه وکړي که څه هم نه لرو پاکي |

**مشکل الفاظ:** فارغ البال: وزګار، مدام: تل، عفاف: پاکي.

| | |
|---|---|
| فائض النور چو خورشيد رخ خوبان ست | دعوی حسن اگر ماه کند باشد لاف |
| د نوره ډک لکه لمر مخ د معشوقانو وي | که سپوږمۍ د ښکلا دعوه وکړي نو لاپي به وي |

**مشکل الفاظ:** فائض النور: د نوره ډک، خورشيد: لمر. ماه: سپوږمۍ.

| | |
|---|---|
| فال از مصحف روی تو هر آنکس که گرفت | هست بر وجه حسن شيوه او نيست خلاف |
| هر چا چي فال د قرآن ستا دمخ ونيوی | د هغه طريقه ښه ده او خلاف نه ده |

**مشکل الفاظ:** مصحف: قرآن کريم، شيوه: طريقه.

| فهم نیکو نکني زانکه خلل خواهد بود | چون زمن حرف زندباتو حریف حرّاف |
| --- | --- |
| د نیکۍ فکر مه کوه ځکه چي خنډ به سي | کله چي زما خبري کوي تا ته رقیب دروغجن |

**مشکل الفاظ**: فهم: فکر، اراده، خلل: خنډ، حراف: دروغجن.

| فرق درصو معه ودیـرمغانست ای شیخ | گرچـه مـحمود سوی دیر رود دار معاف |
| --- | --- |
| فرق په عبادت خانې او بت خانې کښې اې شیخ | که محمود بت خانې ته ولاړی نو معاف یې کړه |

**مشکل الفاظ**: صومعه: عبادت خانه، دیر: بتخانه، مغان: د اور عبادت کونکی،

===========

| قضا فگند مرا باز در بلای فراق | اسیربند جفا کرد ومبتلای فراق |
| --- | --- |
| تقدیر بیا واچولم په غم د بېلتون کي | د ظلم د بند بندي یې کړم او په بېلتون اخته |

**مشکل الفاظ**: قضا: تقدیر، فگند: اچول، غورځول، اسیر: بندي، مبتلای: اخته.

| قرار داذه ام ایدل بصبردرغم هجر | که غیرصبر ندیدم دگر دوای فراق |
| --- | --- |
| قرار مي ورکړی اې زړه په صبر د بېلتون په غم کي | ځکه بېله صبره مي ونه لیدل بله دوا د بېلتون |

| قدم بکلبه من گرنهي زراه کرم | شود خلاص دل خسته از جفای فراق |
| --- | --- |
| که قدم کښېږدې زما په خونه کي د مهربانۍ څخه | خلاص به سي زخمي زړه د ظلم څخه د بېلتون |

**مشکل الفاظ**: کلبه: خونه، حجره،

| قبول کن که بنالد اگرچه باشدسنگ | بگوش هرکه رسدهمچو من صدای فراق |
| --- | --- |
| ومنه چي ژړا به وکړي که څه هم ډبره وي | د هرچا غوږ ته چي ورسیږي زما په ډول اواز د بېلتون |

**مشکل الفاظ**: بنالد: و به ژاړي، سنګ: ډبره، صدا: اواز. گوش: غوږ.

| قتیل نیست کسي همچومن زخنجرعشق | کجاست خوارترازمن ززخمهای فراق |
| --- | --- |
| وژل سوی نسته هیڅوک زما په دول د میني په خنجر | چیري دئ تر ما زیات خوار د زخمونو د بېلتون |

**مشکل الفاظ:** قتیل: وژل سوی،

| قدیم محنت هجرتومیکشم من زار | قدم بنه بخدا سوی بینوای فراق |
| --- | --- |
| د پخوا څخه ستا د بېلتون سختي وړم زه خوار | قدم کښېږده ستا دي قسم ویَ په خوا د بینوا د بېلتون |

**مشکل الفاظ:** قدیم: پخواني، بنه: کښېږده، بخدا: قسم په خدای، سوی: طرف.

| قسم بخاک دربارگاه اومحمود | که آبروی من آید زگریهای فراق |
| --- | --- |
| قسم په خاوره د دربار د هغه اي محمود! | چي عزت زما راځي د ژړاوو د بېلتون څخه |

**مشکل الفاظ:** خاک: خاوره، آبرو: عزت، گریها: ژړاوي.

| کاش یکشب مـــه روی تو شود شمع فلک | تازند چـــرخ چـو پـروانه بگرد تو ملک |
| --- | --- |
| ارمان چي یوه شپه ستا د مخ سپوږمی د آسمان ډیوه سي | د دي لپاره چي چکر ووهي ستا لکه پتنګ ملائکي |

**مشکل الفاظ:** فلک: آسمان، چرخ: چکر وهل، شاوخوا گرځېدل، ملک: ملائکي.

| گوهر هرکس وناکس شود از می پیدا | نتوان یافت دگر به زمی لعل محک |
| --- | --- |
| اصل د هر ښه او بد د شرابو څخه پیدا دئ | نه سي تر لاسه کولای بل څوک د سرو شرابو څخه کره کونکی |

**مشکل الفاظ:** گوهر: ملغلره، اصل، می لعل: سره شراب.

| کی توان یافت یکـــي مثل تو در عرصه حسن | گلرخان گرچـــه هـــزارندد پریرویان لک |
| --- | --- |
| کله تر لاسه کېدای سي ستا په دول په میدان د ښکلا کي | گل مخي که څه هم زرګونو دي او شاپیری مخي په لکونو |

**مشکل الفاظ:** عرصه: میدان، گلرخان: د گل غوندي مخ، پریرویان: شاپیری غوندي.

گرنقاب از رخ زیبای تو افتدناگاه | خلق عالم همه حیران تو گردد بیشک
که چیري ستا د ښکلي مخ څخه پرده ولویږي | د ټولي نړی خلک به حیران سي بېله شکه

کفر زلفین تو برهم زده راه اسلام | لشکر خط توچون گرد برآمد بکمک
ستا د زلفو کفر وهلې ده لار د اسلام | لښکر د خط ستا چي راغلل په کومک

کرد چشم تو به تیر مژه مجروح دلم | برسرآن لب چون قند بپاشدنمک
ستاسترګو په غشي د بڼو زخمي کړی زما زړه | د هغه د شونډو پر سر د قند په ډول وپاشي مالګه

**مشکل الفاظ**: تیر: غشی، مژه: باڼوګان، مجروح: زخمي، نمک: مالګه.

ګوش بر ګفته کس نیـــست ترا از سرناز. | حال محـــمود چسان بـــاتـــو بگویم یکیک
د چا خبري ته غوږ نه نیسې د ناز څخه | د محمود حال به تا ته څنګه ووایم یو یو

**مشکل الفاظ**: ګوش: غوږ، ګفته: خبره، چسان: څرنګه، یکیک: یو یو.

=========

لب لعـــل تو هســـت آرام دل | برآید از وعـــــاقبت کام دل
ستا سرې شونډې د زړه آرام دئ | تر لاسه به سي د هغه څخه د زړه مراد

لبالب کجا میکـــند دورچرخ | مرا از مـــی لـــعل او جام دل
نه ډکوي ګرځېدل د آسمان | ما ته د سرو شرابو څخه جام د زړه

لکدکوب هجران چنانم که کس | نـــیابـــد نشـــان من ونام دل
د بېلتون په لغتو وهل سوی یم داسي چي څوک | به پیدا نه.کړي نښه زما او نوم د زړه

| | |
|---|---|
| لبیب است آنکس که از جام می | کند روز هجران سرانجام دل |
| هوښیار دئ هغه کس چي د شرابو د جام څخه | کوي په ورځ د هجران انتظام د زړه |

**مشکل الفاظ:** لبیب: هوښیار، عاقل.

| | |
|---|---|
| لآلي اشکم عجب اختـــــرند | کز انها بـه از صبح شد شام دل |
| ملغلري د اوښکو مي عجیبه ستوري دي | چي د هغو له کبله ماښام تر سهار ښه سو |

**مشکل الفاظ:** لآلي: ملغلري، اشکم: زمااوښکي، اخترند: ستوري، شام: ماښام.

| | |
|---|---|
| لئیمست در پیش جانان رقیب | نمي داند آن سفله اکـــرام دل |
| بد دئ په مخکي د جانان رقیب | نه پېژني هغه بې عقله درناوی د زړه |

**مشکل الفاظ:** لئیم: بد، سفله: بې عقل، اکرام: درناوی، عزت.

| | |
|---|---|
| لعب مي کند باتو محمود ایاز | عجب رام‌شـد باتــو ارام دل |
| لوبي کوي ستا سره ایاز اي محمود! | عجیبه تابع سو ستا سره ارام د زړه |

**مشکل الفاظ:** لعب: لوبي، بازی، رام: تابع،

==========

| | |
|---|---|
| مراهست آن پری پیکر دلارام | که بی رویش نمی گیرد دل آرام |
| زما سره دئ هغه شاپیری غوندي مین | چي بېله د هغه د مخ څخه نه کوي زړه ارام |

**مشکل الفاظ:** پري پیکر: د شاپیری غوندي بدن لرونکی، دلارام: محبوب،

| | |
|---|---|
| مبین ای دل بسوی سنبل وگل | بدور زلف و روی آن گل اندام |
| مه ګوره اي زړه! سنبل او ګل ته | زلفو او مخ ته د هغه ګل غوندي جانان |

| مه رویش نماید از خـــم زلف | نشد پیدا گرچه صبح درشـــام |
|---|---|
| سپوږمی د مخ د هغه معلومیږي د زلفو د پیچ څخه | که څه هم نه پیدا کیږي سهار په ماښام کي |

**مشکل الفاظ**: مه: سپوږمی، خم: پیچ، ول،

| من از میم دهان وجیم زلفش | فتادم در بلاپیوسته چـــون لام |
|---|---|
| زه د هغه د میم خولي او جیم زلفو څخه | ولوېدم په غم کي تل لکه لام |

**مشکل الفاظ**: دهان: خوله، فتادم: ولوېدم، پیوسته: تل، چون: لکه.

| میارا خال وزلف خم بـــخم را | منه مرغ دلم را دانـه در دام |
|---|---|
| مه ښکلي کوه خال او زلفي پیچ پر پیچ | مه ایږده زما د زړه مرغه ته دانه په دام کي |

**مشکل الفاظ**: میارا: مه ښائسته کوه، خم بخم: پیچ پر پیچ، منه: مه ایږده، دام: ډبری، جال

| مکن از عاشق وحشي صفت رم | مشو ای مه باغیار این چنین رام |
|---|---|
| مه کوه د مین څخه د وحشي په ډول تېښته | مه کیږده اي سپوږمی د پردیو تابع |

**مشکل الفاظ**: رم: تېښته، اغیار: پردي، رام: تابع.

| مقیم کوی او گردید محـــمود | که بود آن خسته را دردل همین کام |
|---|---|
| هستوګن سو د کوڅي د هغه محمود | چي د هغه غمجن په زړه کي دغه مقصد وو |

**مشکل الفاظ**: مقیم: هستوګن، کوی: کوڅه، کام: مقصد.

===========

| نیست چو رخساروقدت درچمن | سروسمن اي بت گل پیرهن |
|---|---|
| نشته ستا د مخ او قد په ډول په باغ کي | سور او چاغ اي معشوقي گل قمیصي |

**مشکل الفاظ**: پیرهن: قمیص، سمن: چاغ.

| نکهت زلفین توخون ساخته | وه که دل نافه مشک ختن |
|---|---|
| خوشبویي د زلفو ستا ویني کړي دي | افسوس چي زړه د نافې د مشکو د ختن |

**مشکل الفاظ**: نکهت: خوشبویي، وه: افسوس، نافه: ټُو، ختن: د یو هیواد نوم.

| نرد وفا بادگران باختي | سوختي از داغ جفا جانمن |
|---|---|
| لوبه د وفا دي د نورو سره وبایلل | وه دي سوځي د داغ څخه د جفا زما ځان |

**مشکل الفاظ**: نرد: یو ډول لوبه، باختن: بایلل، سواختن: سوځل، جانمن: زما ځانه.

| نقد دل و دین همه برد ونداد | بوسه بمن زان لب شکر شکن |
|---|---|
| پیه د زړه او دین یې ټول یوړل او را یې نه کړه | مچه ما ته د هغه بورۍ ماتوونکو شونډو |

| نوش کنم خون جگر دمبدم | بی می لعل تو وسیب ذقن |
|---|---|
| څښنم ویني د زړه هر ګړی | بیله شرابو د سرو شونډو او د سیبو د زني |

**مشکل الفاظ**: خون: وینه، دمبدم: هرګړی، ذقن: زنه.

| نیک بر آمد برخت خط سبز | أَنْبَتَهُ الله نَبَاتًا حَسَن |
|---|---|
| ښه راغلی پر مخ ستا شین خط | شین کړی الله ﷻ په ښه شنه کېدو سره |

| نظم تو محمود عجب ساخته | نام تو مشهور بهر انجمن |
|---|---|
| ستا شعر محمود عجیبه جوړ کړی دئ | ستا نوم مشهور دئ په هر مجلس کي |

=========

| زود باز آی که هریک شده حیران بیتو | وه که جان ودل من گشت پرېشان بیتو |
|---|---|
| ژر بیا راسه چي هر یو حیران سوو بېله تا | افسوس چي روح او زړه مي پرېشانه دي بېله تا |

**مشکل الفاظ**: وه: افسوس، بیتو: بېله تا، زود: ژر، بازآی: بیا راسه، حیران: پرېشان.

| جان من چند کشد محنت هجران بیتو | وعده وصل نه کردي بمن خسته وفا |
|---|---|
| روح به مي تر څو زغمي سختۍ د بېلتون بېله تا | په وعده د وصال دي زما خوار سره وفا ونه کړل |

**مشکل الفاظ**: وصل: یو ځای کېدل، خسته: عاجز، خوار، هجران: بېلتون.

| چه کنم نیست کسي ای شه خوبان بیتو | واقف از درد دل غمزده جان حزین |
|---|---|
| څه وکړم نسته څوک اې پاچا محبوب بېله تا | خبر د درد څخه د غمجن زړه او غمجن روح |

**مشکل الفاظ**: واقف: خبر، حزین: غمجن. شه: پاچا.

| نه کندچرخ فلک ذره درمان بیتو | وای صد وای که درد دل ما را از مهر |
|---|---|
| نه کوي گرځېدل د آسمان لږ دارو بېله تا | افسوس! سل ځله افسوس چي درد د زړه زما د مینې څخه |

**مشکل الفاظ**: وای: افسوس، صد: سل، مهر: مینه، فلک: آسمان، درمان: درمل،

| تانماند سرشوریده بسامان بیتو | وقف مي ساخته ام جان ودلم از تن زار |
|---|---|
| چي پاته نه سي سرپرېشانه بې سامانه بېله تا | وقف د شرابو مي کړی دئ روح د زړه له بدن عاجز څخه |

**مشکل الفاظ**: زار: عاجز، شوریده: پرېشانه،

| مونس جان حزین دیده گریان بیتو | وردمن نیست بجزنام توتاجاندارم |
|---|---|
| غمخوار د ځان غمجن د سترگو ژړېدلو بېله تا | وظیفه نه لرم بېله ستا د نامه څخه تر څو چي ژوندی یم |

**مشکل الفاظ**: ورد: وظیفه، بجز: ماسیوا، مونس: غمخوار، حزین: غمجن، دیده: سترگي. گریان: ژړا، تاجاندارم: تر څو چي ژوند لرم.

| | |
|---|---|
| ورد دردیده محمود بترازخارست | گل چه کار آیدش ای نوگل خندان بیتو |
| ګلاب د محمود په سترګو کې بد دئ تر ازغي | ګل به په څه کار ورسي اې نوي خندانه ګله بېله تا |

**مشکل الفاظ**: ورد: ګلاب، خار: ازغی، نوګل: نوی ګل، خندان: خنداکونکی.

==========

| | |
|---|---|
| همدم من نیست کسی غیر آه | آه که حالم شده از غم تباه |
| ملګری مي نشته څوک بېله فریاده | افسوس چي حال مي خراب سو د غمه |

**مشکل الفاظ**: همدم: ملګری، آه: افسوس، فریاد،

| | |
|---|---|
| هست چو کوهي غم هجران مرا | ساخته باریک تر از برګ کاه |
| زما د بېلتون غم ځ غره په ډول دئ | جوړ کړی یې دئ نری تر پاڼو د واښو |

**مشکل الفاظ**: کوه: غر، باریک: نری، برګ: بلګ، پاڼه، کاه: واښه.

| | |
|---|---|
| هست مرا بررخ خوبت نظر | سوی من از مهر نکردي نګاه |
| زه لرم ستا پر ښکلي مخ نظر | ما ته دي په مینه ونه کړی نظر |

**مشکل الفاظ**: رخ: مخ، سوی: طرف، مهر: مینه، نګاه: نظر.

| | |
|---|---|
| هاله بود ګرد مه چارده | ګرد مه روی تو خط سیاه |
| دائرې شاوخوا د څوارلسمي سپوږمۍ | او ستا د مخ شاوخوا تور خط ونیول |

**مشکل الفاظ**: هاله: د سپوږمۍ دائره، چارده: څوارلسم، خط سیاه: تور خط.

| | |
|---|---|
| هرچه کني برسر من حاکمي | زانکه ګدای تو ام ای بادشاه |
| هر څه چي کوې زما پر سر حاکم یې | څکه چي ستا ملنګ یم اې پاچا |

**مشکل الفاظ**: حاکمي: حاکم یې، زانکه: څکه، ګدا: ملنګ، فقیر.

| هندوی زلف تو عجب رهزنست | دزد دگر کم زده زین گونه راه |
|---|---|
| هندو د زلفو ستا عجيبه لار وهونکی دئ | بل غله نه ده وهلې دا دول لار |

**مشكل الفاظ:** رهزن: لاروهونکی، دزد: غل، راه: لار.

| هیچ دگر دردل محمود نیست | جزغم تو روز وشب وسال وماه |
|---|---|
| نور هيڅ د محمود په زړه کي نسته | بېله ستا د غم څخه ورځ او شپه، کال او مياشت |

**مشكل الفاظ:** روز: ورځ، شب: شپه، سال: کال، ماه: مياشت.

=========

| يار رابرمن نظر بسيار بودی کاشکي | مرهم جان ودل افگار بودی کاشکي |
|---|---|
| کاش چي د يار پر ما ډېر نظر واى | مرهم د روح او زخمي زړه واى کاش |

**مشكل الفاظ:** بسيار: ډېر، کاشکي: ارمان، افسوس، افگار: زخمي.

| يادما هرگزنکرد آنماه درشام فراق | روزی من صبح وصل ياري بودی کاشکي |
|---|---|
| زه يې هيڅکله ياد نه کړم هغه سپوږمۍ د بېلتون په شپه | روزي زما سهار د يار وصال واى کاش! |

**مشكل الفاظ:** آنماه: هغه سپوږمۍ، شام: مابنام،

| يكبيک حـال دل خـود شـرح ميكردم همه | پيـش جـانان قـوت گفتار بودی کاشکي |
|---|---|
| يو يو به حال د خپل زړه بيان کړم ټول | د جانان په وړاندي چي د ويلو توان واى کاش |

**مشكل الفاظ:** يكبيک: يو په يو، شرح: بيان، گفتار: وينا.

| | |
|---|---|
| یاسمین وسنبل وگلشن چه کار آید مرا | درنظر زلف ورخ دلدار بودی کاشکي |
| یاسمین، سنبل او باغ زما په څه کار راغلل | چي په نظر کي زلفي او مخ د یار وای کاش |

**مشکل الفاظ**: یاسمین: د یاسمین گل، سنبل: یو ډول گل،

| | |
|---|---|
| یوسف مصري که بروی بود حیران مرد وزن | کاشکي در دور آن رخسار بودی کاشکي |
| د مصر یوسف چي مخ ته یې حیران وه نارینه او ښځي | ارمان چي د هغه مخ په زمانه کي وای ارمان |

**مشکل الفاظ**: یوسف مصري: د مصر یوسف ﷺ، دور: زمانه،

| | |
|---|---|
| یوز هجران آهو عیش مرا از پا فگند | شیروصل او مرا غمخوار بودی کاشکي |
| د بېلتون پړانګ زما د ژوند هوسی تر پښو لاندي کړه | زمری د وصال زما غمخوار وای کاش! |

**مشکل الفاظ**: یوز: پړانګ، آهو: هوسۍ، ازپافگند: تر پښو لاندي کړه،

| | |
|---|---|
| یافته محمود هر کس بردر آن شاه بار | این گدا را هم بران دربار بودي کاشکي |
| پیدا کړی محمود هر څوک پر دروازه د هغه پاچا | دغه ملنګ هم پر هغه دروازه وای کاش! |

**مشکل الفاظ**: یافته: پیدا کړی، در: دروازه، گدا: ملنګ، فقیر.

==========

تمت

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله على نعمائه والصلوة والسلام على خاتم انبيائه سيدنا محمد واله وصحبه واوليائه .

## د حضرت عطار د ژوند مختصر حالات

حضرت شيخ فريدالدين عطار رحمه الله چي ددغه مبارک کتاب مصنف دی، د سترو اولياوو څخه دی، په سل ګونو کتابونه يې تصنيف کړي دي، مولانا روم رحمه الله فرمايي: د حضرت حسين بن حلاج پر روح باندي د حضرت فريد الدين عطار برياليتوبونو تر وفات يو نيم سل کاله وروسته رڼا واچوله او د هغه روزنه يې وکړل، مولانا عبدالرحمن جامي رحمه الله فرمايي: څومره اسرار او معارف چي د حضرت عطار رحمه الله په مثنوياتو او غزلو کي دي، د بل هيڅ صوفي په کلام کي نسته، د نوموړي تصنيفونه ډېر دي لکه: پندنامه، تذکرة الاولياء، الهي نامه، حليه نامه، منطق الطير او داسي نور،

نوموړی د نيشاپور اوسېدونکی وو، د شعبان په مياشت کي په کال ۵۱۳ هـ کي د سلطان سنجر د حکومت په زمانه کي پيدا سوی دی او تقريبا د يو سل څوارلس ۱۱۴ کالو په عمر کي د تاتاريانو په لاس په ۶۲۹ هـ کال په شهادت ورسېدی او په نيشاپور کي ښخ سو .

په پيل کي يې د شيخ رکن الدين په لاس توبه وکړه او بيا د شيخ محمد الدين بغدادي رحمه الله مريد سو ، د خپلي زماني د ډېرو بزرګانو څخه يې فيض تر لاسه کړی دی، د نوموړي د توبې قصه داسي بيانيږي چي يوه ورځ نوموړي خپل د عطرو دوکان خلاصوی چي يو بزرګ راغلی او څو ځله يې (شئا لله) وويل، مګر نوموړي هغه ته هيڅ پاملرنه ونه کړه، بيا هغه بزرګ وويل: ته څومره عجيب سړی يې، زه نه پوهېږم چي ته به څنګه مړ کيږې؟ نوموړي جواب ورکړی : لکه څرنګه چي ته مړ کيږې، فقير وويل: ايا ته داسي مړ کېدای سې لکه زه چي مړ کېږم، دا يې وويل او خپله پياله يې يو خوا ته کښېښودل او پر مځکه پرېوتی، يو ځل يې الله وويل او مړ سو ، ددغه حالت په ليدو سره شيخ صاحب ډېر حيران سو او په هم هغه وخت يې حالت بدل سو ، د الله جل جلاله ميني يې په زړه کي ځای ونيوی او هغه وخت يې دوکان د الله جل جلاله په لاره کي ورکړی او رياضت او باطني پاکۍ ته متوجه سو او ور څخه فريد الدين جوړ سو .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# در حمد باري تعالی عز اسمه

د الله ﷻ د ستاینې په بیان کې.

**تشریح:** حمد: تعریف، ښېګڼه، باري: د الله ﷻ نوم، پیداکوونکی، تعالی: لوړ، عز اسمه: د هغه نوم مبارک لوړ او باعزته دئ.

| حمد بیحد مرخـــدای پاک را | آنکه ایمان داد مشت خاک را |
|---|---|
| ډېر تعریفونه دي وي هغه الله ﷻ لره | چا چې ایمان ورکړی یوه موټ خاورو ته |

**مشکل الفاظ:** حمد: تعریف، بي حد: بې شمېره، مر: خاص، مشت: موټ، خاک: خاوره.

**خلاصه:** د الله ﷻ نعمتونه پر بندګانو بې شمېره دي د نعمتونو د حق ادا کولو لپاره د بې شمېره حمد او ثناء ضرورت وي، مګر بنده د دې څخه عاجز وو ځکه نو د شکر په وخت کې یې د بې شمېره، ډېرو زیاتو او داسې نورو الفاظو ته اړتیا ولېدله.

شیخ صاحب په پیل کې د ټولو نعمتونو په اجمالي توګه شکر ادا کړي او بیا وروسته یې د څو لویو نعمتونو ذکر وکړی او په هغو کې یې ایمان تر ټولو مخکې کړی چې تر ټولو مهم دي، یعنې د هغه کامله قدرت یوه موټ خاورې انساني بدن د ایمان په نور منور کړ.

| آنکه در آدم دمـــید او روح را | داد از طوفان نجات او نوح را |
|---|---|
| هغه چې په آدم علیه السلام کې یې روح پوه کړه | نوح علیه السلام ته یې د طوفان څخه نجات ورکړ |

**مشکل الفاظ:** آدم: تر ټولو لومړنی انسان، د سیدنا حضرت آدم علیه السلام نوم، دمید: پوکل، نجات: خلاصون.

**خلاصه:** د الله ﷻ ستر قدرت د حضرت آدم علیه السلام په بدن کې چې په پیل کې د خاورو جسد وو، د روح غوندې نوراني شی پوکړی، او کله چې د حضرت نوح علیه السلام قوم د دعوت منلو څخه انکار وکړي نو سخت طوفان راغلی او نوح علیه السلام د الله ﷻ په امر کښتۍ جوړه کړه، او به د غرونو سر ته ورسېدې او ټول مخلوقات هلاک سول، په داسې

خطرناک طوفان کي الله ﷻ د کښتی سپرو ته خلاصون ورکړی او کښتی په سلامتیا سره د جودي پر غره کښېناسته.

| آنکه فرمان داد قهرش بـــادرا | تا سزائي داد قوم عـــــاد را |
| --- | --- |
| هغه ذات چي قهر يې امر وکړی باد ته | تر څو د عاد قوم ته سخته سزا ورکړي |

**مشکل الفاظ**: فرمان: حکم، قهر: غضب، غصه، عاد: د هود عليه السلام قوم.

**خلاصه**: فرمايي چي د الله ﷻ په قهرجن امر سره پر قوم عاد عذاب راغلی، هغه دا چي پر هغوئ باندي سخت باد مسلط کړل سو چي تر اووه شپو او اته ورځو پوري چلېدی.

| آنکه لطف خويش را اظهار کرد | باخليلش نار را گلزار کـــــرد |
| --- | --- |
| هغه ذات چي خپل لطف يې څرګند کړی | پر خپل خليل يې اوْر ګلزار کړی |

**مشکل الفاظ**: لطف: مهرباني، خليل: دوست يعني حضرت ابراهيم عليه السلام، نار: اور، گلزار: باغ،

**خلاصه**: کله چي حضرت ابراهيم عليه السلام د خپل قوم بتان مات کړه نو د نمرود پخواني حسد په جوش سو نو حضرت ابراهيم عليه السلام يې د دوو وړو زمريانو سره په ځاه کي واچوی، مګر زمريانو هغه ته سجده کول او د هغه بدن يې څوښبنی، بيا نمرود يو لوی اور بل کړی او تر يوې مياشتي يې بوټي جمع کول او وروسته يې حضرت ابراهيم عليه السلام په دغه اور کي د منجنيک (ټال) په مرسته واچوی، الله ﷻ اور ته امر وکړی او هغه اور د حضرت ابراهيم عليه السلام دپاره د باغ غوندي سو، ډېرو خلکو ددغي پېښي په لېدو سره ايمان راوړی.

| آن خداوندي که هنگام سحر | کرد قوم لوط را زير وزبـــــــر |
| --- | --- |
| هغه خدای ﷻ چي د سهار په وخت کي يې | د لوط عليه السلام قوم سرچپه کړی |

**مشکل الفاظ**: هنگام: د سهار وخت، سحر: سهار، لوط: مشهور پيغمبر، زيروزبر: خراب.

**خلاصه**: د حضرت لوط عليه السلام قوم د ناړينو سره بدفعلي کول، حضرت لوط عليه السلام هغوئ ډېر منع کړل مګر د خپل بد عادت څخه منع نه سول نو الله ﷻ د سهار په وخت کي

د حضرت جبرائیل علیه السلام په ذریعه د هغوئ بنار سرچپه کړی او ټول یې هلاک کړه.

| سوئي او خصمي که تیر انداخته | پشه کارش کفایت ســـاخته |
|---|---|
| کوم دښمن چي د هغه په خوا غشی وویشتی | یوې غوماشي د هغه کار خلاص کړی |

**مشکل الفاظ:** سوئي: خواته، او: هغه یعني الله ﷻ، خصم: دښمن، یعني نمرود، پشه: غوماشه، کفایت ساختن: کفایت کول.

**خلاصه:** یعني کله چي نمرود په ابراهیم علیه السلام هیڅ ونه کړلای سوه نو د الله ﷻ سره د جګړې لپاره تیار سو او د آسمان په لور یې غشی ویشتل پیل کړه، ځکه د هغه عقیده وه چي خدای ﷻ په آسمان کی دی، د دغي بې ادبۍ نتیجه دا سوه چي یوه کوچنۍ غوماشه د پزې له خوا د هغه دماغ ته ننوتل، نمرود د بې تابۍ څخه دا تاکتیک اختیار کړی چي هر څوک راسي باید په څپلی سره نمرود پر سر ووهي او په پای کي یوه ورځ له همدې کبله هلاک سو.

**فائده:** فرعون د نیل سیند په وجه مغرور وو، ځکه د نیل سیند د هغه په حکم جاري کیدی ځکه الله ﷻ د نیل په سیند کي غرق کړ او نمرود د مرغانو په وجه مغرور وو چي د هغه په وجه په هوا الوتل ځکه الله ﷻ د غوماشي په وجه عذاب ورکړی.

| آنکه اعدا را بدریا درکشـــید | ناقه را از سنگ خارا برکشید |
|---|---|
| هغه ذات چي دښمنان یې په دریاب کي غرق کړه | اوښه یې د سختي ډبري څخه پیدا کړه |

**مشکل الفاظ:** اعداء: دښمنان، یعني فرعون او د هغه قوم، ناقه: اوښه، سنگ خارا: سخته ډبره، برکشید: مرتبه لوړول، ایستل، دوهمه معنی دلته مراد ده.

**خلاصه:** په اول شعر کي فرعون او د هغه قوم مراد دی چي الله ﷻ په دریاب کي غرق کړل، موسی علیه السلام او د هغه پیروانو ته یې خلاصون ورکړی او په دوهم شعر کي د حضرت صالح علیه السلام قصې ته اشاره ده چي د هغه قوم ثمود دا معجزه وغوښتل چي د ډبري څخه اوښه راوباسي، صالح ﷺ دعاء وکړه او الله ﷻ د سختي ډبري څخه اوښه پیدا کړه، د معجزې په لیدو سره ځینو ایمان راوړی او ځینو انکار وکړی، په پای کي پر سرکښانو د زلزلې عذاب راغلی او ټول یې هلاک کړه.

| در کف داؤد آهن موم کـرد | چون عنایت قادر قیوم کـرد |
|---|---|
| نو د داؤد ﷺ په لاس کي یې اوسپنه ویلي کړه | کله چي قادر او قیوم ذات مهرباني وکړه |

**مشکل الفاظ**: عنایت: مهرباني، قادر: قدرت لرونکی، قیوم: ستر ساتونکی، کف: لاس، ورغوی، داؤد: مشهور پیغمبر د حضرت سلیمان ﷺ پلار، آهن: اوسپنه، موم: ویلي کېده.

**خلاصه**: الله ﷻ پر حضرت داؤد ﷺ دا مهرباني کړې وه چي هغه ته یې پیغمبري او پاچاهي دواړه ورکړې وه، غرونو او مرغانو ته یې د هغه سره د تسبیح ویلو امر ورکړی وو، ډېر ښکلی آواز یې درلودی، د کورنۍ د نفقې لپاره یې زغري جوړولې، اوسپنه د هغه په لاس کي د موم غوندي ویلي کېده.

| شد مطیع خاتمش دیو وپـری | باسلیمان داد ملک وسـروري |
|---|---|
| پیریان او دیبان د هغه د گوتمۍ فرمانبردار سوه | سلیمان ﷺ ته یې پاچاهي او سرداري ورکړه |

**مشکل الفاظ**: ملک: پاچاهي، سروري: سرداري، مشرتوب، مطیع: فرمانبردار، خاتم: گوتمۍ، دیو: پیریان:

**خلاصه**: د ټولي نړۍ پاچاهي څلورو کسانو ته ورکړل سوې ده،د وه مسلمانان لکه حضرت سلیمان او ذوالقرنین، او دوه کافران لکه نمرود بن کنعان او شداد بن عاد، ځینو د شداد پر ځای د بخت نصر نوم ښودلی دی، حضرت سلیمان ﷺ ته یې پر پیغمبرۍ سربېره داسي پاچاهي هم ورکړې وه چي پیریانو، انسانان، مرغان او ټول شیان د هغه تابع وه.

| هم زیونس لقمه باحـوت داد | از تن صابر بکرمان قـوت داد |
|---|---|
| هم یې د یونس ﷺ څخه ماهي ته گوله ورکړه | د صابر د بدن څخه یې چینجیانو ته غذا ورکړه |

**مشکل الفاظ**: تن: بدن، صابر: مشهور پیغمبر، کرمان: چینجان، قوت: خوراک، غذا، لقمه: گوله، حوت: ماهي.

**خلاصه**: حضرت ایوب ﷺ په ډېر ناز او نعمتونو سره د الله ﷻ په عبادت بوخت وو، ابلیس حسد وکړی او الله ﷻ ته یې وویل چي هغه د نعمتونو، ښځي او زامنو په خوښۍ په عبادت کي بوخت دی، الله ﷻ د ابلیس خبره درواغ وگرځول، په مختلفو پېښو یې ایوب ﷺ وازمویه،

څاروي، کور او ټول سامان یې یو په بل پسې ختم سوه ، په پای کي یې ټول بدن چینجیانو ونیوی، تر اووه کاله یې زیات په دغه حالت کي تېر کړه مګر په هر حال کي یې الله ﷻ ته رجوع کول او په عبادت بوخت وو ، په دوهم شعر کي د حضرت یونس علیه السلام قصې ته اشاره ده ، نوموړی د موصل په هیواد کي د خلګو پر هدایت مامور وو ، کله چي قوم نافرماني وکړه او د عذاب راتلو وخت یې سو نو یونس علیه السلام د هغه ځای څخه ولاړی، په لاره کي په کښتۍ کي سپور سو مګر نژدې وه چي کښتۍ د طوفان په وجه غرقه سي، ټول خلګ وارخطا سوه اوو یې ویل: کیدای سي په کښتۍ کي یو تښتېدلی غلام وي، یونس علیه السلام وویل: هغه زه یم، زه د الله ﷻ د حکم تر راتلو مخکي وتلی یم، خلګو نه منل مګر پچه د هغه په نامه وختل نو خلګو سیند ته واچوی او طوفان ودرېدی، یونس علیه السلام یو ماهي تېر کړی او په خپل نس کي یې سلامت وساتی، اووه ورځي وروسته د هغه دعاء قبوله سوه او الله ﷻ د ماهي د نس څخه خلاصون ورکړ، بلي خوا ته د هغه قوم هم توبه وکړه ، ټول بتان یې مات کړه او عذاب راتلل بند سوه .

| آن یکي را اره بر سرمي کـشد | دیگري را تاج بر سر مي نـهد |
|---|---|
| د هغه یوه پر سر اره کشوي | او د بل پر سر تاج ایږدي |

**مشکل الفاظ**: یکي: یو، مي کشد: کشوی. تېروي.

**خلاصه**: یعني د چا پر سر د غم اره کشوي او چا ته د پاچاهي تاج ورکوي، په اول شعر کي حضرت زکریا علیه السلام ته اشاره ده او په دوهم شعر کي حضرت سلیمان علیه السلام ته اشاره ده .

| اوست سلطان هر چه خواهد آن کند | عالمي را در دمي ویران کـند |
|---|---|
| هغه پاچا دی هر څه چي غواړي کوي یې | نړۍ په یوه ګړي کي ورانوي |

**مشکل الفاظ**: او: هغه یعني الله ﷻ، سلطان: پاچا، دم: ساه، یعني ګړی.

**خلاصه**: یعني الله ﷻ قادر مطلق او د نړۍ واکمن دی، هر څه چي وغواړي کولای سي که وغواړي نو په یوه ګړي کي به ټوله نړۍ ورانه کړي .

| هست سلطاني مسلم مـــرورا | نیست کس را زهره چون وچرا |
|---|---|
| پاچاهي یوازي هغه لره بنایي | نسته چا ته د ولي او څنګه ویلو توان |

**مشکل الفاظ:** سلطاني: پاچاهي، مسلم: منل سوې، مرورا: هغه ته. زهره: توان.

**خلاصه:** يعني يوازې د الله ﷻ پاچاهي منل سوې ده چې هيچا ته پکښې د څه ويلو او نيوکې کولو ځاى نسته.

| آن يکي را گنج ونعمت مي دهد | ديگري را رنج وزحمت مي دهد |
|---|---|
| دغه يوه ته خزانه او نعمتونه ورکوي | او بل ته ناروغي او تکليفونه ورکوي |

**مشکل الفاظ:** گنج: خزانه، رنج: ناروغي، زحمت: تکليف. مي دهد: ورکوي.

**خلاصه:** يعني الله ﷻ چې چا ته وغواړي نو نعمتونه او خزانې ورکوي او چا ته چې وغواړي ناروغي او تکليفونه ورکوي، هر څه د هغه په واک کې وي او هر څه کولاى سي.

| آن يکي را زر دوصدهميان دهد | ديگري در حسرت نان جان دهد |
|---|---|
| دغه يوه ته دوه سوه کڅوړې د زرو ورکوي | او بل ته د ډوډۍ او ځان غم ورکوي |

**مشکل الفاظ:** هميان: د روپو کڅوړه، حسرت: افسوس، غم، نان: ډوډۍ.

**خلاصه:** يعني چا ته بې شمېره مال او دولت ورکوي او څوک د ډوډۍ په غم کې وي.

| آن يکي بر تخت باصد عز وناز | ديگري کرده دهان از فاقه باز |
|---|---|
| هغه يو پر تخت او سلو عزتونو او نازونو دى | او بل د لوږې څخه خوله خلاصه کړې وي |

**مشکل الفاظ:** عز: عزت، فاقه: لوږه، بازکردن: خلاصول.

**خلاصه:** يعني څوک په عزت سره پر تخت ناست وي او څوک د مفلسۍ او لوږې په بلا اخته وي.

| آن يکي پوشيدسنجاب وسمور | ديگري خفته برهنه درتـــنور |
|---|---|
| هغه يوه د سنجاب او سمور جامې اغوستې | او بل لوڅ بدن په تنور کې ښېده دى |

**مشکل الفاظ:** پوشيدن: اغوستل، سنجاب: يو ډول حيوان چې د پوست څخه يې جامې جوړېږي، پوست ته يې سنجاب ويل کيږي، سمور: د گېدړې غوندې يو حيوان چې د پوست څخه يې جامې جوړېږي. برهنه: لوڅ.

**خلاصه:** يعني چا په ژمي کې د وړيو پوستين اغوستې وى او په ارامه ښېده يې او د چا سره

جامه نه وي او د يخ څخه په تاوده تنور کي پروت وي.

| آن يکي بر بستر کمخواب ونخ | ديگري برخاک خواري بسته يخ |
| --- | --- |
| هغه يو د کمخاب او شطرنج پر بستر باندي | بل د ذلت پر خاورو يخ وهلی |

**مشکل الفاظ**: کمخواب: کمخاب: د ريښمو جامه، نخ: شطرنج، يو ډول نرم او نقش لرونکی فرش، خواري: ذلت، تکليف، يخ: يخی، بسته: تړل سوی،

**خلاصه**: يعني څوک پر ريښمين فرش پروت وي او څوک د ذلت پر خاورو يخ وهلی پروت وي.

| طرفة العيني جهان برهم زند | کس نمي آرد که آنجا دم زند |
| --- | --- |
| د سترګو په رپ کي نړۍ بربادوي | هيڅوک توان نه لري چي هلته ساه واخلي |

**مشکل الفاظ**: طرفة العيني: د سترګو په رپ کي، برهم زدن: بربادول، خرابول، نمي آرد: توان نه لري، نه سي کولای، دم زند: ساه واخلي.

| آنکه با مرغ هوا ماهـي دهد | بندگان را دولت وشاهي دهد |
| --- | --- |
| هغه چي د هوا مرغه ته ماهي ورکوي | غلامانو ته دولت او پاچاهي ورکوي |

**مشکل الفاظ**: مرغ هوا: د هوا مرغان. شاهي: پاچاهي،

| بي پدر فرزند پيدا اوکـــند | طفل را در مهد گويا اوکـــند |
| --- | --- |
| هغه بيله پلاره اولاد پيدا کوي | ماشوم په زانګو کي وياند کوي |

**مشکل الفاظ**: بي پدر: بي پلاره، فرزند: زوی، طفل: ماشوم، مهد: زانګو، ګويا: ويونکی

**خلاصه**: په اول شعر کي حضرت عيسی ﷺ ته اشاره ده چي بيله پلار پيدا سوی دی او په دوهم شعر کي دي ته اشاره ده چي کله خلګو پر حضرت مريم عليها السلام تهمت ووايه چي حضرت عيسی ﷺ په ماشومتوب کي په زانګو کي د هغوئ د تهمت جواب ورکړی.

| مرده صد ساله را حي مي کند | اين بجز حق ديگري کي مي کند |
| --- | --- |
| د سلو کالو مړی ژوندی کوي | دا کار ماسيوا د الله ﷻ څخه څوک کولای سي |

**مشکل الفاظ:** مرده: مړی، صد ساله: دسلو کالو، حي: ژوندی، بجز: ماسیوا، حق: اللهﷻ،

**خلاصه:** په دغه شعر کي د حضرت عزیر ﷺ قصې ته اشاره ده چي کله بخت نصر د بیت المقدس کلی خراب کړی او اوسېدونکی یې مړه کړل، نو حضرت عزیر ﷺ په هغه کلي کي پر خره سپور تېر سو ئو په تعجب سره یې وویل: اللهﷻ به د دغه کلي خلک څرنګه ژوندي کوي؟ نو اللهﷻ د هغه د څرنګوالي ښکاره کولو لپاره هغه مړ کړی او تر سلو کالو پوري همداسي وو او بیا یې بېرته راژوندی کړی.

| صانعي کزطین سلاطین مي کند | نجم را رجم شیاطین مي کند |
|---|---|
| هغه داسي جوړونکی چي د خاورو څخه پاچا جوړوي | ستوري د شیطان لپاره ویشتونکی جوړوي |

**مشکل الفاظ:** صانع: جوړونکی: طین: خاوره، نجم: ستوری، رجم: ویشتل.

**خلاصه:** یعني اللهﷻ داسي جوړونکی دی چي د خاورو څخه پیدا سوی انسان پاچا ګرځوي او په ستورو شیطانان ولي.

| از زمین خشک رویاندگـــیاه | آسمان را بي ستون داردنــګاه |
|---|---|
| د وچي مځکي څخه شنه وابنه پیدا کوي | آسمان بېله ستنو خوندي کوي |

**مشکل الفاظ:** زمین خشک: وچه مځکه، رویاند: شنه کول، ګیاه: شنګیا، نګاه: خوندي.

**خلاصه:** یعني اللهﷻ داسي قادر ذات دی چي د وچي مځکي څخه د باران اورېدو په واسطه شنګیا شنه کوي او د آسمان غوندي عظیم بام یې بېله ستنو درولی او ساتلی دی.

| هیچ کس در ملک او انبــازي | قول او را لـــحن ني آواز ني |
|---|---|
| هیڅوک د هغه په پاچاهي کي شریک نه دی | د هغه خبره سُر نه لري آواز نه لري |

**مشکل الفاظ:** انباز: شریک، ملګری، ني: د نفي لفظ یعني نه، لحن: سور، رېغ، راګ.

**خلاصه:** یعني هیڅوک د هغه په پاچاهي کي شریک نسته ، او د هغه خبري بې آوازه او بې څرنګوالي دي.

# در نعت سيدالمرسلين ﷺ

د رسول الله ﷺ د صفت په بيان کي.

| آنکه عالم يافت از نورش صفا | بعد ازين گويم نعت مصطفى |
|---|---|
| چي د هغه په نور نړۍ ځلا پيدا کړه | وروسته تر دې د سپيڅلي رسول صفت وايم |

**مشکل الفاظ:** مصطفى: د اصطفا څخه يعني چڼ کړل سوی، د رسول الله ﷺ لقب، نورش: د هغه نور. صفا: ځلا.

**خلاصه:** د الله ﷻ تر حمد وروسته شيخ د رسول الله ﷺ په نعت پيل وکړی، ځکه د الله ﷻ څخه وروسته پر ټوله نړۍ د رسول الله ﷺ احسان دی.

| آخر آمد بود فخر الاولـــــين | سيدالکونين ختم المرســـلين |
|---|---|
| وروسته راغلی مگر د لومړنيو فخر دی | د دواړو جهانو سردار او د رسولانو آخر |

**مشکل الفاظ:** سيدالکونين: د دواړو جهانو سردار، اولين: لومړني.

**خلاصه:** يعني رسول الله ﷺ د دواړو جهانو سردار او آخري پيغمبر دی، نبوت پر ده ﷺ ختم دی، د زماني په اعتبار آخر دی مگر د مرتبې په اعتبار د مخکنيو رسولانو لپاره د ناز سبب دی.

| انبيا و اوليا محـــــتاج او | آنکه آمد نه فلک معــــراج او |
|---|---|
| ټول نبيان او وليان د هغه محتاج دي | هغه چي تر نهو آسمانو پوري د هغه معراج دی |

**مشکل الفاظ:** نه فلک: نهه آسمانونه، يعني اووه آسمانونه، عرش او کرسي، معراج: د رسول الله ﷺ د آسمانو لېدنه کول.

**خلاصه:** رسول الله ﷺ په پاک بدن سره د الله ﷻ په حکم تر عرش پوري تګ وکړی، دوږخ او جنت يې ولېدل، د الله ﷻ په نږدېوالي مشرف سو.

| مسجد او شد همه روئي زمين | شد وجودش رحمة للعالـمين |
|---|---|
| ټول د ځمکي مخ د هغه لپاره مسجد سو | د هغه وجود د ټولي نړۍ لپاره رحمت سو |

**مشکل الفاظ**: عالمين: د عالم جمع يعني هر شی ماسيوا دالله ﷻ، روئي: مخ. زمين: مځکه
**خلاصه**: يعني د رسول الله ﷺ ذات د ټولي نړی لپاره رحمت دی ځکه په ټولو کائناتو کي هر چا ته چي نعمت تر لاسه دی هغه د رسول ﷺ په برکت دی، همدارنګه په ټوله مځکه کي دده لپاره لمونځ کول جائز ګرځول سوي دي، د نورو نبيانو او امتيانو لپاره د عبادت ګاه څخه ماسيوا بل ځای عبادت کول جائز نه وه دا يوازي د رسول الله ﷺ د ځانګړتياوو څخه دي.

| صدهزاران رحمت جان آفرين | بروی وبرآل پاک طاهـــــرين |
| --- | --- |
| د ځان پيدا کوونکي په لکونو رحمتونه دي وي | پر هغه باندي او د هغه پر پاکي کورنۍ باندي |

**مشکل الفاظ**: صدهزار: سل زره، جان آفرين: پيدا کوونکی، يعني الله ﷻ، آل: کورنۍ، طاهرين: پاک يعني د ګناهو څخه پاک.
**خلاصه**: دلته شيخ پر رسول الله ﷺ باندي درود وايي، په شعر کي د رحمت دعاء سوې ده.

| آنکه شدیارش ابوبکر وعـــمر | ازسرانگشت اوشق شد قـــمر |
| --- | --- |
| هغه چي ملګري يې ابوبکر او عمر سول | چي د ګوتي په اشاره يې سپوږمۍ وچاودل |

**مشکل الفاظ**: يار: ملګری، انګشت: ګوته، شق: څيرېدل، قمر: سپوږمۍ.
**خلاصه**: شيخ صاحب د رسول الله ﷺ د کورنۍ يادولو وروسته د هغه ياران ذکر کړل او هغوئ يې د خلافت په ترتيب ذکر کړل، په دوهم شعر کي د رسول الله ﷺ د معجزې شق القمر (د سپوږمۍ دوې ټوټې کېدل) ذکر کړي دي، کله چي کفارو د رسول الله ﷺ څخه دا معجزه وغوښتل نو رسول الله ﷺ په ګوته مبارکه اشاره وکړه او سپوږمۍ دوې ټوټې سوه او د غره دواړو خواوو ته معلومه سوه.

| آنکه يکي او را رفيق غار بـود | وان دگر لشکر کش ابرابر بود |
| --- | --- |
| هغه يو د رسول الله ﷺ د غار ملګری وو | او هغه بل د نيکانو سالار وو |

**مشکل الفاظ**: آن يکي: هغه يو يعني ابوبکر صديق رضی الله عنه، رفيق غار: د غار ملګری، لشکر کش: يعني لښکر بيونکی، ابرابر: نيکان.

**خلاصه:** يعني حضرت ابوبكر صديق ﷜ د رسول الله ﷺ د غار ملګری وو، کله چي رسول الله ﷺ د مکي څخه مديني ته د هجرت کولو قصد وکړی نو د کفارو څخه د پټېدو لپاره يې په غار ثور کي پناه واخيستل او حضرت ابوبكر صديق ﷜ هم ورسره ملګری وو، په دوهم شعر کي يې د حضرت عمر ﷜ په تعريف کي د لښکر مشر وويل.

| صاحبش بودند عثمان وعلي | بهرآن گشتند درعالـم ولي |
|---|---|
| ملګری يې عثمان او علي هم وه | له دي کبله هغوئ په دنيا کي سرداران سول |

**مشكل الفاظ:** صاحب: ملګری، گشتند: سول.

**خلاصه:** يعني د رسول الله ﷺ دوه خاص ملګري حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهما وه چي د رسول الله ﷺ د فيض او ملګرتيا په برکت په دنيا کي سرداران سول.

| آن يكي كان حيا وحلم بـود | وآن دگر باب مدينه علم بود |
|---|---|
| هغه يو د حياء او زغم كان وو | او هغه بل د علم د ښار دروازه وو |

**مشكل الفاظ:** حلم: زغم، باب: دروازه. مدينه: ښار.

**خلاصه:** په اول شعر کي حضرت عثمان ﷜ ته اشاره ده چي د حياء او زغم خاوند وو او په دوهم شعر کي حضرت علي ﷜ ته اشاره ده چي د علم د ښار دروازه وو.

| آن رسول حق كه خيرالناس بود | عم پاكش حمزه وعباس بـود |
|---|---|
| هغه رسول چي په خلګو کي تر ټولو غوره وو | د هغه پاک اکا حمزه او عباس وو |

**مشكل الفاظ:** خيرالناس: په خلګو کي غوره، عم: اکا.

**خلاصه:** شيخ صاحب د خلفاء راشدينو د يادوني وروسته د رسول الله ﷺ د اکاګانو حضرت حمزه او حضرت عباس رضي الله عنهما يادونه او تعريف وکړی.

| هر دم از ما صد درود وصدسلام | بر رسول وآل واصحابش تمام |
|---|---|
| د دواړو جهانو سردار او د رسولانو آخر | وروسته راغلی مګر د لومړنيو فخر دی |

**مشکل الفاظ:** هردم: هرګړی، ازما: زماله خوا، صد: سل، تمام: ټول.

**خلاصه:** شیخ صاحب په پای کي د رسول الله ﷺ او ټولو صحابه کرامو اجمالي یادونه وکړه.

# در فضیلت ائمه مجتهدین

د مجتهدینو امامانو د فضیلت په بیان کي.

| آن اماما ني که کردند اجتهاد | رحمت حق بر روان جمله باد |
|---|---|
| وروسته تر دي د سپیڅلي رسول صفت وایم | چي د هغه په نور نړۍ ځلا پیدا کړه |

**مشکل الفاظ:** امامان: جمع د امام یعني پیشوا او دلته د مذهب امام مراد دی، اجتهاد: په یو کار کي کوښښ کول، فکر کول، د شریعت په اصطلاح کي پر قرآن، حدیث او اجماع باندي په قیاس کولو سره مسائل را ایستل، روان: روح، جمله: ټول.

**خلاصه:** مصنف رحمه الله په دغه شعرونو کي د امامانو صفت او هغوئ ته دعاء کوي ځکه د صحابه کرامو وروسته د امامانو پر موږ ډېر لوی احسان دی.

| بوحنیفه بود امام بـــاصفا | آن سراج امتان مصـــــطفی |
|---|---|
| حضرت ابوحنیفه رحمه الله پاک امام وو | د رسول الله ﷺ د امتیانو څراغ وو |

**مشکل الفاظ:** امام باصفا: یعني پاک امام، د پاکی څخه باطني پاکي مراد ده ځکه امام صاحب ته په تصوف کي هم کمال حاصل وو، سراج: څراغ.

| باد فضل حق قرین جـــان او | شاد باد روح شاګـــــردان او |
|---|---|
| د الله ﷻ مهرباني دي د هغه ملګری وي | د هغه د شاګردانو روحونه دي هم خوښ وي |

**مشکل الفاظ:** فضل: مهرباني، قرین: یو ځای سوی، ملګری، شاد: خوشحاله.

**خلاصه:** د امام صاحب په شاګردانو کي تر ټولو ستر امام ابویوسف او امام محمد رحمة الله علیهما دي او تر هغوئ وروسته امام زفر، او حسن بن زیاد او داسي نور.

| و زمحمد ذوالمنن راضي شده | صاحبش بویوسف قاضي شده |
|---|---|
| او د امام محمد څخه الله ﷻ راضي سو | د هغه شاګرد قاضي ابویوسف سو |

**مشکل الفاظ**: صاحب: ملګری، شاګرد، ذوالمنن: د احساناتو خاوند.

**خلاصه**: یعني د امام صاحب په شاګردانو کي ابویوسف رحمه الله چي قاضي وو او همدارنګه امام محمد رحمه الله چي الله ﷻ د هغه د دیني مسائلو څخه راضي وو.

| یافت زایشان دین احمد زیب وفر | شافعي ادریس ومالک بــازفر |
|---|---|
| د هغوئ په وجه دین احمدي ښکلا پیدا کړه | امام شافعي بن ادریس او امام مالک سره له زفر |

**مشکل الفاظ**: دین احمد: یعني محمدي دین، زیب: ښکلا، فر: دبدبه، شان.

**خلاصه**: یعني د ذکر سوو امامانو په وجه دین ښکلا او پرمختګ تر لاسه کړی.

| درهمه چیز از همه برده سبق | احمد حنبل که بوْد اومرد حق |
|---|---|
| په هر شي کي تر ټولو وړاندي سو | امام احمدبن حنبل چي یو حق سړی وو |

**مشکل الفاظ**: مردحق: حق سړی، سبق: وړاندي والی.

| قصر دین از علم شان آباد باد | روح شان در صدرجنت شادباد |
|---|---|
| د دین ماڼۍ دي دهغوئ په علم اباده وي | د هغوئ روح دي د جنت په لوړ مقام کي خوشحاله وي |

**مشکل الفاظ**: صدر: سینه، لوړ ځای.

# مناجات بجناب مجيب الدعوات

دعاء قبلونکي ته مناجات.

| ماگنهگاريم وتو آمـــــرزگار | پادشاها جرم مارا درگـــذار |
| --- | --- |
| موږ گناه كار يو او ته بخښونكى يې | اې پاچا! زموږ گناهونه معاف كړه |

**مشکل الفاظ**: جرم: گناه، كوتاهي، درگذار: معاف كړه، آمروزگار: بخښونكى،

**خلاصه**: يعني موږ د نفس پابند يو ځكه نو په گناهو لړلي يو او ته رحيم او كريم ذات يې نو زموږ گناهونه او خطاوي وبخښې.

| جرم بي اندازه بي حد كرده ايم | تونكو كاري وما بد كرده ايـم |
| --- | --- |
| بې شمېره او بې حده كوتاهي مو كړي دي | ته ښه كار كوونكى او موږ بد كوونكي يو |

**مشکل الفاظ**: نكوكاري: احسان كوونكى، بې حد: ډېر زيات.

| آخر از كرده پشيمان گشته ايم | سالها در بند عصيان گشته ايم |
| --- | --- |
| په پاى كي پر خپلو كړنو پښېمان سوي يم | كلونه د نافرمانۍ په بند كي يم |

**مشکل الفاظ**: سالها: كلونه، عصيان: نافرماني.

| همقرين نفس وشيطان مانده ايم | دائما در فسق وعصيان مانده ايم |
| --- | --- |
| د نفس او شيطان ملگري پاته سوي يم | همېشه په فسق او گناهونو كي پاته سوي يم |

**مشکل الفاظ**: دائما: همېشه، فسق: گناه، همقرين: هم ناستي، ملگرى.

| غافل از امر ونواهي بوده ايـم | روز وشب اندرمعاصي بوده ايم |
| --- | --- |
| د اوامرو او نواهي څخه غافل پاته سوي يم | شپه او ورځ په گناهو كي پاته سوي يم |

**مشکل الفاظ**: معاصي: گناهونه. روز وشب: ورځ او شپه. نواهي: منع كارونه.

| بي گنه نگذشت بر ما ساعتي | باحضور دل نكردم طاعتي |
|---|---|
| بي گناه پر موږ باندي هيڅ وخت تېر نه سو | د زړه په اخلاص مو ستا عبادت ونه کړی |

**مشكل الفاظ**: بي گنه: بې گناه، نگذشت: تېر نه سو، باحضور دل: د زړه په اخلاص.

**خلاصه**: يعني زموږ ټول عمر په گناهونو کي تېر سو، يا خو په گناه کولو کي او يا په عبادت نه کولو کي او کله چي مو عبادت کوی نو د زړه په اخلاص او حضور مو نه کوی.

| بر در آمد بنده بـــگريخته | آبروئي خود بعصيان ريـــخته |
|---|---|
| تېنتېدلی غلام بيا دروازې ته راغلی | خپل عزت يې د گناهونو څخه جلا کړی راغلی |

**مشكل الفاظ**: بگريخته: تېنتېدلی، بنده: غلام، در: دروازه، آبروئي: عزت، ريخته: رژولی، عصيان: گناه.

**خلاصه**: يعني اې الله! ستا د بندگۍ څخه تېنتېدلی غلام د خپلو گناهونو څخه شرمنده او توبه کوونکی ستا درگاه ته راغلی دی.

| مغفرت دارد اميد لطف تـــو | زانكه خود فرموده لاتقـــنطوا |
|---|---|
| ستا په مهربانۍ د بخښني اميد لرو | ولي تا خپله ويلي دي چي مه نااميده کيږئ |

**مشكل الفاظ**: مغفرت: بخښنه، لطف: مهرباني، لاتقنطوا: مه نااميده کيږئ.

| بحر الطاف تو بې پايان بـــود | نااميد از رحمتت شيطان بود |
|---|---|
| ستا د مهربانيو درياب بې پايه دی | ستا د رحمت څخه نااميده شيطان دی |

**مشكل الفاظ**: بحر: درياب، الطاف: مهربانۍ، بې پايان: بې پايه.

**خلاصه**: يعني ستا د مهربانيو هيڅ اندازه نسته نو موږ ولي ستا د رحمت او بخښني څخه نااميده سو حال دا چي ستا د رحمت څخه شيطان نااميده دی.

| نفس وشيطان زد كريماراه من | رحمتت باشد شفاعت خواه من |
|---|---|
| اې کريم ! نفس او شيطان زما لار وهلې ده | يوازي ستا رحمت دي زما د شفاعت لاره سي |

**مشکل الفاظ:** کریم: بخښونکی، زد: وهل، راه: لار،

| پیش ازان کاند لحد خاکم کني | چشم دارم از گنه پاکم کني |
|---|---|
| مخکي تر دې چي ما په قبر کي خاوري کړي | زه امید لرم چي د گناهو څخه مي پاک کړې |

**مشکل الفاظ:** چشم دارم: امید لرم، خاک: خاوره، لحد: دوری، پیش: مخکي.

**خلاصه:** یعني زه امید لرم چي قبر ته تر تګ مخکي زما ګناهونه وبخښې او توبه مي قبوله کړې تر څو د عذاب څخه خلاصون تر لاسه کړم ځکه چي همېشنی خلاصون او نجات پر ښه خاتمې موقوف دی.

| از جهان بانور ایمانـــم بري | اندرآن دم کز بدن جانم بـري |
|---|---|
| ددنیا څخه ما د ایمان د نور سره یوسه | کوم وخت چي ته زما روح د بدن څخه یوسې |

**مشکل الفاظ:** جانم: زما ځان، بري: وړل، بانور: د نور سره، ایمانم: زما ایمان.

# در بیان مخالفت نفس اماره

د نفس د مخالفت په بیان کي.

| وانگهي بر نفس خود قادر بود | عاقل آن باشد که او شاکر بوَد |
|---|---|
| او هغه وخت پر خپل نفس واک لرونکی وي | هوښیار سړی هغه دی چي شکر کوونکی وي |

**مشکل الفاظ:** عاقل: هوښیار، شاکر: شکر کوونکی، آنگهي: هغه وخت، قادر: قدرت لرونکی،

**خلاصه:** په اول شعر کي د نعمتونو د شکر یادونه ده او په دوهم شعر کي پر نفس باندي د قدرت بیان دی چي انسان صابر ګرځوي او د ګناهونو څخه منع کوي.

| باشد اواز رستگاران جـــهان | هر که خشم خود فروخوردای جوان |
|---|---|
| هغه د دنیا د خلاصون موندونکو څخه سو | اې ځوانه! چا چي خښم هضم کړی |

**مشکل الفاظ**: خشم: غصه، خښم، فروخوردن: هضم کول یعني په واک کي کول، رستگار: خلاصون موندونکی.

**خلاصه**: په دغه شعر کي د غصې په واک کي کولو بیان سوی دی چي څوک د غصې په وخت کي ځان په واک کي کړي نو د ډېرو ستونزو څخه به خلاصون تر لاسه کړي.

| آن بود ابله ترین مــــرد مان | کزپي نفس وهوا بـــاشد دوان |
|---|---|
| هغه به په ټولو خلکو کي بې عقل وي | چي په نفس او خواهش پسي ځغستونکی وي |

**مشکل الفاظ**: ابله ترین: تر ټولو زیات بې عقل، پي: پسي، دوان: ځغاسته.

| وانگهي پنداردآن تاریک رائي | خواهد امرزیدنش آخرخدائي |
|---|---|
| او هغه وخت هم تاریک نظره گمان کوي | چي په پای کي به الله ﷻ هغه وبخښي |

**مشکل الفاظ**: انگهي: هغه وخت، پندار: گمان کوي، تاریک رائي: تاریک نظر لرونکی، یعني بې عقل، امرزیدن: بخښل.

**خلاصه**: یعني څوک چي د نفس او خواهشاتو پیروي کوي او بیا هم د الله ﷻ د بخښني امید لري نو هغه ډېر بې عقل دی ځکه هغه د غضب د اسبابو په اختیارولو سره د رحمت هیله لري، دا لکه د ازغو په کرلو سره د غنمو او نورو دانو گمان کول دي.

| گرچه درویشي بود سخت اي پســر | هم زدرویشي نباشد خوب تر |
|---|---|
| اي هلکه! که څه هم بزرگي سخت کار دی | هم تر بزرگی هیڅ یو کار غوره نسته |

**مشکل الفاظ**: درویشي: فقیري او مسکیني، خدای پېژندنه، خوب تر: ډېر ښه.

**خلاصه**: یعني که څه هم درویشي او بزرگي اختیارول سخت کار دی مگر تر دې غوره بل هیڅ کار نسته ځکه نو باید اختیار کړل سي.

| هر که اورانفس توسن رام شد | ازخردمندان نیکو نـــام شد |
|---|---|
| د چا چي سرکښ نفس تابعدار سو | نو هغه د نیکو هوښیارانو څخه سو |

**مشکل الفاظ**: توسن: سرکښ، رام: تابع، نېکونام: نېک.

| برمرادنفس تاگـــردي اسير | صبر بگزين وقناعت پيشه گير |
|---|---|
| ته به تر څو پورې د نفس د مطلب بندي يې | صبر اختيار کړه او قناعت خپل عادت وګرځوه |

**مشکل الفاظ**: اسير: بندي، بگزين: اختيار کړه، قناعت: پر لږ شي راضي کېدل، پيشه: کسب، گير: نېول، ګرځول، اختيارول.

**خلاصه**: يعني تر څو به د نفس په خواهشاتو کې راګېر يې، صبر او قناعت اختيار کړه چې دنفس څخه خلاصون تر لاسه کړې.

| در رياضت نفس بدراگوشمال | تانيندازد ترا اندر وبـــــال |
|---|---|
| په رياضت کې د بد نفس غوږونه وپېچه | تر څو تا په آفت کې نه واچوي |

**مشکل الفاظ**: رياضت: نفس په واک کې کول، گوش: غوږونه. گوشمال: غوږ پېچل يعني سزا ورکول.

**خلاصه**: يعني په رياضت سره د نفس طاقت کم کړه تر څو د خواهشاتو د بند څخه خلاص سې او په غمونو اخته نه سې.

| هر که خواهد تا سلامت مانداو | از جميع خلـــق روگرداند او |
|---|---|
| که څوک غواړي چې سلامت اوسي | هغه بايد د ټول مخلوق څخه مخ واړوي |

**مشکل الفاظ**: خلق: مخلوق، روگرداند: مخ واړوه.

**خلاصه**: يعني څوک چې د آفتونو څخه خلاصون غواړي نو هغه بايد د ټولې دنيا څخه بې شوقه سي او کونج ناسته اختيار کړي.

| مردمانرا سربسر درخواب دان | گشت بيدارآنکه اورافت ازجهان |
|---|---|
| ټول خلک په خوب کې وګڼه | هغه څوک ويښ سو چې د دنيا څخه ولاړی |

**مشکل الفاظ**: سربسر: ټول، رفت از جهان: يعني مړ سوه.

**خلاصه**: یعني ټول خلک د غفلت په خوب بېده دي او د پايلي څخه بې خبره دي، څوک چې د دنيا څخه ولاړ سي هغه وپېښ سو او خبر سو چې د خواهشاتو پوره کولو څومره بده پايله ده.

| آنكه رنجاند ترا عذرش پذيـر | تا بيابي مغفرت بروى مـگير |
|---|---|
| څوک چي تا ته تکليف ورسوي د هغه عذر ومنه | هغه مه نيسه تر څو بخښنه تر لاسه کړې |

**مشکل الفاظ**: رنجانيدن: تکليف رسول، پذير: ومنه، مگير: مه نيسه.

**خلاصه**: يعني څوک چي تا ته تکليف ورسوي نو ته هغه ته تکليف مه ورسوه بلکه د الله ﷻ څخه د بخښني اميد ولره ځکه څوک چې پر بندګانو رحم کوي الله ﷻ پر هغه رحم کوي.

| حق ندارد دوست خلق ازار را | نيست اين خصلت يكي ديندار را |
|---|---|
| الله ﷻ د مخلوق ازارونکي نه خوښوي | دا د يو ديندار سړي عادت نه دى |

**مشکل الفاظ**: حق: الله ﷻ، خلق آزار: مخلوق ته ازار رسونکی، خصلت: عادت.

| ازستم هر كودلي راريش كـرد | آن جراحت برو جودخويش كرد |
|---|---|
| چا چي په ظلم سره د يو چا زړه مات کړی | هغه پر خپل بدن باندي زخم پيدا کړ |

**مشکل الفاظ**: ستم: ظلم، ريش: زخمي، جراحت: زخم.

| آنكه در بند دل ازاري بـــود | در عقــوبت كار او زاري بود |
|---|---|
| څوک چي د زړه ازارولو په فکر کي وي | د هغه انجام به په پای کي ژړا وي |

**مشکل الفاظ**: بند: فکر، عقوبت: بده پايله، زاري: ژړا او زاري.

**خلاصه**: يعني څوک چې د بل چا په تکليف رسولو پسې وي نو د هغه پايله به ډېره بده وي او په پای کي به خپله ژاړي په دنيا کي هم او په آخرت کي هم.

| اي پسر قصد دل آزاري مكن | وزخداى خويش بيزاري مكن |
|---|---|
| اي هلکه! د زړه ازارولو اراده مه کوه | او د خپل خدای څخه بېزاري مه کوه |

**مشکل الفاظ**: پسر: زوی، هلک، خویش: خپل.

| خاطر کس را مرنجان اي پسر | ورنه خوردي زخم بر جان وجگر |
|---|---|
| اې هلکه! چا ته تکلیف مه رسوه | کنه نو ته پر خپل ځان او زړه زخم خوري |

**مشکل الفاظ**: خاطر: زړه، رنجانیدن: تکلیفول، ورنه: کنه نو.

| نام مردم جز به نیکوئي مبر | گرهمي خواهي که گردي معتبر |
|---|---|
| د خلګو نوم ماسیوا د نیکۍ څخه مه اخله | که چیري ته غواړې چي معتبر سې |

**مشکل الفاظ**: جز: ماسیوا، معتبر: اعتباري.

**خلاصه**: یعني خلګ په نېکیو یادوه ځکه په داسي کولو سره ستا باور زیاتیږي.

| قوت نیکي نداري بد مکن | بر وجود خود ستم بیحد مکن |
|---|---|
| که د نیکۍ توان نه لرې نو بدي مه کوه | پر خپل ځان باندي ډېر ظلم مه کوه |

**خلاصه**: یعني که چیري نیکي نه سې کولای نو بدي خو مه کوه ځکه بدي کول په حقیقت کي پر خپل ځان ظلم کول دي.

| رو زبان از غیبت مردم به بند | تا نه بیني دست وپائي خود به بند |
|---|---|
| ولاړ سه د خلګو د غیبت څخه ژبه بنده کړه | تر څو خپل لاس او پښې په بند کي ونه وینې |

**مشکل الفاظ**: رو: ولاړ سه، نه بیني: نه وویني.

**خلاصه**: یعني که چیري د خلګو غیبت او بدوینه کوې نو خپل ځان به په بند کي ووینې.

| هر که از غیبت زبانش بسته نیست | آنچنان کس از عقوبت رسته نیست |
|---|---|
| د چا ژبه چي د غیبت څخه بنده نه وي | داسي کس د بدي پایلي څخه خلاص نه دی |

**مشکل الفاظ**: بسته: تړلی، عقوبت: بده پایله. رسته: خلاص.

# در بیان فوائد خاموشي

د چوپتیا د ګټو په بیان کې.

| اې برادر گرتوهستي حق طلب | جز بفرمان خدا مکشائي لب |
|---|---|
| اې وروره! که ته د خدای ﷻ غوښتونکې یې | نو د الله ﷻ د حکم ماسیوا شونډان مه خلاصوه |

**مشکل الفاظ**: برادر: ورور، لب: شونډان، مکشائي: مه خلاصوه.

**خلاصه**: یعني که چیري ته د الله ﷻ غوښتونکی یې نو د هغه د حکم څخه پرته شونډان مه خلاصوه، یعني یوازې د نیکۍ خبرې کوه.

| گر خبرداري زحي لایموت | بردهان خودبنه مهرسکوت |
|---|---|
| که په ژوندي او نه مرکېدونکي ذات خبر یې | نو پر خپله خوله د چوپتیا مهر ولګوه |

**مشکل الفاظ**: حي: ژوندی: لایموت: نه مرکېدونکی. سکوت: چوپتیا. دهان: خوله.

**خلاصه**: یعني که چیري ته د خدای ﷻ پېژندنه لرې نو چوپتیا غوره کړه.

| اې پسرپند ونصیحت گوش کن | گرنجاني بایدت خاموش کن |
|---|---|
| اې هلکه! وعظ او نصیحت په غور سره واوره | که چیري خلاصون غواړې نو چپ سه |

**مشکل الفاظ**: پند: نصیحت، گوش کن: واوره.

**خلاصه**: یعني که چیري خلاصون غواړې نو د بل چا نصیحت په فکر سره واوره او خپله پټه خوله سه ځکه چوپتیا د دنیا او آخرت د سلامتیا ذریعه ده.

| هر کرا گفتار بسیارش بود | دل درون سینه بیمارش بود |
|---|---|
| د چا چې خبرې کول زیات وي | د هغه زړه په سینه کې دننه ناروغ وي |

**مشکل الفاظ**: هرکرا: هر چالره، گفتار: خبرې، درون: دننه، بیمار: ناروغ.

**خلاصه**: یعني بېله اړتیا خبرې کولو سره زړه توریږي.

| پیشه جاهل فراموشي بود | عاقلان را پیشه خاموشي بود |
|---|---|
| د ناپوهانو کار (دخدای ﷻ) هېرول دي | د هوښیارانو کار چوپتیا ده |

**مشکل الفاظ:** عاقلان: هوښیاران، فراموشي: هېرول. پیشه: کسب، کار.

**خلاصه:** یعني هوښیار سړی هغه څوک دی چي په چوپتیا سره د الله ﷻ په یاد کي بوخت وي او ناپوه سړی هغه څوک دی چي خدای ﷻ هیر کړي یا په خبرو کي وخت ضائع کړي.

| ابله است آنکو بگفتن راغب ست | خامشي ازکذب وغیبت واجب ست |
|---|---|
| بې عقل دی هغه څوک چي خبرو ته مائل وي | د درواغو او غیبت څخه چوپتیا واجب ده |

**مشکل الفاظ:** خامشي: چوپتیا، کذب: درواغ، ابله: بې عقل، راغب: شوقي، مائل.

**خلاصه:** یعني د درواغو او غیبت څخه ځان ساتل لازم دي ځکه دا حرام کارونه دي.

| قول خود را از برائي دق مگو | اي برادر جزثنائي حق مگو |
|---|---|
| خپله خبره د مشهورتیا لپاره مه کوه | اي وروره! د الله ﷻ د ثناء ماسیوا بل هیڅ مه وایه |

**مشکل الفاظ:** ثناء: ستاینه، ښېگڼه، دق: وهل، یعني مشهورتیا.

| هر چه دارد جمله غارت مي شود | هر که در بند عمارت مي شود |
|---|---|
| نو هر څه چي لري ټول به برباد سي | څوک چي د ماڼي په فکر کي وي |

**مشکل الفاظ:** بند عمارت: د ماڼي فکر، غارت: لوټ.

**خلاصه:** یعني څوک چي په ډېرو خبرو کولو سره د ځان مشهوره کول غواړي نو هغه باطني کمالات د لاسه ورکوي.

| گر چه گفتارش بود در عدن | دل زپر گفتن بمیرد در بدن |
|---|---|
| که څه هم د هغه خبزي د عدن ملغلري وي | زړه په بدن کي په زیاتو خبرو سره مړ کیږي |

**مشکل الفاظ:** پرگفتن: ډیري خبري کول، بمیرد: مړ کیږي، در: ملغلري. عدن: د یو ښار نوم

| آنکه سعي اندر فصاحت مي کند | چهره دل را جراحت مي کند |
|---|---|
| څوک چي په فصاحت کي کوښښ کوي | هغه د زړه مخ زخمي کوي |

**مشکل الفاظ**: سعي: کوښښ، فصاحت: ښه بیان کول. چهره: مخ.

| رو زبان را در دهان محبوس دار | و زخلائق خویش را مایوس دار |
|---|---|
| څه او ژبه په خوله کي بندي وساته | او د مخلوق څخه خپل ځان ناامیده کړه |

**مشکل الفاظ**: رو: څه، دهان: خوله، محبوس: بندي، مایوس: ناامید.

**خلاصه**: یعني خپله ژبه په واک کي کړه او د ټول مخلوق څخه ناامیده سه یعني حرص پرېږده او قناعت غوره کړه.

| هر که او برعیب خود بیناشود | روح او را قوتي پیدا شـــود |
|---|---|
| څوک چي د خپل عیب لیدونکي سي | د هغه و روح ته طاقت پیدا کیږي |

**مشکل الفاظ**: بینا: لیدونکی، قوتي: طاقت.

# در بیان عمل صالح

## د نېک عمل په بیان کي

| هر که باشد اهل ایمان اي عزیز | پاک دارد چار چیز از چار چیز |
|---|---|
| اي ګرانه! څوک چي ایمان لرونکی وي | نو هغه څلور شیان د څلورو شیانو څخه ساتي |

**مشکل الفاظ**: عزیز: ګران، اهل ایمان: مؤمن، ایمان لرونکی،

**خلاصه**: یعني کامل مؤمن څلور شیان د څلورو شیانو څخه پاک ساتي.

| از حسد اول تودل را پاک دار | خویشتن را بعد ازان مؤمن شمار |
|---|---|
| ته لومړی د حسد څخه زړه پاک وساته | تر دې وروسته خپل ځان مؤمن وشمېره |

**مشکل الفاظ**: حسد: د بل چا د نعمت زوال غوښتل، خویشتن: خپل ځان.

| پاک دار از کذب وازغیبت زبان | تا که ایمانت نیفتد در زیــان |
|---|---|
| د درواغو او غیبت څخه ژبه پاکه وساته | تر څو ستا ایمان په تاوان کي نه سي |

**مشکل الفاظ**: زیان: تاوان، کذب: درواغ، زبان: ژبه.

| پاک گرداري عمل را از ریـــا | شمع ایمان ترا باشد ضـــیا |
|---|---|
| که چیري ته خپل عمل پاک کړې د ریاء څخه | نو ستا د ایمان ډیوه به ځلانده سي |

**مشکل الفاظ**: ریا: ښودنه. ضیا: ځلا.

**خلاصه**: یعني دریم شی دادی چي خپل عمل د ریا څخه پاک کړې.

| چون شکم را پاک داري از حرام | مـرد ایمان داري باشي والسلام |
|---|---|
| کله چي ته نس وساتې د حرامو څخه | نو ته به ایمان لرونکی سې او بس |

**مشکل الفاظ**: شکم: نس، والسلام: سره د سلامتیا، د خبرو په پای کي استعمالیږي.

**خلاصه**: دا څلورم شی دی چي نس د حرام خوراک څخه باید وساتل سي تر څو باطني نور تر لاسه سي او ایمان پرمختګ وکړي.

| هر که دارد این صفت باشد شریف | ورندارد دارد ایمان ضـــعیف |
|---|---|
| څوک چي دغه صفت ولري هغه بزرګ دی | او که یې نه لري نو ایمان یې کمزوری دی |

**خلاصه**: یعني په څا ګي چي ذکر سوي څلور شیان نه وي نو د هغه ایمان کمزوری دی.

| هر که باطن از حرامش پاک نیست | روح او را ره سوی فلاک نیست |
|---|---|
| د چا چي باطن د حرامو څخه پاک نه وي | د هغه روح ته د آسمانو په خوا لار نسته |

**مشکل الفاظ**: افلاک: آسمانونه.

| چون نباشد پاک اعمال از ریا | هست بیحاصل چون نقش بوریا |
|---|---|
| کله چي اعمال د ریا څخه پاک نه وي | د بورۍ د نقش په دول بې ګټې وي |

**مشکل الفاظ**: بي حاصل: بې گټې، بوریا: بوري.

| هر کرا اندر عمل اخلاص نیست | درجهان از بندگان خاص نیست |
|---|---|
| د چا چي په عمل کي اخلاص نه وي | هغه په دنیا کي د خاصو بندګانو څخه نه دی |

| هر که کارش از برائي حق بود | کار او پیوسته بارونق بـــود |
|---|---|
| د چا چي عمل د الله ﷻ لپاره وي | د هغه کار به تل روښانه وي |

**مشکل الفاظ**: برائي حق: د الله ﷻ لپاره، پیوسته: همېشه، بارونق: ځلانده.

# در سیرت ملوک

د پاچاهانو د خویونو په بیان کي.

| چارخصلت اي برادر درجهان | پادشهان را همي دارد زیـــان |
|---|---|
| اي وروره! څلور عادتونه په دنیا کي | د پاچاهانو لپاره تاوان لري |

**مشکل الفاظ**: چار: څلور، خصلت: عادت، خوی، جهان: دنیا .زیان: تاوان.

**خلاصه**: یعني څلور شیان دي چي د پاچاهانو هیبت ختموي او د پاچاهي د تلو سبب ګرځي.

| پادشه چون بر ملاخندان بود | بیگمان در هیبتش نقصان بود |
|---|---|
| کله چي پاچا په ښکاره خندا کوونکي وي | بیله شکه د هغه په هیبت کي تاوان کېږي |

**مشکل الفاظ**، پادشه: پاچا، برملا: په ښکاره، خندان: خندا کوونکی، بیګمان: بیله شکه.

**خلاصه**: یعني په ښکاره او د ټولو په مخکي خندا کول د پاچا هیبت او دبدبه له منځه وړي.

| باز صحبت داشتن باهر فقیر | پادشاهان را همي سازد حقیر |
|---|---|
| بیا د هر فقیر سره ملګرتیا کول | پاچاهان سپک ګرځوي |

**مشکل الفاظ**: باز: بیا، صحبت: ملګرتیا، حقیر: سپک، ذلیل.

**خلاصه**: یعني د هر بزرګ او فقیر سره تعلق ساتل تاوان رسوي مګر د یو خاص بزرګ سره

عقيدوي اړيكي ساتلِ هيڅ تاوان نه رسوي .

| خويشتن را شاه بي هيبت كند | بازنان بسيار اگر خلوت كند |
|---|---|
| نو پاچا خپل ځان بې هيبته كوي | كه د ښځو سره زياتي اړيكي وساتي |

**مشكل الفاظ**: زنان: ښځې، بسيار، ډير، خلوت: يو ځاى كېدل،

| ميل او سوئي كم ازاري بـــود | هر كرا فر جهانداري بـــود |
|---|---|
| د هغه شوق تكليف نه رسولو ته وي | څوك چي د پاچاهۍ دبدبه ولري |

**مشكل الفاظ**: فر: دبدبه، جهانداري: پاچاهي، كم: نه.

**خلاصه**: يعني كوم پاچا چي دبدبه ولري هغه بايد د خلګو نه تكليف كولو ته توجه وكړي.

| تازعدلش عالمي گردند شـاد | عدل بايد پادشاهانـــرا وداد |
|---|---|
| تر څو د هغه د عدل څخه ټوله دنيا خوشحاله سي | پاچاهان بايد عدل او انصاف وكړي |

**مشكل الفاظ**: داد: انصاف: شاد: خوشحاله.

**خلاصه**: يعني پاچا بايد عدل او انصاف ولري تر څو خلګ د هغه د انصاف څخه خوشحاله وي.

| سودنكند مرورا گنج وسـپاه | گركند آهنگ ظلمي پادشـاه |
|---|---|
| هغه ته خزاني او پوځ هيڅ ګټه نه رسوي | كه پاچا د يو ډول ظلم اراده وكړي |

**مشكل الفاظ**: آهنگ: اراده، سود: ګټه، گنج: خزانه، سپاه: لښكر، پوځ .

**خلاصه**: يعني د ظلم په وجه د پاچا د تباهۍ دروازه خلاصيږي او بيا د هغه دولت او پوځ هيڅ شي هم هغه ته ګټه نه سي رسولاى .

| دور نبود گر رود ملكش زدست | بازنان شاهيكه در خلوت نشست |
|---|---|
| نو ليري خبره نه ده چي پاچاهي يې ختمه سي | پاچا كه د ښځو سره په يوازيوالي كي كښيناست |

**مشكل الفاظ**: زنان: ښځې، خلوت: يوازيوالي، دورنبود: ليري خبره نه ده. رود: ولاړ سي.

| چونکه عادل باشدومیمون لُقا | باشد اندر مملکت شه رابــقا |
| --- | --- |
| که انصاف کوونکی او خوش طبیعته سي | نو پاچا به په پاچاهي کي بقا تر لاسه کړي |

**مشکل الفاظ**: مملکت: پاچاهي، بقاء: دوام.

| چون کند سلطان کرم بالشکري | بهراو باززند صدجان سرسري |
| --- | --- |
| که پاچا د لښکر سره احسان کوي | نو د هغه لپاره بيله شکه سل ځانونه قربانوي |

**مشکل الفاظ**: سلطان: پاچا، بازند: بايلل، سرسري: اسان، بيله فکر کولو.

## در بیان حسن خلق

د ښو اخلاقو په بيان کي.

| چارچيز آمد بزرگي را دلــيل | هر که اين دارد بود مرد جليل |
| --- | --- |
| څلور شيان د بزرگی دليل دي | څوک چي دغه شيان ولري بزرگ دی |

**مشکل الفاظ**: بزرگي: لويي، جليل: بزرگ.

| علم را اعزاز کردن بيحساب | خلق را دادن جواب باصواب |
| --- | --- |
| علم ته بې شمېره عزت ورکول | او مخلوق ته سم جواب ورکول |

**مشکل الفاظ**: اعزاز کردن: عزت ورکول، درناوی کول، باصواب: صحيح.

**خلاصه**: يعني د علم ډېر زيات عزت کول او د نورو خلکو د خبرو سم جواب ورکول.

| هر که دارد دانش وعقل وتميز | اهل علم وعلم را دارد عــزيز |
| --- | --- |
| څوک چي پوهه، عقل او شعور ولري | نو هغه ته عالم او علم ګران وي |

**مشکل الفاظ**: دانش: پوهه، تميز: پېژندنه.

| ديگر آن باشد که جويد وصل دوست | زانکه ازدشمن حذر کردن نکوست |
| --- | --- |
| او بل شی دادی چي د ملګري وصل غواړي | ځکه د دښمن څخه ځان ساتل ښه دي |

**مشكل الفاظ**: جستن: غوښتل، وصل: يو ځاى كېدل، حذر كردن: ډېره كول.
**خلاصه**: يعني د ملګرو او دوستانو سره د يو ځاى كېدو كوښښ كوي او د دښمنانو څخه ډېره او ليري والى كوي.

| | |
|---|---|
| اي برادر گر خرداري تـمام | نرم وشيرين گوئي بامردم كلام |
| اي وروره! كه چيرې پوره عقل لرې | نو د خلكو سره په نرمۍ او خوږې خبرې كوه |

**مشكل الفاظ**: خرد: عقل، شيرين: خوږ. كلام: خبرې.

| | |
|---|---|
| هر كه باشد تلخ گوئي وترش روئي | دوستان از وى بگردانند روى |
| څوک چې ترخې خبرې او تريو مخ لري | دوستان د هغه څخه مخ گرځوي |

**مشكل الفاظ**: تلخ: ترخې، ترش روئي: تريو مخى، روگردانيدن: مخ اړول.

| | |
|---|---|
| هر كه از دشمن نباشد پر حذر | عاقبت بيند از ورنج وضـــرر |
| څوک چې د دښمن څخه ډېره نه لري | نو په پاى كې به د هغه څخه تاوان او غم وويني |

**مشكل الفاظ**: پرحذر: په ډېره كې، عاقبت: پايله، رنج: غم.

| | |
|---|---|
| درميان دوستان مسرور بـاش | گرخبرداري زدشمن دوربـاش |
| د دوستانو په منځ كې خوشحاله اوسه | كه خبر ولرې نو د دښمن څخه ليري اوسه |

**مشكل الفاظ**: مسرور: خوشحاله، دور: ليري.
**خلاصه**: يعني كه چيرې ته هوښيار يې او يا په پايلې خبريې نو د دښمنانو څخه ليري اوسه او د دوستانو په منځ كې خوشحاله اوسه ځكه دوستان ستا ښېګڼه غواړي پر خلاف د دښمنانو چې هغوئ تل ستا تاوان غواړي.

| | |
|---|---|
| در جوار خود عدو را ره مـده | از برائي آنكه دشمن دور بـه |
| په خپل همسايتوب كې دښمن ته لار مه وركوه | ځكه دښمن ليري كېدل ښه دي |

**مشكل الفاظ**: جوار: همسايتوب، عدو: دښمن، راه دادن: لار وركول.

| تا تواني روئي اعدا را مبين | بامحبان باش دائم همنشين |
|---|---|
| تر څو چي کولای سي د دښمن مخ مه وينه | همېشه د د دوستانو سره ناسته غوره کړه |

**مشکل الفاظ:** محبان: خوښونکي، دوستان، همنشين: هم ناسْتی، روئي: مخ، اعدا: دښمنان.

| پس حديث اين وآن گوشه کن | اي پسر تدبير ره را توشه کن |
|---|---|
| نو د آخوا او دېخوا خبري يوې خوا ته کړه | اې هلکه! د لاري د تدبير لپاره توښه ولره |

**مشکل الفاظ:** توشه: توښه، حديث: خبري، گوشه کن: يوې خوا ته کړه.

**خلاصه:** يعني د آخرت لپاره توښه برابره کړه او پالتو خبري پرېږده.

# در بيان مهلکات

د هلاکوونکو شيانو په بيان کي.

| تا تواني باش زينها پر حذر | چار چيز ست اي برادر باخطر |
|---|---|
| څومره چي کولای سي ور څخه ېېره وکړه | اې وروره! څلور شيان خطرناکه دي |

**مشکل الفاظ:** پر حذر: په ېېره کي. زينها: د دغو څخه.

**خلاصه:** يعني څلور شيان ډېر خطرناک دي چي د دنيا او آخرت تاوان پکښي دي.

| رغبت دنيا وصحبت بازنان | قربت سلطان والفت بابدان |
|---|---|
| د دنيا شوق او د ښځو سره ناسته ولاړه | د پاچا نژدېوالی او د بدو ملگرتيا |

**مشکل الفاظ:** قربت: نژدېوالی، الفت: مينه، بدان: بد خلک.

| بابدان الفت هلاک جان بود | قرب سلطان آتش سوزان بود |
|---|---|
| د بدو ملگرتيا د ځان هلاکت دی | د پاچاهانو نژدېوالی سوځونکی اور دی |

**مشکل الفاظ:** سوزان: سوځونکی، هلاک: تباهي.

| زهر دارد در درون دنیا چومار | گرچه بیني ظاهرش نقش ونگار |
| --- | --- |
| دنیا په دننه کي د مار غوندي زهر لري | که څه هم په ښکاره نقش لرونکې او ښکلې وي |

| مي نماید خوب وزیبا در نظر | لیک از زهرش بود جان راخطر |
| --- | --- |
| په نظر خو ښه او ښکلې معلومیږي | مګر د زهرو څخه یې ځان ته خطر وي |

**مشکل الفاظ**: مي نماید : معلومیږي، خوب: ښه.

| زهراین مار منقش قاتل است | باشد از وی دور هر کوعاقل ست |
| --- | --- |
| ددغه نقش لرونکي مار زهر وژونکي دي | څوک چي هوښیار وي ور څخه لیري کیږي |

| همچو طفلان منگراندر سرخ وزرد | چون زنان مغرور رنگ وبومګرد |
| --- | --- |
| د ماشومانو غوندي سره او ژړ ته مه ګوره | د ښځو غوندي په رنګ او بوی مه خطاوزه |

**مشکل الفاظ**: منګر : نظر نه کول، طفلان: کوچنیان، سرخ: سور، زرد: ژړ، زنان: ښځي.

| زال دنیا چون عروس آراست ست | در دوروزی شوی دیگر خواست ست |
| --- | --- |
| دنیا د بوډۍ ناوي غوندي ښکلې سوې ده | په دوو ورځو کي بل خاوند غواړي |

**مشکل الفاظ**: زال: بوډۍ، سپین سرې، عروس: ناوې، آراست: سنګار سوې، شوی: خاوند.

**خلاصه**: یعني دنیا د سپین سري ناوې په ډول ده چي په دوو ورځو کي تا پرېږدي.

| مقبل آن مردیکه شدزین جفت طاق | پشت بروی کرد دادش سه طلاق |
| --- | --- |
| نېکمرغه دی هغه څوک چي ددغه جوړې څخه جلا سي | شا یې ور واړول او درې طلاقه یې ورکړه |

**مشکل الفاظ**: مقبل : نېکمرغه، جفت: جوړه، طاق: یوازي، سه: درې.

**خلاصه**: یعني هغه سړی نېکمرغه دی چي دنیا پرېږدي او آخرت ته توجه وکړي.

| لب به پیش شوي خندان مي کند | پس هلاک از زخم دندان مي کند |
| --- | --- |
| د خاوند په مخکي شوندان خندا کونکي کړي | وروسته یې د غاښو په زخم هلاکوي |

**مشکل الفاظ**: لب: شونډان، دندان: غاښونه.

**خلاصه**: یعني ښځه مخامخ ښه چلند کونکي وي مګر تر شا تکلیف رسوي.

## در بیان اهل سعادت

د نېکمرغو کسانو په بیان کې.

| شد دلیل نیک بختي چار چیز | هر که این چارش بود باشدعزیز |
|---|---|
| د نېکمرغۍ نښې څلور شیان دي | څوک چې دغه څلور تر لاسه کړي نېکمرغه دی |

| اصل پاک آمد دلیل نیک بخت | نیست بداصلي سزائي تاج وبخت |
|---|---|
| پاک ذات د نېکمرغۍ نښه ده | هیڅ بد ذاته سړی د تاج او تخت وړ نه دی |

**مشکل الفاظ**: اصل: ذات، سزا: وړ.

**خلاصه**: یعني په ښه کورنۍ کې پیدا کېدل د نېکمرغۍ علامه ده.

| نیک بختان را بود رائي صواب | آنکه بدرایست باشد درعذاب |
|---|---|
| د نېکمرغو کسانو رایه صحیح وي | څوک چې بدنظره وي هغه به په عذاب کې وي |

| هر که ایمن از عذاب حق بود | نیست مؤمن کافر مطلق بود |
|---|---|
| څوک چې د الله ﷻ د عذاب څخه بې بیري وي | هغه مؤمن نه دی بلکه کافر دی |

**مشکل الفاظ**: ایمن: بې بیري،

**خلاصه**: یعني څوک چې د الله ﷻ څخه بېره نه لري نو هغه بېله شکه کافر دی ځکه د الله ﷻ د عذاب څخه بې پرواهي کفر دی.

| عمر دنیا چند روزي بیش نیست | غافل ست آنکس که پیش اندیش نیست |
|---|---|
| د دنیا عمر تر څو ورځو زیات نه دی | هغه څوک غافل دی چې د راتلونکي فکر نه کوي |

**مشکل الفاظ**: عمر: ژوند، پیش اندیش: مخکې فکر کونکی.

| ترک لذات جهان باید گرفت | دامن صاحبدلان باید گرفت |
|---|---|
| باید د دنیا خوندونه پرېښودل سي | باید د زړه لرونکو لمن ونیول سي |

**مشکل الفاظ**: ترک: پرېښودل: لذات: خوندونه، دامن: لمن، صاحبدلان: پرهیزګاران.

**خلاصه**: په اول شعر کي د دريم شي او په دوهم شعر کي د څلورم شي بیان دی، یعني د خوندونو او خواهشاتو پرېښودل او د نیکانو ملګرتیا اختیارول.

| درپي لذات نفساني مباش | دوستدار عالم فاني مباش |
|---|---|
| په نفساني خواهشاتو پسي مه ځه | د فاني کېدونکي دنیا مه ملګری کیږه |

| نیست حاصل رنج دنیا بردنت | عاقبت چون مي بیاید مردنت |
|---|---|
| د دنیا په غم وړلو کي تا ته هیڅ ګټه نسته | کله چي تا ته په پای کي مړ کېدل دي |

| از بدنت چون جان روان خواهدشدن | خاک اندر استخوان خداهدشدن |
|---|---|
| کله چي ستا د بدن څخه روح وځي | د هډوکو دننه خاوره ننوزي |

**مشکل الفاظ**: استخوان:هډوکي، خاک: خاوره.

| مرترا ازدادن جان چاره نیست | رهزنت جز نفسک اماره نیست |
|---|---|
| تا ته د ځان ورکولو ماسیوا بله چاره نسته | ستا غل ستا کمزوری نفس دی |

**مشکل الفاظ**: رهزن: لاروهونکی،غل، جز: ماسیوا.

**خلاصه**: یعني کله چي مرګ یقیني دی نو د نفساني خواهشاتو پیروي مه کوه.

# در بیان سبب عافیت

د سلامتیا د سبب په بیان کې.

| مي تواند یافتن درچار چیز | عافیت راگربخواهي اي عزیز |
|---|---|
| نو ته یې په څلورو شیانو کې ترلاسه کولای سې | که چیرې سلامتیا غواړې اې ګرانه |

**مشکل الفاظ**: عافیت: امن، سلامتیا ، یافتن: ترلاسه کول.

**خلاصه**: یعنې که چیرې ته عافیت او سلامتیا غواړې نو په څلورو شیانو کې یې ترلاسه کولای سې.

| تندرستي وفراغت بعد ازان | ایمني ونعمت اندر خاندان |
|---|---|
| روغتیا او تر هغه وروسته فراغت | امن او په کورنۍ کې مال او دولت |

**مشکل الفاظ**: ایمن: بېله بیرې، امن، اندر: دننه، خاندان: کورنۍ.

**خلاصه**: یعنې دغه څلور شیان د خوشحالۍ او سلامتیا سبب دي.

| عافیت را زونشاني باشدت | چونکه بانعمت اماني باشدت |
|---|---|
| په دې سره تا ته ډېره سلامتیا تر لاسه کیږي | کله چې ته د نعمت سره امان هم ولرې |

| دیگر از دنیا نباید هیچ جست | بادل فارغ چو باشي تندرست |
|---|---|
| نور باید د دنیا څخه هیڅ ونه غوښتل سي | د فارغ زړه سره چې کله ته روغ هم یې |

| تا نیفتي اي پسر در دام نفس | برمیادرتاتواني کام نفس |
|---|---|
| تر څو د نفس په دام کې ونه لوېږې اې هلکه | څومره چې ممکن وي د نفس مقصد مه پوره کوه |

**مشکل الفاظ**: برمیادر: مه پوره کوه، کام: مقصد، مطلب، دام: جال.

**خلاصه**: یعنې څومره چې کولای سې د نفس خواهشات مه پوره کوه.

| زیرپا آور هوائي نـــفس را | کم بدوده بهرهائي نـــفس را |
|---|---|
| د نفس خواهشات تر پښو لاندي کړه | کم کړه ددغه نفس برخي |

**مشکل الفاظ:** .زیرپا: تر پښو لاندي کول، یعني نه پوره کول، بهره: برخه.

| نفس وشیطان مي برنداز زره ترا | تابیندازنــــد اندرچه تــرا |
|---|---|
| نفس او شیطان تا د لاري څخه لیري کوي | تر څو تا په څاه کي واچوي |

**مشکل الفاظ:** .چه: څاه،برنداز: اچوي.

| نفس را سرکوب ودائم خواردار | تاتواني دورش از مــردار دار |
|---|---|
| نفس مات کړه او همېشه یې ذلیله کړه | تر څو چي کولای سې د مردار څخه یې لیري کړه |

**مشکل الفاظ:** .کوب: کوټل، ماتول، مردار: مردار حیوان، ناپاکه.

| نفس بدراهر که سیرش مي کند | درگنه کردن دلیرش مي کند |
|---|---|
| څوک چي بد نفس مړوي | هغه په گناه کولو کي زړه ور کوي |

**مشکل الفاظ:** .سیر: مړول، گنه: گناه . دلیرش: زړه ور.

**خلاصه:** یعني د نفس په چاغولو سره هغه پر گناه کولو اماده کیږي .

| حلق خود را دور دار از هرمزه | تا نیفتي در بلا ودر بـــزه |
|---|---|
| خپله غاړه د هر خوند څخه لیري وساته | تر څو په مصیبت او گناه اخته نه سې |

**مشکل الفاظ:** .حلق: ستوني، غاړه، مزه: خوند، بزه: گناه.

**خلاصه:** یعني خوله د هر شي خوړلو عادي مه جوړه څکه په داسي کولو سره ته په مصیبتو او گناه اخته کیدای سې .

| زآب ونان تالب شکم را پرمساز | همچو حیوان بهرخود آخورمساز |
|---|---|
| په ډوډۍ او اوبو سره نس تر شونډو مه ډکوه | د حیوان غوندي د خوراک ځای مه جوړوه |

**مشکل الفاظ**: .آب ونان: اوبه او ډوډۍ، يعني د خوراک شيان،آخور: د حيوانانو د خوراک ځای.
**خلاصه**: يعني په ډک نس خوراک مه کوه او د حيوانانو غونډي د خوراک ځای مه جوړوه
يعني د زيات خوراک کولو تياري مه کوه.

| روزکم خورگرچه صائم نيستي | پرمخور آخر بهائم نيستي |
|---|---|
| په ورځ کي لږ خوراک کوه که څه هم روژاتي نه يې | پوره خوراک مه کوه څکه ته حيوان نه يې |

**مشکل الفاظ**: .صائم: روژتي، پر: ډک، بهائم: حيوان.

| ايکه درخوابي همه شب تا به روز | بهرگور خود چراغي بر فروز |
|---|---|
| اي هغه څوک چي توله شپه په خوب کي يې | د خپل قبر لپاره يو څراغ بل کړه |

**مشکل الفاظ**: .ايکه: اي هغه څوکه!، گور: قبر. فروز: بلول، لګول.

| خواب وخورجز پيشه انعام نيست | خفتگان رابهره از انعام نيست |
|---|---|
| خوب او خوراک ماسيوا د حيوان د بل چا کار نه دی | بيده کسانو ته د نعمت څخه هيڅ برخه نشته |

**مشکل الفاظ**: .خفتگان: بيده. پيشه: کار،

| اي پسر بسيار خواهي خفت وخيز | گرخبرداري زخود بي گفت خيز |
|---|---|
| اي هلکه! ډېر به بيده سې اوس پورته سه | که ته خبر يې نو بيله ويلو خپله پورته سه |

**خلاصه**: يعني په قبر کي به ډېر خوب وکړې اوس د خوب او غفلت وخت نه دی.

| دل درين دنيائي دون بستن خطاست | دامن از وی گرتو برچيني رواست |
|---|---|
| زړه د دنيا سره لګول خطا ده | که ته ور څخه لمن ټوله کړې نو صحيح ده |

**مشکل الفاظ**: دنيادون: سپکه دنيا، برچيني: ټوله کړې،

| از چه دل بندي بدنيائي دني | چون نه جاويد دروي بودني |
|---|---|
| د پالتو دنيا سره ولي زړه لګوې | حال دا چي ته همېشه پکښې نه اوسېږې |

**مشکل الفاظ**: دني: پالتو، هيڅ، جاويد: همېشه.

| تاكه گردد باطنت بدر منير | ظاهر خود را ميارا اي فقير |
|---|---|
| تر څو ستا باطن ځلېدونکې سپوږمۍ سي | اي فقيره! خپل ظاهر مه ښائسته كوه |

**مشكل الفاظ**: ميار: مه ښائسته كوه، بدر: سپوږمۍ، منير: ځلېدونکې.

| در هوائي اطلس و ديبا مباش | طالب هر صورت زيبا مباش |
|---|---|
| د اطلس او ديبا په خواهش كي مه كيږه | د هر ښكلى شي غوښتونكى مه كيږه |

**مشكل الفاظ**: طالب: غوښتونكى، اطلس: يو ډول ريښمينه جامه، ديبا: ريښمينه جامه.

| زندگي مي بايدت ورژنده شو | از هوا بگذرخدا رابنده شو |
|---|---|
| كه حقيقي ژوند غواړې نو په كودړي كي اوسه | تر خواهش تېر سه او د خداى ﷻ غلامه سه |

**مشكل الفاظ**: بگذر: تېر سه، منع سه، ژنده: زړه جامه، گودړى.

**خلاصه**: يعني كه چيري معنوي ژوند او همېشنى ژوند غواړې نو د نفساني خواهشاتو څخه تېر سه او فقيري اختيار كړه.

| شربتي ازنامرادي نوش كن | خرقه پشمينه را بردوش كن |
|---|---|
| د مراد نه پوره كېدو شربت وڅښه | د وړيو چينه پر اوږو كړه |

**مشكل الفاظ**: خرقه: چينه، پشمينه: وړينه، دوش: اوږه، نوش: څښل.

| پاك ساز از كينه اول سينه را | ايكه در برمي كني پشمينه را |
|---|---|
| لومړى د كينې څخه زړه پاك كړه | اې هغه څوك چي وړينه جامه پر سينه كوې |

**مشكل الفاظ**: كينه: بغض، پشمينه: وړينه،

**خلاصه**: يعني لومړى خپل باطن پاك او ښكلى كړه او بيا وروسته ښكاره جامه سمه كړه

| روبدركن جامهائي فاخرت | گرهمي خواهي نصيب از آخرت |
|---|---|
| نو ولاړ سه او خپل د فخر جامه د بدن څخه ايسته كړه | كه چيري ته د آخرت څخه برخه غواړې |

**مشکل الفاظ**: نصيب: قسمت، برخه، بدر: دباندي، فاخر: فخر کونکي.

**خلاصه**: يعني خپل فخر کوونکي جامه وکاږه تر څو د آخرت ښه جامه دي په برخه سي.

| بي تکلف باش وآرائش مجوی | ترک راحت گير وآسائش مجوی |
|---|---|
| بي تکلفه سه او په ښکلا پسي مه گرځه | آرام پرېږده او په راحت پسي مه گرځه |

| در برت گوکسوت نيکو مباش | زير پهلو جامه خوبت گومباش |
|---|---|
| که څه هم ستا په بغل کي ښه جامه نه وي | که څه هم ستا تر بازو لاندي ښه جامه نه وي |

**مشکل الفاظ**: بر: سينه، کسوت: د اغوستلو شيان، گو: که څه هم، زير: لاندي، پهلو: بازو.

| همچو صوفي درلباس صوف باش | درصفتهائي خداموصوف باش |
|---|---|
| د صوفي غوندي د وړيو په جامه کي اوسه | د خدای ﷻ په صفتونو موصوف سه |

**مشکل الفاظ**: صوفي: بزرگ، پرهيزگار،

| مرد ره را بوريا قالـــــين بود | زانکه خشتش عاقبت بالين بود |
|---|---|
| د نېک سړي لپاره بورى غالى ده | ځکه په آخر کي خښته د هغه بالښت دى |

**مشکل الفاظ**: مروره: د الله ﷻ د لاري سړی، بوريا: بورى، خشت: خښته.

| مردره را بود دنيا سودنيـست | هرگزش انديشه نابودنيـست |
|---|---|
| د نېک سړي لپاره دنيا گټوره نه ده | هيڅکله د نيستي کېدونکي په فکر کي نه وي |

**مشکل الفاظ**: نابود: نيستي، سود: گټه.

**خلاصه**: يعني د بزرگانو په نزد دنيا هيڅ هم نه ده ځکه نو هغوئ يې د نه درلودو بېره نه لري بلکه د خاتمې په انتظار وي چي د اصلي ژوند پيل وسي.

# در بیان تواضع وصحبت درویشان

د خاکسارۍ او نېکانو د ملګرتیا په بیان کې.

| گر ترا عقل ست بادانش قرین | باش درویش وبدرویشان نشین |
|---|---|
| که عقل لرې نو د هوښیارانو سره اړیکې وساته | خپله بزرگ سه او د بزرگانو سره ناسته وکړه |

**مشکل الفاظ**: قرین: نژدې، یو ځای، نشین: کښېنه،

| همنشیني جز بدرویشان مکن | تاتواني غیبت ایشان مـــکن |
|---|---|
| د بزرگانو ماسیوا د بل چا ملګرتیا مه کوه | تر څو چې کولای سې د هغوئ غیبت مه کوه |

**مشکل الفاظ**: همنشیني: ناسته ولاړه، جز: ماسیوا، درویشان: بزرگان، پرهیزګاران.

| حب درویشان کلید جنت ست | دشمن ایشان سزائي لعنت ست |
|---|---|
| د بزرگانو سره مینه کول د جنت کیلي ده | د هغه دښمن د لعنت وړ دی |

**مشکل الفاظ**: حب: مینه، کلید: کیلي، سزا: وړ.

| پوشش درویش غیر از دلق نیست | درپي کام وهوای خلق نیست |
|---|---|
| د بزرگانو جامه بیله ګودړي بل څه نه دي | د مخلوق په خواهش او مقصد پسې نه دي |

**مشکل الفاظ**: پوشش: د اغوستلو شی، دلق: زړه جامه، درپي: پسې، کام: مقصد.

| مردتانهد بفرق نفس پـــای | ره کجایابد بدرگاه خــــدای |
|---|---|
| سړی چې تر څو د نفس پر سر پښه نه کښېږدي | د الله ﷻ په دربار کې به چیرې لار پیدا کړي |

| مرده در بند قصر وباغ نیست | در دل او غیر درد وداغ نیست |
|---|---|
| پرهیزګار سړی د ماڼۍ او باغ په فکر کې نه وي | د هغه په زړه کې د درد او داغ ماسیوا بل څه نه وي |

**مشکل الفاظ**: بند: فکر، قصر: ماڼۍ،

**خلاصه**: يعني د پرهيزگار او نېک سړي په زړه کي د مانۍ او باغونو خواهش نه وي بلکه هغه په زړه کي درد، مينه او داغ وي.

| گر عمارت را برى بر آسـمان | عاقبت زير زمين گردي نـهان |
|---|---|
| که څه هم ته مانۍ آسمان ته ورسوې | په پاى کي به د مځکي لاندي ځې |

**مشکل الفاظ**: عمارت: مانۍ، نهان: پټېدل.

**خلاصه**: يعني هر څومره لوړي مانۍ چي جوړي کړې مگر بيا به هم يوه ورځ تر خاورو لاندي کېږې يعني قبر ته به ځې.

| گرچورستم شوکت وزورت بود | جائي تو چون بهرام درگورت بود |
|---|---|
| که څه هم د رستم غوندي طاقت ولرې | د بهرام غوندي ستا ځاى به هم قبر وي |

**مشکل الفاظ**: رستم: د ايران يو مشهور پهلوان، بهرام: د عراق يو پاچا. گور: قبر.

| اي پسر از آخرت غافل مباش | بامتاع اين جهان خوشدل مباش |
|---|---|
| اې هلکه! د آخرت څخه مه غافله کېږه | د دغي دنيا په سامان زړه مه ښه کوه |

**مشکل الفاظ**: متاع: سامان، خوشدل: خوشحاله.

| در بليات جهان صبار بــاش | گاه نعمت شاكر جبار بــاش |
|---|---|
| د دنيا په غمونو کي صبر کوونکى سه | د نعمت په وخت کي د الله ﷻ شکر کونکى سه |

**مشکل الفاظ**: بليات: غمونه، بلاوې، صبار: صبر کوونکى، گاه: وخت، شاکر: شکر کوونکى، جبار: قهر کوونکى، د الله ﷻ نوم.

**خلاصه**: يعني پر نعمتونو شکر او پر غمونو باندي صبر کوه.

# در بیان دلائل شقاوت

د بدبختۍ د سببونو په بیان کې.

| جاهلي وکاهلي سختي بـــود | چارچیز آثار بدبختي بـــود |
|---|---|
| ناپوهي، سستي او سختي ده | څلور شیان د بدبختۍ نښې دي |

**مشکل الفاظ**: آثار: نښې، علامې، جاهلي: ناپوهي، کاهلي: سستي.

| بخت بدرا این همه آثار شــد | بیکسي وناکسي مرچـــارشد |
|---|---|
| دا ټول شیان د بدبختۍ نښې دي | بې کسي او بد کېدل دا څلور سوه |

**مشکل الفاظ**: بیکسي: یوازې کېدل، ناکسي: بدي.

**خلاصه**: یعني دغه څلور شیان د بدبختۍ نښې دي باید ور څخه ځان وساتل سي.

| بیشک از اهل سعادت مي شود | آنکه در بند عبادت مي شــود |
|---|---|
| بېله شکه د نېکمرغانو څخه کېږي | څوک چې د عبادت په فکر کې وي |

**مشکل الفاظ**: بند: فکر، اهل سعادت: نېکمرغه.

| کي تواند کردبانفسک جــهاد | برهوائي خود قدم برکونهــاد |
|---|---|
| هغه کله د نفس سره جهاد کولای سي | چا چې د نفس پر خواهشاتو قدم کېښېنودی |

**خلاصه**: پر نفس باندې قدم اېښودل کله د خواهشاتو پرېښودو په معنی وي او کله د خواهشاتو پوره کولو په معنی وي، دلته د خواهشاتو پوره کولو معنی مراد ده، یعني چا چې خپل نفساني خواهشات پوره کول نو هغه کله د نفس سره مقاومت کولای سي.

| درقیامت باشدش زآتش گـذر | هر که سازد درجهان باخواب وخور |
|---|---|
| هغه به په قیامت کې تر اور تیرېږي | څوک چې په دنیا کې د خوب او خوراک موافقت وکړي |

**مشکل الفاظ**: سازد: موافقت وکړي، خور: خوراک، آتش: اور.

| روبگردان از مراد و آرزوئـــي | پس بدرگاه خدامي ار روئـــي |
|---|---|
| د خواهشاتو او غوښتنو څخه مخ واړوه | تر هغه وروسته د الله ﷻ دربار ته رجوع وکړه |

| کامراني سربناکامي شـــــود | مرد ره خط درنکونامي کـشد |
|---|---|
| د مطلب پوره کېدل محرومۍ ته تلل دي | د دغي لاري سړی د نېک نامه کرښي کاږي |

**مشکل الفاظ**: کامراني: مقصد تر سره کېدل، سرکشیدن: وړل، خط کشیدن: یعني پرېښودل، له منځه وړل، نکونامي: یعني د دنیا شان او شوکت.

| امرونهي حق چون داري اي ولید | پس مرودنبالـه نفس پلـــید |
|---|---|
| اې هلکه! کله چي ته د الله ﷻ امر او نهي کوې | نو په ناپاک نفس پسي مه ځه |

**مشکل الفاظ**: ولید: هلک، دنباله: شا، پسي، پلید: ناپاک، چټل.

| هر که ترک کامراني مي کند | برخلافش زندگاني مي کـــند |
|---|---|
| څوک چي مطلب تر سره کېدل پرېږدي | هغه د نفس پر خلاف ژوند کوي |

**مشکل الفاظ**: ترک کامراني: یعني د خواهشاتو پرېښودل، زندگاني: ژوند.

| امر ونهي حق زقرآن گوش دار | جاى شادي نیست دنیا هوشدار |
|---|---|
| د الله ﷻ امر او منع د قرآن څخه واوره | دنیا د خوشحالۍ ځای نه دی په هوش کي سه |

**مشکل الفاظ**: گوش دار: په غور یې واوره، شادي: خوشحالي.

**خلاصه**: یعني دنیا د خوشحالي کولو ځای نه دی بلکه د آخرت لپاره د تیاري کولو ځای د ځکه نو د قرآن کریم او امر او نواهي په غور سره واوره او عملي یې کړه.

# در بیان ریاضت

د ریاضت (دنفس پاکي) په بیان کي.

| | |
|---|---|
| گرهمي خواهي که گردي سربلند | اي پسر برخود در راحت به بند |
| که چیري ته غواړي چي د مرتبي خاوند سي | اي هلکه ! نو پر ځان د آرام دروازه بنده کړه |

**مشکل الفاظ**: سربلند: سرلوړی، بزرگ، راحت: آرام، در: دروازه،

| | |
|---|---|
| هر که بربست او در راحت تمام | بازشد بروی در دارالسلام |
| چا چي د آرام دروازه په بشپړه توګه بنده کړه | نو پر هغه د جنت دروازه خلاصه سوه |

**مشکل الفاظ**: بربستن: بندول، بازشدن: خلاصېدل، دارالسلام: د سلامتیا کور، د جنت یو نوم دی،

**خلاصه**: یعني د دنیا آرام او نعمتونه پرېښودل د اخرت د نعمتونو وړ کېدل دي ځکه نو بنده باید د څو ورځو آرام پرېږدي او د تل ژوند سمولو په هڅه کي سي.

| | |
|---|---|
| غیرحق راهر که خواهد اي پسر | کیست درعالم از وگمراه تر |
| اي هلکه! څوک د الله ﷻ څخه ماسیوا غواړي | په دنیا کي تر هغه زیات گمراه سته |

**خلاصه**: یعني د الله ﷻ څخه ماسیوا د بل شي مینه کونکی او غوښتونکی تر ټولو لوی گمراه دی ځکه د کاملینو په نزد جنت هم مقصود نه دی بلکه یوازي د الله ﷻ رضا مقصود ده.

| | |
|---|---|
| اي برادر ترک عز و جاه کن | خویش راشایسته درگاه کن |
| اي وروره! دنیوي عزت او مرتبه پرېږده | خپل ځان د الله ﷻ د دربار وړ وګرځوه. |

**مشکل الفاظ**: عز: عزت، جاه: مرتبه، خویش: خپل ځان.

**خلاصه**: یعني دنیوي عزت او هر څه پرېږده یوازي د الله ﷻ د قرب په پلټنه کي اوسه.

| مرترا برتن پرستي مي كـــند | عزوجاهت سربه پستي مي كند |
|---|---|
| تا د آرام غوښتني په لور بيايي | عزت او مرتبه تا كښته بيايي |

| اي برادر قرب ان درگاه جوی | خوارگردودهر كه باشد جاه جوی |
|---|---|
| اي وروره! د هغه دربار نژدېوالی غواړه | څوک چي مرتبه غواړي رسوا به سي |

**خلاصه**: يعني د مرتبې په غوښتلو سره د اخرت رسوايي لازمه ده ، د الله ﷻ نژدېوالی اختيار كړه كه څه هم مرتبه پاته سي.

| گوشمال نفس نادان اين بـود | نفس درترک هوامسكين بـود |
|---|---|
| د غوږ پېچلي نفس همدغه سزا وي | نفس د خواهش په پرېښودو عاجز كيږي |

**مشكل الفاظ**: مسكين: عاجز، يعني كمزوری، گوشمال: غوږ پېچل، يعني سزا وركول.

| نفسک اماره كی ساكن بـــود | چون دلت از ياد حق ايمن بود |
|---|---|
| سركښ نفس كله په قرار كي وي | كله چي ستا زړه د الله ﷻ په ياد سره په امن وي |

**مشكل الفاظ**: ايمن: بې بيري، اماره: سركښ، ساكن: قرار، ارام.

**خلاصه**: يعني كله چي زړه د الله ﷻ په ياد كي مطمئن وي نو نفس بې قراره وي.

| درجهان بالقمه قانع بـــــود | هر كه اورا تكيه بر صانع بـود |
|---|---|
| هغه په دنيا كي په يوه گوله قناعت كوي | د چا چي پر جوړونكي ذات باور وي |

**مشكل الفاظ**: تكيه: باور، صانع: جوړونكی، يعني الله ﷻ، لقمه: گوله، قانع: قناعت كوونكی، يعني پر لږ شي باندي صبر كول.

| گرنداري از خدا دريوزه كـن | اكتفا بر روزي هر روزه كـــن |
|---|---|
| كه يې نه لرې نو د خدای ﷻ څخه يې وغواړه | د هري ورځي پر روزۍ بسنه كوه |

**مشكل الفاظ**: اكتفا: بسنه، دريوزه: سوال كول، غوښتل.

# دربیان مجاهدت نفس

د نفس سره د مقابلې کولو په بیان کې.

| نفس نتوان کشت الا باسه چیز | چون بگویم یادگیرش اي عزیز |
|---|---|
| نفس نه ماتیږي مګر په درو شیانو سره | اي ګرانه! هر څه چي زه وایم هغه یاد کړه |

**مشکل الفاظ**: کشتن: وژل، عزیز: ګران، قدرمند. الا: مګر.

| خنجرخاموشي وشمشیر جوع | نیزه تنهائي وترکب همجوع |
|---|---|
| د چوپتیا خنجر او د لوږي توره | د یوازیوالي او خوب پرېښودو نیزه |

**مشکل الفاظ**: خنجر: یوه تېره آله چي د جنګ لپاره استعمالیږي، شمشیر: توره، جوع: لوږه، همجوع: خوب.

**خلاصه**: دلته د نفس خلاف څلور شیان بیان سوي دي.

| هر کرا نبود مرتب این سلاح | نفس او هر گز نیاید باصلاح |
|---|---|
| چا ته چي دغه وسله تر لاسه نه وي | د هغه نفس به هیڅکله سم نه سي |

**مشکل الفاظ**: مرتب: تر لاسه، ترتیب سوي، سلاح: وسله.

| چونکه دل بي یاد اللهت بود | دیوملعون یار وهمراهت بود |
|---|---|
| کله چي ستا زړه د الله ﷻ د یاد څخه خالي وي | نو ملعون شیطان به ستا ملګری او یار وي |

**مشکل الفاظ**: دیو: شیطان، ملعون: لعنت کړل سوی.

**خلاصه**: یعني د نفس خرابېدو وجه داده چي د نفس مخالف اسباب نه اختیارولو په وجه د الله ﷻ د یاد څخه غافل وي او دا وخت شیطان ورسره ملګری وي او ګمراه کوي یې.

| اهل دنیا را چوزر سیم آیدش | لقمهائي چرب شیرین بایدش |
|---|---|
| دنیا لرونکي ته چي سره او سپین زر تر لاسه سي | هغه ته غوړي او خوږي ګولې پکار دي |

**مشکل الفاظ**: زر وسیم: سره او سپین زر، چرب: غوړ، شیرین: خوږ.

| در عقوبت عاقبت مضطر بود | هر که او در بندسیم وزر بود |
|---|---|
| په پای کي به د عذاب څخه بې تابه وي | څوک چي د سرو او سپینو زرو په فکر کي وي |

**مشکل الفاظ**: عقوبت: سزا، مضطر: بې تابه.

**خلاصه**: یعني څوک چي د عیش او ارام په فکر کي وي هغه به په آخرت کي په سخت عذاب اخته سي او بد حال به یې وي.

| از خدا تشریف بسیارش بود | آنکه بهر اخرت کارش بود |
|---|---|
| هغه به د الله ﷻ له خوا ډېر عزت تر لاسه کړي | د چا چي کار د آخرت لپاره وي |

**مشکل الفاظ**: تشریف: بزرګي، عزت.

**خلاصه**: یعني څوک چي د آخرت لپاره بندګي او ریاضت اختیار کړي نو الله ﷻ به هغه ته عزت او مرتبه ورکړي.

| آخرت پرهیزگاران را دهند | مال دنیا خاکساران را دهند |
|---|---|
| او آخرت پرهیزګارانو ته ورکوي | د دنیا مال بې قدره خلګو ته ورکوي |

**مشکل الفاظ**: خاکسار: د خاورو والا، دغه لفظ د عاجزي لپاره استعمالیږي او دلته بې قدره خلګ مراد دي،

| غل آتش خواهد اندر گردنت | هست شیطان اي برادر دشمنت |
|---|---|
| د اور طوق ستا په غاړه کي لېدل غواړي | اې وروره! شیطان ستا دښمن دی |

**مشکل الفاظ**: غل: طوق، آتش: اور. گردن: غاړه.

**خلاصه**: یعني شیطان د انسان دښمن دی، د دنیا په مینه کي په اخته کولو سره هغه د انسان تباهي او بربادي غواړي.

| مدبري کو روبـــــدنیا آورد | بهر کی از عالم عـــقبی بود |
|---|---|
| کوم بدمرغه چي دنیا ته توجه کوي | هغه به کله د آخرت څخه برخه یوسي |

**مشکل الفاظ**: مدبر: بدمرغه، عقبی: اخرت. بهر: برخه.

**خلاصه**: یعني دنیا ته توجه کول د آخرت څخه د مخ گرځولو سبب دی.

| اي پسر بایاد حق مشغول باش | وزخلائق دور همچون غول باش |
|---|---|
| اي هلکه! د الله ﷻ په یاد کي بوخت اوسه | او د مخلوق څخه د پیري غوندي لیري اوسه |

**مشکل الفاظ**: غول: پیری، خلائق: مخلوق، دور: لیري.

**خلاصه**: یعني څرنگه چي پیریان د انسانانو څخه لیري او پټ دي همدارنگه ته هم د انسانانو څخه لیري او پټ اوسه او د الله ﷻ په یاد کي بوخت اوسه.

# در بیان فقر

د مفلسۍ او مسکینۍ په بیان کي.

| فقر خود را پیش کس پیدامکن | محنت امروز را فردا مـــکن |
|---|---|
| خپله مسکیني د چا په مخکي مه ښکاره کوه | نن د سبا ورځي غم مه کوه |

**مشکل الفاظ**: امروز: نن، فردا: سبا، محنت: کوښښ.

**خلاصه**: مطلب دا چي د خپلي مسکینۍ او مفلسۍ په ښکاره کولو سره ځان مه ذلیل کوه ځکه باور کوونکي خلک داسي وي چي خلک یې شتمن گڼي،

| مرترا آنکس که فردا جان دهد | غم مخور آخر که آب ونان دهد |
|---|---|
| څوک چي تا ته سبا ورځ ساه درکوي | غم مه کوه هغه به تا ته ډوډۍ او اوبه هم درکوي |

**خلاصه**: یعني کوم ذات چي تا ته ژوند درکوي هغه روزي هم درکوي.

| تابکی چون موربا شي دانه کش | گرتو مردي فاقه رامردانه کش |
|---|---|
| تر څو به د میږي غوندي دانې ټولوې | که نارینه یې نو د نارینه غوندي لوږه وزغمه |

**مشکل الفاظ**: تابکی: تر څو پورې، مور: میږی، فاقه لوږه.

| برتوکل گربود فیـــــــروزیت | حق دهد مانند مرغان روزیت |
|---|---|
| که پر توکل باندې کامیابي تر لاسه کړې | الله ﷻ به تا ته د مرغانو غوندي روزي درکړي |

**مشکل الفاظ**: فیروزیت: کامیابي، حق: الله ﷻ.

| از خدا شاکر بود مرد فـــقیر | گردهد قوتش لب نان فطـــیر |
|---|---|
| بزرگ سړی د الله ﷻ شکر ادا کوي | که څه هم هغه ته د پتیرې ډوډۍ ټوټه ورکړي |

**مشکل الفاظ**: قوتش: د هغه روزي، لب: څوندړه، نان فطیر: پتیره ډوډۍ، دخمیر ضد.

| خم مشو پیش تونگر همچو طاق | تانگردي جفت باهل نـــــفاق |
|---|---|
| د شتمن په مخکې د محراب غوندي مه کنبیږه | تر څو د نفاق کونکو سره یو ځای نه سې |

**مشکل الفاظ**: خم: کوږ، طاق: محراب، جفت: جوړه، یو ځای .

| مرد راه رانام وننگ از خلق نیست | نفرتش از جامهای دلق نیست |
|---|---|
| د لارې سړي ته د مخلوق فکر نه وي | هغه ته د زړو جامو څخه نفرت نه وي |

**مشکل الفاظ**: دلق: زړه جامه،

| هر کرا ذوق نکونامي بـــــود | خاص مشمارش که اوعامي بود |
|---|---|
| څوک چې د نوم او نښان شوق لري | هغه خاص سړی مه گڼه عام سړی دی |

**مشکل الفاظ**: ذوق: شوق، نکونامي: شهرت، نوم.

| گرترا دل فارغ از زینت بـــود | کی هوائي مرکب وزینت بـود |
|---|---|
| که ستا زړه د ښکلا څخه فارغ سي | تا ته به د سپرلۍ او زین خواهش کله وي |

| بعد ازان مي دان که حق رايافتي | روی دل چون از هوا برتـافتي |
| --- | --- |
| تر هغه وروسته پوه سه چي خدای دي ترلاسه کړی | کله چي تا د زړه مخ د خواهش څخه واړوی |

**خلاصه**: يعني کله چي ته خواهشات پرېږدې نو د طاعت او عبادت توفيق به ترلاسه کړې.

# در بیان حقیقت نفس اماره

د سرکښ نفس د حقيقت په بيان کي.

| ني کشد بار ونه پرد برهـوا | چون شترمرغي شناس اين نفس را |
| --- | --- |
| نه باز وړي او نه په هوا کيږي | دغه نفس د شترمرغ غوندي وګڼه |

**مشکل الفاظ**: شترمرغ: فيل مرغ، پرد: الوتل، کشد: وړل.

| ورنهي بارش بگويد طائـرم | گر بپر گوئيش بگويد اشـترم |
| --- | --- |
| که بارورباندي کښېږدې وايي مرغه يم | که ته د الوتلو ورته ووايې نو وايي اوښ يم |

**مشکل الفاظ**: اشترم: دا په اصل کي شتر استم دی يعني زه اوښ يم،

| ليک طعمش تلخ وبويش ناخوش ست | چون گياه زهر رنگش دلکش ست |
| --- | --- |
| مګر خوند يې تريخ او بوی يې بد دی | د زهرجن بوټي غوندي رنګ يې ښائسته دی |

| ليک اندر معصيت چستي کند | گر بطاعت خوانيش سستي کند |
| --- | --- |
| مګر په نافرمانی کي چالاکي کوي | که پر بندګی يې راولې نو سستي کوي |

**مشکل الفاظ**: ليک: مګر، معصيت: ګناه، نافرماني، چستي: چالاکي.

| هر چه فرمايد خلاف آن کـني | نفس را آن به که درزندان کني |
| --- | --- |
| هر څه چي وايي بايد د هغه خلاف وکړل سي | نفس بايد په بند کي بندي کړل سي |

**مشکل الفاظ**: زندان: بنديخانه.

| زانکه دشمن راپروردن خطاست | کام نفس بد بر آوردن خطاست |
|---|---|
| ځکه دښمن ساتل غلطي ده | د بد نفس مقصد پوره کول غلطي ده |

**مشکل الفاظ**: کام: مقصد، پروردن: ساتل، روزل.

| تاکه سازي رام اندر طاعتش | نیست درمانش بجزجوع وعطش |
|---|---|
| تر څو هغه په بندگۍ کي تابع کړې | د هغه علاج بېله لوږي او تندي نسته |

**مشکل الفاظ**: درمان: علاج، جوع: لوږه، عطش: تنده، رام: تابع.

| بار طاعت بردرجبارکش | چون شتر در ره درای وبارش |
|---|---|
| د بندگۍ بار د الله ﷻ تر درباره یوسه | د اوښ غوندي لاري ته راسه او بار یوسه |

**مشکل الفاظ**: ره: لار، شتر: اوښ، جبار: د الله ﷻ نوم.

| ورنه همچون سگ زبان باید کشید | بار ایزد رابجان باید کشید |
|---|---|
| کنه نو د سپي غوندي باید ژبه کش کړل سي | باید د الله ﷻ بار په خوشحالي سره یوړل سي |

**مشکل الفاظ**: بارایزد: یعني اطاعت او عبادت، سگ: سپی.

**خلاصه**: د سپي غوندي ژبه کشول: دا د ذلیل کېدو څخه کنایه ده، یعني په عبادت او بندگۍ نه کولو سره په آخرت کي شرمندگي رامنځته کیږي.

| باشد از نفرین بردانبار ها | هر که گردن مي کشد زین بارها |
|---|---|
| پر هغه به د لعنتونو امبار وي | څوک چي ددغه بار څخه سرغړونه کوي |

**مشکل الفاظ**: گردن: غاړه، نفرین: لعنت، انبار: کوټه.

**خلاصه**: یعني د بندگۍ څخه سرغړونه کوونکی به د آخرت په عذاب کي وي.

| ازگلستان حیاتش پربریخت | چون شترمرغ آنکه از بارش گریخت |
|---|---|
| هغه د خپل ژوند د باغ څخه بلگونه ورژول | څوک چي د فیل مرغ غوندي د بار څخه وتښتي |

**مشکل الفاظ**: پر: وزر مگر دلته د پانړو په معنی دی، ریختن: تویول، رژول.

| هر که بارش راتحمل مي کند | درجهان جانش تجمل مي کند |
|---|---|
| څوک چي د هغه ذات بار پورته کوي | په دنیا کي د هغه روح ښکلا مومي |

**مشکل الفاظ**: تحمل: وړل، زغم کول، تجمل: ښکلا.

**خلاصه**: یعني څوک چي د عبادت بار پر ځان یوسي نو د هغه روح به په دنیا کي ښکلا ومومي

| کرده بار امانت را قبـــــــول | از کشیدن پس نباید شدملول |
|---|---|
| کله چي تا د امانت بار قبول کړی | نو باید په وړلو سره یې غمجن نه سې |

**مشکل الفاظ**: ملول: غمجن، کشیدن: وړل.

| روز اول خود فضولي کـــرده | وان فضولي از جهولي کــــرده |
|---|---|
| په لومړی ورځ تا خپله زیاتي کړې ده | او تا هغه زیاتي په ناپوهي کي کړې ده |

**مشکل الفاظ**: روز اول: د میثاق ورځ، یعني په کومه ورځ چي د آدم علیه السلام د ملا څخه ټول انسانان را وایستل سول او دا وعده ور څخه واخیستل سوه چي (الست بربکم) او ټولو وویل: بلی، یعني ولي نه.

| جنبشي کن اي پسر غافل مباش | چون بلی گفتي به تن تنبل مباش |
|---|---|
| اي هلکه! حرکت وکړه او مه غافل کیږه | کله چي دي هو وویل نو بدن مه سست کوه |

**مشکل الفاظ**: جنبش: ښورېدل، حرکت کول، تنبل: سست، کهاله.

| هر که اندر طاعتش کسلان بود | حاصلش گمراهي وخذلان بود |
|---|---|
| څوک چي د هغه په بندګۍ کي سستي وکړي | د هغه پای به ګمراهي او رسوایي وي |

**مشکل الفاظ**: کسلان: سست، خذلان: رسوایي.

**خلاصه**: یعني په عبادت کي سستي کول د ګمراهی او د الله ﷻ د نعمتونو څخه د محرومی سبب ګرځي.

| | |
|---|---|
| وقت طاعت تیز روچون بادباش | وزهمه کارجهان آزاد بـــاش |
| د بندګی په وخت کې د هوا غونډې تیز سه | او د دنیا د ټولو کارو څخه ازاد سه |

| | |
|---|---|
| راه پرخوف ست و دزدان درکمین | رهبري برتانماني بر زمـــین |
| په لاره کې ېېره ده او غله په کمین کې دي | لاربنود بوځه تر څو پر لاره پاته نه سې |

**مشکل الفاظ**: راه: لاره یعنې آخرت، پرخوف: د ېیرې څخه ډک.

| | |
|---|---|
| منزلت ست دور وبارت بس گران | کوششي کـــن پس ممان ازدیگران |
| ستا پړاو لرې دی او بار دېر درونډ دی | کوښښ وکړه چې تر نورو پاته نه سې |

**مشکل الفاظ**: منزل: پړاو، پس: تر شا،

| | |
|---|---|
| هر که در ره از گران باران بود | هردمش از دیده چون باران بود |
| څوک چې په لاره کې درونډ بار وړي | هر وخت د هغه د سترګو څخه د باران غونډې اوبه اوریږي |

**مشکل الفاظ**: گران بار: درونډ بار، هر دمش: هر وخت،

| | |
|---|---|
| لاشه داري سبک کن بارخویش | ورنه در ره سخت بیني کار خویش |
| ته ډنګر بدن لرې نو خپل بار سپک کړه | کنه نو په لاره کې به خپل کار سخت ووینې |

**مشکل الفاظ**: لاشه: یعنې ډنګر بدن، سبک: سپک،

| | |
|---|---|
| چیست بارت جیفه دنیای دون | گز پی آن گشته خوار وزبـــون |
| ستا بار څه شي دی د دنیا مردار لاښ دی | په کوم پسې چې ته ذلیل او خوار سوی یې |

**مشکل الفاظ**: جیفه: مردار، خوار، زبون: ذلیل خوار،

## در بیان ترک خودآرائي وخودستائي

د ځان ښکلي کولو او خپلي ښېګڼي بیانولو په بیان کي.

| | |
|---|---|
| سرچه آرائي بدستار اي پسـر | تاتواني دل بدست آرای پـسر |
| اي هلکه! په لنګوټه ولي سر ښائسته کوې | تر څو چي کولای سي زړه په لاس کي کړه |

**مشکل الفاظ**: چه: ولي، دستار: لنګوټه، بدست آر: تر لاسه کړه.

| | |
|---|---|
| تانګیري ترک عز ومال وجـاه | ازهمه برسرنیائي چـــون کلاه |
| تر څو چي عزت، مال او مرتبه نه پرېږدې | د خولی غوندي د ټولو پر سر نه سې راتلای |

**مشکل الفاظ**: کلاه: خولی، عز: عزت.

**خلاصه**: یعني تر څو چي ته مال او مرتبه نه پرېږدې تر هغه وخته په مرتبه کي تر ټولو نه سې زیاتېدلای.

| | |
|---|---|
| نیست مردي خویش را آراستن | قصدجان کرد آنکه اوآراست تن |
| د خپل ځان ښائسته کول نارینتوب نه دی | چا چي بدن ښائسته کرد ځان ختمولو قصد یې وکړی |

**مشکل الفاظ**: مردي: نارینتوب، مېړانه.

| | |
|---|---|
| نیست برتن بهتر از تقوی لباس | درتکلف مرد رانبود اســـاس |
| پر بدن باندي تر تقوا غوره جامه نسته | او په تکلف سره د انسان بنیاد نه دی |

**مشکل الفاظ**: تقوی: پرهیزګاري، اساس: بنیاد.

**خلاصه**: یعني پرهیزګاري تر ټولو ښه جامه ده ځکه په هغې سره عیبونه پټیږي او حقیقي ښکلا په برخه کیږي، د کامل انسان بنیاد پر تکلف نه دی بلکه پر بې تکلفی دی.

| | |
|---|---|
| هر که او در بند آرائش بـــود | درجهان فرزند آسائش بـــود |
| څوک چي د ښکلا په فکر کي وي | هغه په دنیا کي د آرام زوی وي |

**مشکل الفاظ**: آرائش: ښکلا، سنگار، اسائش: ارام. فرزند: زوی.

| عاقبت جز نامرادي نبــودش | بهره از عيش وشادي نـبودش |
|---|---|
| د هغه پايله بېله بدمرغی بل هيڅ نه ده | هغه د حقيقي ارام او خوښی څخه برخمن نه دی |

**مشکل الفاظ**: نامرادي: محرومي، بهره: برخه، عيش: آرام.

| خودستائي پيشه شيطان بـود | هر كه خود را كم زند مردآن بود |
|---|---|
| د خپل ځان ستاينه کول د شيطان کار دی | څوک چي ځان کم پېژني هغه انسان دی |

**مشکل الفاظ**: خودستائي: د ځان ښه بيانول، پيشه: کسب، کار.

**خلاصه**: يعني د ځان صفت کول د شيطان کار دی او څوک چي خپل ځان کم پېژني هغه کامل انسان دی.

| گفت شيطان من ز آدم بهترم | تاقيامت گشت ملعون لاجـرم |
|---|---|
| شيطان وويل چي زه تر انسان ښه يم | تر قيامته پوري لعنت کړل سوی وگرځېدی |

**مشکل الفاظ**: بهترم: ښه يم، غوره يم، ملعون: لعنت کړل سوی، لاجرم: يقينا.

**خلاصه**: شيطان تر آدم عليه السلام د غوره والي دعوه وکړه ځکه نو د همېشه لپاره لعنتي سو

| از تواضع خاک مردم مي شود | نور نار از سرکشي گم مي شود |
|---|---|
| په عاجزی سره خاوره انسان کيږي | د اور رڼا په لوئي کولو سره ورکيږي |

**مشکل الفاظ**: تواضع: خاکساري، عاجزي، خاک: خاوره، نار: اور، گم: ورک.

**خلاصه**: يعني مځکي ته د پروت والي په وجه دا عزت په برخه سو چي د هغې څخه خليفة الله پيدا کړل سو او ابليس چي د اور څخه پيدا سوی دی د لويي کولو په وجه ورک کړل سو.

| رانده شد ابليس از مستکبري | گشت مقبل آدم از مستغفري |
|---|---|
| ابليس د لويي کولو په وجه وترټل سو | آدم عليه السلام په بخښنه غوښتلو نېکمرغه سو |

**مشکل الفاظ**: رانده شد: وترټل سو، مقبل: نېکمرغه، مستغفري: بخښنه غوښتل.

| شدعزيز آدم چو استغفار کرد | خوار شد شيطان چون استکبار کرد |
|---|---|
| آدم عليه السلام باعزته سو کله چي يې استغفار وکړی | شيطان ذليل سو کله چي يې لويي وکړه |

**مشکل الفاظ**: عزيز: عزتمند، استغفار: بخښنه غوښتل، خوار: ذليل، استکبار: لويي کول.

| دانه پست افتد زبردستش کند | خوشه چون سربرکشدپستش کند |
|---|---|
| دانه چي لاندي ولاړه سي هغه لوړه کري | وابنکی چي سر پورته کري کښته کوي يې |

**مشکل الفاظ**: پست: کښته، زبردست: طاقتور، لوړ، بلند: لوړ، خوشه: وابنکی،

**خلاصه**: يعني دانه په مځکه کي دننه کېدو په وجه لوړه درخته سي او وابنکی چي سرپورته کري نو باد يې لاندي ايله کوي او يا خلک يې پري کري او لاندي يې وغورځوي.

## دربيان آثار ابلهان

د بې عقلانو د نښو په بيان کي.

| چار چيز آمد نشان ابـــلهي | باتو گـــويـــم تابيابي آگـــهي |
|---|---|
| څلور شيان د بې عقلی نښي دي | تا ته يې وايم تر څو په خبر سي |

**مشکل الفاظ**: ابلهي: بې عقلي، آگهي: خبرتيا.

| عيب خود را بدنه بيند درجهان | باشد اندرجستن عيب کسان |
|---|---|
| خپل عيب په دنيا کي بد نه ګڼي | د خلګو په عيبونو پسې لګېدلی وي |

**خلاصه**: يعني خپل عيب بد نه ګڼي بلکه د نورو په عيبو پسې وي.

| تخم بخل اندر دل خودکاشتن | آنگه اميد سخاوت داشـــتن |
|---|---|
| د بخيلی تخم په خپل زړه کي کري | بيا د سخاوت اميد هم لري |

**مشکل الفاظ**: کاشتن: کرل، بخل: بخيلتوب.

| هيچ قدرش بر در معبود نيست | هر كه خلق از خُلق اوخوشنود نيست |
| --- | --- |
| د معبود په دربار كي د هغه هيڅ قدر نشته | د چا د عاتونو څخه چي خلگ راضي نه وي |

**مشكل الفاظ**: خلق: مخلوق، خُلق: عادت، اخلاق، معبود: عبادت كړل سوى يعني الله ﷻ.

**خلاصه**: يعني د كوم سړي د عادت څخه چي خلگ خوشحاله نه وي نو د الله ﷻ په نزد هم د هغه هيڅ قدر نه وي.

| كار او پيوسته بد رُوئي بــود | هر كه او را پيشه بدخوئي بود |
| --- | --- |
| د هغه كار به تل رسوايي وي | د چا چي عادت بد اخلاقي وي |

**مشكل الفاظ**: بدخوئي: بداخلاقي،بدعادت، بد روى: بد مخ.

**خلاصه**: يعني د بد اخلاقه سړي مخ تل تور وي، دلته بيا د بخيلتوب او بداخلاقى بيان دى ځكه دغه دوه صفتونه ډېر بد دي.

| مردم بد خونه از انسان بــود | خوى بد درتن بلائي جان بــود |
| --- | --- |
| په بد عادت سره سړى انسان نه وي | بد عادت په بدن كي د ځان بلا وي |

**خلاصه**: بد عادت د انسان خپل دښمن دى ځكه بد اخلاقه انسان د پرمختگ څخه بې برخي وي.

| وان بـخيلک از سگان مسلخ ست | بخل شاخي از درخت دوزخ ست |
| --- | --- |
| او هغه بخيل د مذبح د سپيانو څخه دى | بخيلي د دوږخ د درختو څخه يو ښاخ دى |

**مشكل الفاظ**: بخيلک: ډېر بخيل، مسلخ: د حيوانانو د پوستولو ځاى، سگان: سپيان.

| پشه افتاده زيرپاى پيـــــل | روى جنت راكجابيند بخـيل |
| --- | --- |
| هغه لكه غوماشه چي د فيل تر پښو لاندي وي | بخيل به كله د جنت مخ ويني |

**مشكل الفاظ**: روى: مخ، پشه: غوماشه، پاى: پښه.

| تانباشي از شمار ابـــــلهان | باش از بخل بخيلان بركــران |
| --- | --- |
| تر څو په بې عقلانو كي شمېر نه كړل سي | د بخيلانو د بخيلى څخه ځان ليري ساته |

# در بیان عافیت

د سلامتیا په بیان کې.

| از بلا تا رسته گردي اي عزیز | بازباید داشتن دست از دوچیز |
|---|---|
| اې ګرانه! که غواړې چې د غم څخه خلاص سې | باید لاس د دوو شیانو څخه وساتل سي |

**مشکل الفاظ**: رسته: خلاص، بازګشتن: منع کېدل،

| رو تودست از نفس ودنیا باز دار | تا بلاها رانباشد باتـــــو کار |
|---|---|
| ولاړ سه او نفس او دنیا څخه لاس منع کړه | تر څو د غمونو ستا سره هیڅ کار نه وي |

**خلاصه**: یعني د مال او خواهشاتو څخه ځان وساته تر څو په غمونو اخته نه سې.

| گر بحرص وآزگردي مبــــتلا | باتو رو ارد زهر سو صــــدبلا |
|---|---|
| که چیرې ته په حرص او طمع کې اخته سې | نو تا ته به د هرې خوا په سلګونو مصیبتونه راسي |

**مشکل الفاظ**: آز: طمع، مبتلا: اخته،

| آنکه نبود هیچ نقدش درمیان | هر کجاباشد بود اندر امـــان |
|---|---|
| د چا په کځونه کې چې هیڅ شی نه وي | هغه چې هر ځای وي په امان به وي |

**مشکل الفاظ**: میان: کځونه، امان: ساتنه.

| نفس ودنیا زا رها کن اي پسر | تارهي از هر بلا وهر خـــــطر |
|---|---|
| اې هلکه ! نفس او دنیا پرېږده | تر څو د هر غم او خطر څخه خوندي سي |

| اي بساکس کز براي نفس زار | دربلا افت او وگشت از غم لاغر |
|---|---|
| اې هلکه! ډېر کسان دي چې د ذلیل نفس لپاره | په غم اخته دي او غمجن سوي دي |

**مشکل الفاظ**: بسا: ډېر، زار: ذلیل، لاغر: کمزوری، ډنګر.

| امد ودر دام صیاد افتـــاد | از برای نفس مرغ نامـــراد |
|---|---|
| راغلی او د ښکاری په دام کې ولوېدی | د نفس لپاره بې برخې مرغه |

| بود ونابود جهان یکسان شمر | تادلت آرام یابد ای پـــسر |
|---|---|
| ته په دنیا کې کېدل او نه کېدل یو ډول وګڼه | اې هلکه! تر څو ستا زړه آرام تر لاسه کړي |

**مشکل الفاظ**: یکسان: یو ډول، شمر: وشمېره، وګڼه.

**خلاصه**: یعني د دنیا اسباب او مال درلودل او نه درلودل یو ډول وګڼه ، ددغه فکر څخه زړه آزاد کړه نو راحت به ومومې.

| درپی ازار هر مؤمن مـــباش | از عذاب وقهر حق ایمن مباش |
|---|---|
| د هر مؤمن په تکلیف پسې مه ځه | د الله ﷻ د قهر او عذاب څخه مه بې پروا کېږه |

| زانکه نبود جز خدا فریاد رس | دربلایاري مخواه از هیچ کس |
|---|---|
| ځکه د الله ﷻ څخه ماسیوا هیڅوک مرسته کونکی نسته | په غم کې د چا څخه مرسته مه غواړه |

**مشکل الفاظ**: یاري: مرسته، مخواه: مه غواړه، فریاد رس: فریاد اورېدونکی.

| تانباشد خصم تو در عرصه گاه | هر کرار نجانده عذرش بخواه |
|---|---|
| تر څو د محشر په میدان کې ستا دښمن نه سي | چا ته چې تا تکلیف ورکړی د هغه څخه بخښنه وغواړه |

**مشکل الفاظ**: رنجانده: تا تکلیف ورکړی دی، خصم: مخالف، دښمن، عرصه گاه: میدان یعني د حشر میدان.

**خلاصه**: یعني چا ته چې تا تکلیف رسولی دی د هغه څخه په دنیا کې بخښنه وغواړه او راضي یې کړه تر څو د قیامت په ورځ ستا مخالف نه سي.

| درقناعت مي توانش یافـــتن | گرغنا خواهد کسي از ذوالمنن |
|---|---|
| نو هغه په قناعت کې تر لاسه کولای سي | که یو څوک د الله ﷻ څخه غنا غواړي |

**مشکل الفاظ**: غنا: بې پرواهي، ذوالمنن: د احسانونو خاوند يعني الله ﷻ.

**خلاصه**: يعني اصلي غنا د زړه غنا او د حرص پرېښودل دي.

# در بیان عقل وعاقلان

د عقل او عاقلانو په بيان کې.

| | |
|---|---|
| هر کرا عقل ست ودانش اي عزيز | دور بايد بودنش از چار چیز |
| اې ګرانه! څوک چې عقل او پوهه لرې | نو بايد د څلورو شيانو څخه ليرې سي |

**خلاصه**: يعني هوښيار سړی بايد د څلورو شيانو څخه ځان وساتي.

| | |
|---|---|
| کارخود باناسزانه کند رها | مردمي نکند بجاي ناسزا |
| خپل کار دې ناوړه کس ته نه پرېږدي | په ناوړه ځای کې دې سخاوت نه کوي |

**مشکل الفاظ**: ناسزا: ناوړه، رهاکردن: پرېښودل.

**خلاصه**: يعني ناوړه کس ته دې کار نه سپاري ځکه هغه د خيانت څخه پاک نه وي. او همدارنګه د بد او فاسق سړي سره دې سخاوت نه کوي ځکه په داسي کولو سره هغه نور هم بد کيږي.

| | |
|---|---|
| عقل داري ميل بدکاري مکن | زين چون بگذشتي سبکساري مکن |
| که عقل لرې نو د بدی شوق مه کوه | کله چې تر هغه تېر سې نو سپکوالی مه کوه |

**مشکل الفاظ**: ميل: شوق، بدکاري: نافرماني.

**خلاصه**: يعني که چيري عقل لرې نو د بدی خواهش مه کوه.

| | |
|---|---|
| هر کرا از حلم دل روشن بود | در زمانه با صلاح تن بود |
| د چا زړه چې په زغم ځلانده وي | هغه به په زمانه کې د بدن سمونکی وي |

**مشکل الفاظ**: صلاح تن: د بدن سموالی، حلم: زغم.

**خلاصه**: يعني د چا زړه چې په زغم ځلانده وي د هغه ظاهري اخلاق هم ښه وي.

| تاشوي پيش از همه از روزگار | دست برنان ونمک بکشاده دار |
| --- | --- |
| ددي لپاره چي ته په زمانه کي تر ټولو مخته سي | پر ډوډۍ او مالګه باندي لاس خلاص کړه |

**مشکل الفاظ**: پیش: مخته، روزګار: زمانه، نمک: مالګه، نان: ډوډۍ.

| تاتوباشي در زمانه دادگــــر | زير دستان رانكودار اي پــسر |
| --- | --- |
| ددي لپاره چي ته په زمانه کي انصاف والا سي | اې هلکه! د عاجزانو سره ښه کوه |

**مشکل الفاظ**: دادګر: انصاف کونکی، عادل، زیردستان: تر لاس لاندي خلک.

| هر که بر پند خود آمد استوار | پند او را ديگران بند نـــدكار |
| --- | --- |
| څوک چي پر خپل نصيحت ټينګ سي | نور خلک د هغه په نصيحت عمل کوي |

**مشکل الفاظ**: استوار: ټینګ، کاربستن: عملي کول.

**خلاصه**: يعني څوک چي په خپل يا د بل چا په نصيحت عمل کوي نو نور خلک هم د هغه په نصيحت عمل کوي څکه بې عمله نصيحت اثر نه کوي.

| هر كه از گفتار خود باشد ملول | قول او رادیگران نکند قبـــول |
| --- | --- |
| څوک چي د خپلي خبري څخه بيزار وي | د هغه خبره نور خلک نه قبلوي |

**مشکل الفاظ**: ملول: بېزاره، ګفتار: وینا، خبره، دیګران: نور.

| هر چه باشد در شريعت ناپسند | دور باش از وی چوهستي هوشمند |
| --- | --- |
| کوم کار چي په شريعت کي ناخوښه وي | د هغه څخه ليري سه که هوښيار يې |

| تا صواب كاري بيني سربسر | بر مراد خود مکن کار اي پسر |
| --- | --- |
| ددي لپاره چي د خپل کار ښېګڼه ووينې | اې هلکه! پر خپل خواهش کار مه کوه |

**مشکل الفاظ**: سربسر: ټول، مراد: خواهش، صواب: صحیح.

**خلاصه**: د نفس په خواهش کار مه کوه بلکه د شريعت په رڼا کي هر کار کوه.

# در بیان رستگاري

د خلاصون په بیان کي.

| باتوگویم یادگیرش اي عــزیز | هست بیشک رستگاري درسه چیز |
| --- | --- |
| تا ته یې وایم او په یاد یې کړه اي گرانه | بېله شکه خلاصون په درو شیانو کي دی |

**خلاصه**: رستگاري: خلاصون، نجات.

| دوم آمد جستن قوت حــلال | زان یکي ترسیدن ست از ذوالــجلال |
| --- | --- |
| دوهم د حلالي روزۍ پلټنه کول دي | په هغو کي اول د الله ﷻ څخه بېره کول دي |

**مشکل الفاظ**: ترسیدن: بېرېدل، ذوالجلال: د عظمت او بزرګۍ خاوند، د الله ﷻ نوم، جستن: پلټنه کول، قوت: روزي، غذا.

**خلاصه**: یعني لومړی د خلاصون سبب د الله ﷻ څخه بېره ده چي هر مؤمن د ګناهو څخه ژغوري او دوهم د حلال رزق تر لاسه کول دي ځکه حرام رزق د ناجائز کېدو سربېره په عبادت کي سستي او په ګناهونو کي خواهش زیاتوي.

| رستگارست آنکه این خصـــلت راست | سومي رفتن بود بر راه راست |
| --- | --- |
| خلاصون یې تر لاسه کړ چا چي دغه عادت درلودی | دریم پر سیده لاره تلل |

**مشکل الفاظ**: سومي: دریم، رفتن: تلل، راست: سیده، خصلت، عادت.

**خلاصه**: یعني دریم د خلاصون سبب پر سیده لاره تلل دي، سیده لار د شریعت لار ده.

| دوست دارندت همه خلق جهان | گر تواضع پیش گیري اي جوان |
| --- | --- |
| د دنیا ټول خلګ به ستا سره دوستي کوي | که عاجزي اختیار کړې اې ځوانه |

| ورکني بیشک رود دینت از دست | سرمکن در پیش دنیا دارپست |
| --- | --- |
| که داسي وکړې نو دین به د لاسه ورکړې | د شتمنو په وړاندي سر مه کښته کوه |

**مشکل الفاظ**: پست: کښته، ورکني: که یې وکړي،

| هر که او راحرص دنیا دارشد | بیگمان از وی خدا بیزار شد |
|---|---|
| د چا سره چي د شتمنۍ حرص پیدا سو | بېله شکه د هغه څخه الله ﷻ بېزار سو |

| بهر زر مستاي دنیا دار را | تا چه خواهي کردن این مردار را |
|---|---|
| د زرو لپاره د شتمنو خلکو ستاینه مه کوه | ته به په دغه مردار باندي څه وکړې |

**مشکل الفاظ**: بهر: لپاره، مستائي: ستاینه مه کوه.

| مردگانند اغنیائي روزگار | اي پسر بامردگان صحبت مدار |
|---|---|
| د زماني شتمن خلک مړه دي | اې هلکه! د مړو سره ملګرتیا مه کوه |

**مشکل الفاظ**: اغنیاء: د غني جمع یعني شتمن، مردگان: مړه، صحبت: ملګرتیا.

**خلاصه**: یعني شتمن خلک د مړو غوندي دي او پرهیزګار خلک ژوندي دي نو ژوندي باید د مړو څخه ځان وساتي.

| مال وزر بیحد بدست آورده گیر | بعد ازان درگور حسرت برده گیر |
|---|---|
| ته وګڼه چي مال او زر دي ډېر تر لاسه کړه | دا هم فکر وکړه چي په قبر کي به افسوس کوې |

**مشکل الفاظ**: گیر: یعني فرض کړه، ګمان وکړه.

**خلاصه**: یعني د مثال په توګه تا ډېر مال او زر تر لاسه کړه مګر دا فکر هم وکړه چي قبر ته به خالي لاس ځې.

# در فضیلت ذکر

د ذکر د فضیلت په بیان کي.

| باش دائم اي پسر درياد حق | گرخبرداري زعدل و داد حق |
|---|---|
| اي هلکه! تل د الله ﷻ ذکر کوه | که د الله ﷻ په عدل او ورکړي خبر يې |

| زنده دار از ذکر صبح وشام را | درتغافل مگذر اين ايـــام را |
|---|---|
| په ذکر سره سهار او ماښام ژوندی لره | په غفلت کي دغه وختونه مه تېروه |

**مشکل الفاظ**: زنده دار: ژوندی لره، تغافل: غفلت. ایام: ورځي.

| ياد حق آمد غذا ايــن روح را | مرهم آمد اين دل مجــروح را |
|---|---|
| د الله ﷻ ياد ددغه روح غذا راغلي ده | ددغه زخمي زړه لپاره مرهم راغلي دي |

**مشکل الفاظ**: مرهم: د زخم لپاره دوا، مجروح: زخمي سوی.

**خلاصه**: يعني د الله ﷻ ذکر د روح غذا او د زخمي زړه دواء ده.

| يادحق گرمونس جانت بـــود | کي هواي کاخ وايوانت بـــود |
|---|---|
| که د الله ﷻ ياد ستا د ځان ملګری وي | نو ته به کله د بالاخانې او مانۍ خواهش وکړې |

**مشکل الفاظ**: مونس: غمخوار، کاخ: بالاخانه، ایوان: مانۍ.

| گرزماني غافل از رحمان شوی | اندران دم همدم شيطان شوی |
|---|---|
| که ته يو وخت د الله ﷻ د ذکر څخه غافل سې | نو ته په هغه وخت کي د شيطان ملګری سوې |

**مشکل الفاظ**: زماني: يو وخت، يا لږ وخت،

**خلاصه**: يعني که چيري ته يو وخت يا د لږ وخت لپاره د الله ﷻ د ذکر څخه غافل سې نو هغه وخت به شيطان ستا ملګری سي ځکه شيطان د ذکر په وجه په زړه کي وسوسه نه اچوي.

| مومنا ذكر خدا بسيار گوئي | تا بيابي در دوعالم آبروی |
|---|---|
| اې مؤمنه! د الله ﷻ ذكر ډېر كوه | ترڅو په دواړو جهانونو كې عزت ترلاسه كړې |

**مشكل الفاظ**: مومنا: اې مؤمنه، آبرو: عزت.

| ذكر را اخلاص مي بايد نخست | ذكر بي اخلاص كی باشد درست |
|---|---|
| ذكر بايد په اخلاص وكړل سي | بېله اخلاصه ذكر كول كله صحيح دی |

| ذكر برسه چيز باشد بي خلاف | تونداني اين سخن را از گزاف |
|---|---|
| بېله شكه ذكر پر درې ډوله دی | ته دا خبره پالتو مه گڼه |

**مشكل الفاظ**: گزاف: پالتو.

| عام رانبودبجز ذكر زبان | ذكر خاصان باشد از دل بيگمان |
|---|---|
| د عامو لپاره ماسيوا د ژبني ذكر نسته | د خاصو ذكر بېله شكه په زړه سره وي |

**خلاصه**: يعني د عامو خلكو ذكر يوازې په ژبه وي او زړه يې غافل وي مگر خاص خلك په زړه سره الله ﷻ يادوي كه څه هم په ژبه يې يادوي يا نه.

| ذكر خاص الخاص ذكر سربود | هر كه ذاكر نيست او خاسر بود |
|---|---|
| د خاص الخاص ذكر باطني ذكر وي | څوك چې ذكر كوونكى نه وي هغه تاواني دی |

**مشكل الفاظ**: خاص الخاص: په خاصو خلكو كې خاص كسان، خاسر: تاواني.

**خلاصه**: يعني د مقربينو ذكر لطيفه سر وي يا د زړه د باطن څخه وي. په دوهم شعر كې راغلي دي چې څوك ذكر نه كوي هغه ژوند برباد وي.

| ذكر بي تعظيم گفتن بدعت ست | واندران يک شرط ديگر حرمت ست |
|---|---|
| بې تعظيمه ذكر كول بدعت دی | او په هغه كې يو بل شرط احترام دی |

**مشكل الفاظ**: بدعت: په دين كې نوی كار كول چې په شريعت كې يې اصل نه وي.

| | |
|---|---|
| هست مر هر عضو را ذکري دګر | هفت اعضا هست ذاکري پسر |
| د هر اندام لپاره جلا ذکر دی | اې هلکه! اووه اندامونه ذکر کوونکي دي |

**مشکل الفاظ**: عضو: اندام، هفت اعضا: اوه اندامونه يعني لاس، سترګي، غوږ، پښي، ژبه، سر او زړه،

| | |
|---|---|
| ذکرچشم از خوف حق بګريستن | باز در آيات اونګريستن |
| د سترګو ذکر د الله ﷻ د ېيري څخه ژړا ده | بيا د هغه په نښو کي کتل دي |

**مشکل الفاظ**: آيات: نښي، د آيت جمع،

| | |
|---|---|
| ياري هر عاجز آمد ذکر دست | ذکرپا خويشان زيارت کردن ست |
| د هر عاجز مرسته کول د لاس ذکر دی | د پښو ذکر د خپلوانو ليدنه کول دي |

**مشکل الفاظ**: ياري: مرسته، خويشان: خپلوان.

| | |
|---|---|
| استماع قول رحمان ذکر ګوش | تاتواني روز وشب در ذکرګوش |
| د الله ﷻ د خبرو اورېدل د غوږونو ذکر دی | څومره چي کولای سې په ذکر کي بوخت اوسه |

**مشکل الفاظ**: استماع: اورېدل، رحمان: رحم کوونکی، يعني الله، ګوش: غوږ.

| | |
|---|---|
| اشتياق حق بود ذکر دلــت | کوشش تااين ذکر ګردد حاصلت |
| د الله ﷻ مينه ستا د زړه ذکر دی | کوښښ وکړه چي دغه ذکر تر لاسه کړې. |

**مشکل الفاظ**: اشتياق: شوق، يعني د يو ځای کېدو شوق.

| | |
|---|---|
| آنکه از جهل ست دائم درګناه | کی حلاوت يابد از ذکــر اله |
| څوک چي د ناپوهی څخه هميشه په ګناه کي دی | هغه به کله د الله ﷻ د ذکر څخه خوند واخلي |

**مشکل الفاظ**: جهل: ناپوهي، حلاوت: خوند،

**خلاصه**: د زړه د ذکر بيانولو وروسته يې د هغه شي بيان وکړی کوم چي د هغه خلاف او مانع

دی ، یعني گناه کوونکی د الله ﷻ د ذکر د خوند څخه برخمن کیدای نه سي .

| خواندن قرآن بود ذکر لسان | هر کرا این نیست هست از مفلسان |
|---|---|
| د قرآن کریم ویل د ژبي ذکر دی | څوک چي دغه ذکر نه کوي د مسکینانو څخه دی |

**خلاصه:** یعني د قرآن کریم تلاوت کول د ژبي ذکر دی، څوک چي دغه ذکر نه کوي هغه د آخرت مسکین دی، شیخ رحمه الله د قرآن کریم یادونه د فضیلت په وجه کړې ده کنه نو د حدیثو، فقه او نورو دیني کتابونو ویل هم د ژبي ذکر دی .

| شکر نعمتهای حق می کن مدام | تاکند حق بر تو نعمتها تمام |
|---|---|
| تل د الله ﷻ د نعمتونو شکر ادا کوه | ددې لپاره چي الله ﷻ پر تا نعمتونه پوره کړي |

**خلاصه:** یعني د الله ﷻ د نعمتونو په شکر کولو سره نعمتونه زیاتیږي ، شکر یې هم د ژبي په ذکر کي بیان کړی.

| حمد خالق بر زبان دار ای پسر | عمرتا بر بادندهي سربسر |
|---|---|
| اې هلکه! د الله ﷻ ثناء پر ژبه راوړه | د دې لپاره چي ته عمر بالکل برباد نه کړې |

**مشکل الفاظ:** حمد خالق: د الله ﷻ ستاینه، سربسر: بالکل.

**خلاصه:** یعني د الله ﷻ ذکر تل کوه څکه کوم وخت چي بېله ذکر کولو تیریږي هغه به په آخرت کي د پښیماني او افسوس سبب وي .

| لب مجنبان جز بذکر کردگار | زانکه پاکان راهمین بودست کار |
|---|---|
| د الله ﷻ د ذکر څخه ماسیوا شونډان مه ښوروه | څکه د پاکو کسانو همدغه کار دی |

**مشکل الفاظ:** لب: شونډان، مجنبان: مه ښوروه . کردگار: الله ﷻ .

**خلاصه:** یعني د الله ﷻ د ذکر څخه ماسیوا بل هیڅ مه وایه څکه دا د پاکو خلکو کار دی چي هغوئ په ذکر کولو سره د مرتبې کمال ته رسیږي .

# در بیان عمل چهار چیز

په څلورو شیانو د عمل کولو بیان.

| برهمه کس نیک باشد چار چیز | باتو گویم یادگیر اي عــــزیز |
|---|---|
| څلور شیان د ټولو لپاره غوره دي | تا ته یې ښیم په یاد یې کړه اې گرانه |

**مشکل الفاظ**: برهمه: د ټولو لپاره، عزیز: گران.

| اول آن باشد که باشي دادگر | هم زعقل خویش باشي باخبر |
|---|---|
| لومړی دا چي ته انصاف کونکی سه | همدارنگه په خپل عقل ځان خبر کړه |

**مشکل الفاظ**: دادگر: انصاف کونکی،

**خلاصه**: په عقل د ځان خبرولو مطلب دادی چي هر کار په فکر سره وکړل سي.

| باشکیبای تقرب کردن ست | حرمت مردم بجا آوردن ست |
|---|---|
| په صبر سره نژدېوالی تر لاسه کول دي | د خلگو احترام او قدر کول دي |

**مشکل الفاظ**: شکیبای: صبر، تقرب: نژدېوالی، حرمت: عزت،

# دربیان خصلت ذمیمه

د بدو عادتونو په بیان کي.

| چارچیز دیگراي نیکو سرشت | هست از جمله خلائق نیک زشت |
|---|---|
| څلور شیان نور اې نېکه! | په ټول نېک مخلوق کي ډېر بد |

**مشکل الفاظ**: نیکوسرشت: نېک ذات، ښه، نیک زشت: ډېر بد،

| زان چهار اول حسد کیني بود | زان گذشتي عجب وخود بیني بود |
|---|---|
| په هغو څلورو کي اول د دښمنی حسد دی | که تر دې تېر سوې نو فخر او ځان خوښول دي |

**مشکل الفاظ**: حسد: د یو چا د نعمت ختمېدل خوښول، کیني: کینه، یعني دښمني،

| خشم رادیگر فروناخوردن ست | خصلت چارم بخیلي کردن ست |
|---|---|
| او یو عادت د خښم نه په واک کي کول دي | څلورم عادت بخیلي ده |

**مشکل الفاظ**: خشم: غصه، فروناخوردن: نه په واک کي کول،

**خلاصه**: یعني بل بد عادت د خښم په وخت کي ځان نه په واک کي کول دي او څلورم بد عادت بخیلي کول دي.

| اي پسر کم گرد گرد این خصال | از برای آنکه زشت اند این فعال |
|---|---|
| اي هلکه! ددغو عادتونو شاوخوا مه گرځه | ځکه چي دا ټول کارونه بد دي |

| غل وغش بگذار چون زرپاک شو | پیش زانکه خاک گردي خاک شو |
|---|---|
| کینه او چټلي پرېږدي چي د زرو غوندي پاک سې | مخکي تر دي چي خاوري سې خاوري سه |

**مشکل الفاظ**: غل: کینه، غش: چټلي، خیانت،

| حرص بگذار وقناعت پیشه کن | آخر از مردن یکي اندیشه کن |
|---|---|
| حرص پرېږده او قناعت اختیار کړه | آخر د مرگ څخه یو وار بېره وکړه |

| بامحبان باش دائم همنشین | ناتواني روی اعدا را مبین |
|---|---|
| د ملگرو سره تل ناسته ولاړه کوه | تر څو چي کولای سې د دښمنانو مخ مه وینه |

**مشکل الفاظ**: محبان: ملگري، مینه کونکي، یعني الله ﷻ، مبین: مه وینه.

**خلاصه**: یعني د ملگرو سره مینه کوه چي تا ته د هغوئ څخه کټه رسیږي او د دښمن څخه بېله تاوان بل هیڅ نه رسیږي ځکه نو هغوئ ته توجه مه کوه.

# در بیان سعادت ونصیحت

د نېکمرغۍ او نصیحت په بیان کې.

| بر سعادت چار چیز آمد دلیل | شرح این هر چار بشنو اي خلیل |
|---|---|
| پر نېکمرغۍ باندي څلور شیان دلالت کوي | اې ملګرې! د څلورو تشریح واوره |

**مشکل الفاظ**: دلیل: علامه، خلیل: ملګری،

**خلاصه**: یعني څلور شیان د نېکمرغۍ نښې دي چي وروسته به بیان کړل سي.

| از سعادت هر کرا باشد نشان | باشدش تدبیرها بادوستان |
|---|---|
| چا ته چي د نېکمرغۍ نښه تر لاسه وي | د هغه تدبیرونه د ملګرو سره وي |

**خلاصه**: یعني نېکمرغه سړی په هر کار کې د ملګرو سره مشوره کوي.

| هر کرا باشد سعادت رهنمای | صبر دارد از جفای ناسزای |
|---|---|
| نېکمرغي چي د چا لاربنود سي | هغه د ناوړه کسانو پر جفا صبر کوي |

| هر کرا بخت وسعادت گشت یار | درجهان باشد بدشمن سازگار |
|---|---|
| د چا چي بخت او خوشبختي ملګرې سي | هغه به په دنیا کې د دښمن سره صلح کونکی وي |

| گرتو خود نارهوای راکشته | دان که از اهل سعادت گشته |
|---|---|
| که چیري تا د شهوت اور مړ کړ | نو پوه سه چي د خوشبختو څخه سوې |

**خلاصه**: یعني که چیري ته پر خواهشاتو واک ولرې نو پوه سې چي د خوشبختانو څخه سوې، دا څلورمه نښه ده.

| گر بود بادوستان تدبیر تو | یار باشد دولت شبگیر تو |
|---|---|
| که چیري ستا تدبیر د ملګرو سره وي | د تیري شپې دولت به ستا ملګر ی وي |

**مشکل الفاظ**: شبگیر: تېره شپه، برايي شپه، عربو به د شپې حمله وکړه او د غنيمت مالونه به يې تر لاسه کړه ځکه نو مال ته په شبگير ويل کېده.

| از سر خود هر که کاري مـي کند | بخت ودولت زو فراري مي کند |
|---|---|
| هر څوک چي کار په خپل سر کوي | د هغه څخه بخت او دولت تښتي |

**مشکل الفاظ**: از سر خود: په خپل سر، يعني بېله مشورې، فراري: تښتېدونکی.

| دشمن خود را نبـــايد زد تبر | گر تواني کشت او را با شکر |
|---|---|
| خپل دښمن بايد په تبر ونه وهل سي | که کولای سې نو هغه په بوره ووژنه |

**مشکل الفاظ**: تبر: د بوټو ماتولو آله، شکر: بوره.

**خلاصه**: يعني که چيري دښمن په صلح او نرمۍ سره په واک کي کېدای سي نو بايد د زور څخه کار نه واخيستل سي.

| ناتواني جـــــور نااهلان بکش | گرهمي خواهي که يابي عيش خوش |
|---|---|
| تر څو چي کولای سې د ناوړو ظلم يوسه | که غواړې چي ښه ژوند تر لاسه کړې |

**مشکل الفاظ**: جور: ظلم، عيش: ژوند.

**خلاصه**: يعني تر څو چي ممکن وي د ظالمانو او فاسقانو ظلم پر ځان يوسه ځکه په داسې کولو سره په دنيا کي سکون او اطمينان او په آخرت کي ثواب تر لاسه کيږي.

| چون ترا آمد مقامي ســـازگار | برنه بندي رخت زانجا زينهار |
|---|---|
| کله چي تا ته يو ښه ځای په لاس درسي | نو د هغه ځايه هيڅکله سامان مه تړه |

**مشکل الفاظ**: مقامي: يو ځای، سازگار: موافق، ښه، رخت: سامان.

**خلاصه**: يعني که چيري تا ته يو ځای مناسب ځرګند سي نو د هغه ځايه هيڅکله مه ځه.

| درنصيحت آنکه نپذيرد سخن | باچنين کس پند خود ضائع مکن |
|---|---|
| څوک چي د نصيحت خبره قبول نه کړي | په داسي سړي خپل نصيحت مه بربادوه |

| خوی بد رانیک کردن مشکل ست | جهد کردن بهر او بیحاصل ست |
| --- | --- |
| د بد عادت ښه کول مشکل دي | د هغه لپاره کوښښ کول بې ګټې دي |

| بنده را گرنیست درکاري رضا | کي تواند بازگرداند قـــضا |
| --- | --- |
| که بنده پر یو کار باندي راضي نه وي | نو هغه کله قضا رد کولای سي |

**خلاصه**: یعني که چیري بنده په یو کار کي د الله ﷻ په قضا راضي نه وي نو ځه ګټه ده ځکه قضا رد کېدای نه سي نو باید په قضا باندي راضي سي.

| هر که او استیزه با سلطان کند | کارخود را سربسر ویران کند |
| --- | --- |
| څوک چي د پاچا سره جګړه کوي | هغه خپل کار بالکل بربادوي |

| هر که او باغي شود از بادشاه | روز او چون تیره شب گرد تباه |
| --- | --- |
| څوک چي د پاچا څخه سرکښي وکړي | د هغه ورځ د تاریکي شپې غوندي بربادېږي |

**مشکل الفاظ**: باغي: سرکښ، تیره: تیاره،

# در بیان علامت مدبران

د بدبختو د نښو په بیان کي.

| چار چیز آمد نشان مدبـــري | یادگیرش گرتو روشن خاطري |
| --- | --- |
| څلور شیان د بدبختی نښې دي | یاد یې کړه که چیري ته د ځلاند زړه خاوند یې |

**مشکل الفاظ**: مدبري: بدبختي، خاطر: زړه، روشن: ځلانده.

| مدبري باشد بابله مشـــورت | پس بجاهل دادن سیم وزرت |
| --- | --- |
| د بې عقل سره مشوره کول بدبختي ده | او جاهل ته ستا سره او سپین زر ورکول هم |

**خلاصه**: یعني د بې عقل سره مشوره کول او جاهل ته مال ورکول بدبختي ده.

| هر که پند دوستان نکند قبول | درحقیقت مدبرست آن بوالفضول |
| --- | --- |
| څوک چي د دوستانو نصيحت قبول نه کړ | هغه بې عقل سړی په اصل کي بدبخت دی |

**مشکل الفاظ**: پند: نصیحت، بوالفضول: خوږژبی، هغه څوک چي خوږې خبري جوړوي،

**خلاصه**: دا د بدبختۍ دریمه نښه ده یعني هغه څوک چي د خپلوانو او خیرخواهانو نصیحت نه مني.

| هر که از دنیا نگیرد عــبرتي | هست ازان مدبر جهانرا نفرتي |
| --- | --- |
| هغه څوک چي د دنيا څخه عبرت نه اخلي | د هغه بدبخت څخه دنيا ډېر نفرت کوي |

| مشورت هر کس که با ابله کند | ديو ملعونش سبک گمره کند |
| --- | --- |
| څوک چي د بې عقل سره مشوره کوي | هغه ملعون شيطان ډېر ژر گمراه کوي |

**مشکل الفاظ**: مشورت: مشوره کول، ابله: بې عقله، ملعون: لعنت کړل سوی. سبک: ژر

| آنکه مال وزر دهد باجاهــلان | آنچنان کس کی بود از مقبلان |
| --- | --- |
| څوک چي جاهل ته مال او زر ورکړي | داسي کس به کله د خوشبختانو څخه وي |

| زرچون جاهل را همي آيد بکف | مي کند اسراف ومي سازد تلف |
| --- | --- |
| کله چي جاهل ته زر په لاس ورسي | نو بې ځايه يې مصرفوي او بربادوي يې |

| نشنود از دوست مدبر پنـدرا | از جهالت بگسلد پيــــوند را |
| --- | --- |
| بدبخته سړی د دوست نصيحت نه اوري | د ناپوهۍ څخه تعلق ماتوي |

**مشکل الفاظ**: نشنود: نه اوري، پيوند: تعلق، گسلد: ماتوي.

**خلاصه**: یعني د بدبخت سړي یوه نښه داده چي د خپلوانو او دوستانو نصیحت نه اوري او همدارنګه د ناپوهۍ څخه د خپلوی تعلق ختموي.

| عبرتي گیر از زمانه اي جوان | تا نباشي از شمار مدبـــران |
|---|---|
| عبرت واخله د زمانې څخه اې ځوانه | تر څو په بدبختانو کي ونه شمېرل سي |

| هر کرا از عقل آگاهي بـــود | نزد او ادبار گمراهي بـــود |
|---|---|
| څوک چي په عقل خبر وي | د هغه په نزد بدبختي گمراهي ده |

**خلاصه:** دا دباب خاتمه ده، یعني څوک چي عقل او شعور ولري د هغه په نزد بدبختي د گمراهۍ سبب ده ځکه د بدبختۍ د اسبابو څخه ځان ساتي.

## در بیان آنکه چهار چیز را حقیر نباید شمرد

څلور شیان باید سپک ونه گڼل سي.

| چار چیز آمد بزرگ ومـــعتبر | مي نماید خرد لیکن دز نـــظر |
|---|---|
| څلور شیان ستر او د باور وړ دي | مگر په نظر کي کوچني معلومېږي |

| زان یکي خصـــم ست ودیگر آتش ست | باز بیماري کزودل ناخوش ست |
|---|---|
| په هغو کي یو دښمن او بل اور دی | او بیا ناروغي چي په هغې سره زړه خفه کېږي |

**مشکل الفاظ:** خصم: دښمني، آتش: اور.

**خلاصه:** دلته د دښمن، اور او ناروغۍ یادونه سوې ده چي دغه شیان که څه هم په ښکاره کوچني معلومېږي مگر د خرابۍ په اعتبار لوي دي.

| چارمي دانش که آراید تـــرا | این همه تاخرد نماید تـــرا |
|---|---|
| څلورم علم او پوهه چي تا ښائسته کړي | دا ټول شیان باید ته هیڅکله سپک ونه گڼې |

**مشکل الفاظ:** دانش: پوهه، علم.

**خلاصه:** یعني څلورم شي علم او پوهه ده چي تا ته ښائست او ادب درکوي، په سپک گڼلو سره باید د هغه په تر لاسه کولو کي کوتاهي ونه کړل سي.

| از بلائي او كند روزي نفير | هر كه درخشمش عدو باشد حقير |
|---|---|
| هغه به يوه ورځ د هغه د مصيبت څخه فرياد کوي | د چا په نظر چي دښمن سپک وي |

**مشكل الفاظ:** نفير: فرياد او افسوس.

**خلاصه:** د څلورو شيانو بيانولو وروسته يې د هغو نور تينګار وکړی چي د چا په نظر کي دښمن کوچنی او سپک وي هغه به يوه ورځ د همدغه دښمن د مصيبت څخه په فرياد کي وي.

| بيني او روزی عالمي را سوخته | ذره آتش چون شد افروخته |
|---|---|
| ته به يوه ورځ وويني چي دنيا يې سوځلې ده | يوه ذره د اور چي کله ولګيږي |

| زانكه دارد علم قدر بيشمار | علم اگر اندک بود خوارش مدار |
|---|---|
| ځکه علم ډېره زياته مرتبه او قدر لري | علم که څه هم لږ وي سپک يې مه ګڼه |

| ورنه بيني عجز در بيچارگي | رنج اندک زابكن غمخوارگي |
|---|---|
| کنه نو د بې چارګۍ په وخت کي به عاجزي ووينې | د لږ ناروغۍ درملنه وکړه |

| خوف آن باشد كه برگردد مزاج | درد سر راگرنجويند كس علاج |
|---|---|
| ددې خبري ډېره ده چي روغتيا به يې خرابه سي | که يو څوک د سر د درد په درملنه پسې نه ګرځي |

| پيش ازان كز پادرآئي اي پسر | باش از قول مخالف پر حذر |
|---|---|
| مخکي تر دې چي ته عاجزه سې اې هلکه | د دښمن د خبري څخه په ډېره کي سه |

**مشكل الفاظ:** مخالف: دښمن، پرحذر: په ډېره کي، ازبادرآئي: عاجز سې.

| واى آن ساعت كه گيرد التهاب | آتش اندک توان کشتن بآب |
|---|---|
| افسوس دې هغه وخت چي لمبې پورته سي | لږ اور په اوبو سره مړ کېدای سي |

**خلاصه:** يعني لږ اور په اوبو يا بل شي سره مړ کېدای سي او که ډېر سي نو بيا به افسوس وي.

# در بیان مذمت خشم وغضب

د خښم او غصې د بدۍ په بیان کې.

| چاردیگر هم شود موجود نیز | اي پسر هر کس که دارد چارچیز |
| --- | --- |
| نو نور څلور شیان به هم موجود سي | اي هلکه! څوک چي څلور شیان ولري |

| خشم رانکند پشیماني عــلاج | عاقبت رسوائي آید از لجــاج |
| --- | --- |
| پښیماني کول د غصې علاج نه دی | په پای کي د جګړې څخه رسوایي رامنځته کیږي |

**مشکل الفاظ**: لجاج: جګړه کول،

| حاصل آید خواري از کاهل تني | بیگمان از کبر خیزد دشـمني |
| --- | --- |
| د سستۍ څخه ذلت تر لاسه کیږي | بیله شکه د کبر څخه دښمني پیدا کیږي |

**مشکل الفاظ**: کاهل تني: سستي، کهالي.

**خلاصه**: یعني په لویي کولو سره دښمني رامنځته کیږي څکه لویي کوونکی سړی ځان قوي بولي او نور خلک سپک کڼي او ظلم وربانديي کوي ، دا دریم شی سو او څلورم دا چي سستي کول په دنیوي چارو کي یا په اخروي چارو کي رسوایي پیښوي.

| بنده از شومي او رسوا شــود | چون لجوجي درمیان پیدا شود |
| --- | --- |
| بنده د هغې په سپېره والی رسوا کیږي | کله چي په منځ کي دښمني پیدا سي |

**مشکل الفاظ**: لجوجي: دښمني، جګړه، شومي: سپېره والی،

| جز پشیمانش نبود حاصــــلي | خشم خود را چونکه راندجاهلي |
| --- | --- |
| د هغه د پښیمانی ماسیوا بل هیڅ ګټه نسته | که یو جاهل خپله غصه چلوي |

**خلاصه**: یعني په ناپوهی سره غصه کول د رسوایي سبب دی.

| هرکه گشت از کبر بالاگردنش | دوستان گردند آخر دشمنش |
|---|---|
| د چا چي غاړه د لويي څخه لوړه وي | په پای کي دوستان يې هم دښمنان ګرځي |

| کاهلي را هر که سازد پیشه | آید از خواري بپايش تیشه |
|---|---|
| څوک چي سستي کول خپل عادت وګرځوي | د هغه پر پښه به د ذلت تبر راسي |

**خلاصه**: يعني څوک چي سستي کوي نو ذلت به يې په برخه سي.

| خشم خود راگر فرونخورد کسي | عاقبت بیند پشیماني بسي |
|---|---|
| څوک چي خپله غصه په واک کي نه کړي | نو په پای کي به ډېره پښيماني ويني |

| هر که او افتاده وتن پرورست | نیست آدم کمتر از گاوخرست |
|---|---|
| څوک چي کهاله او ارام خوښه وي | هغه انسان نه بلکه تر غوايي او خره بدتر دی |

**مشکل الفاظ**: افتاده: لوېدلی، يعني کهاله او سست، تن پرور: ځان ته آرام ورکونکی،

**خلاصه**: يعني سست او ارام پسنده سړی تر غوايي او خره هم بد دی.

## در بیان بي ثباتي چهار چیز وپرهیز ازان

د څلورو شيانو د بې ثباتي او د هغو څخه د ځان ساتني په بيان کي.

| چار چیز اي خواجه کم دارد بقا | گوش دارای مومن نیکو لقا |
|---|---|
| څلور شيان ډېر لږ بقا لري اي ښاغلي | اې نېک مؤمنه! هغه واوره |

**مشکل الفاظ**: خواجه: صاحب، ښاغلی، نيکو لقا: هغه چي لېدنه يې ښه وي،

| جور سلطان را بقا کمتر بود | پس عتاب اصدقا کمتر بود |
|---|---|
| د پاچا ظلم ډېره لږ بقا لري | بیا د ملګرو ملامتیا هم ډېره کمه وي |

**مشکل الفاظ**: عتاب: ملامتیا، اصدقا: ملګري، جور: ظلم.

**خلاصه**: يعني د پاچا ظلم به ډېر لږ وخت دوام ولري ځکه چي د ظالم په وړاندي خلگ را پورته کيږي او له منځه يې وړي، او همدارنگه د ملگرو ملامتيا د لږ وخت لپاره وي ځکه نو بايد په ذهن کي ونه نيول سي.

| | |
|---|---|
| ديگر آن مهري كه بيني از زنان | بي بقا چون صحبت ناجنس دان |
| بل هغه مينه چي د ښځو څخه ولېدل سي | د ناوړو د ملگرتيا غوندي يې بې بقا وگڼه |

**مشكل الفاظ**: مهر: مينه، ناجنس: هغه چي د ښو خلگو هم جنس نه وي.

**خلاصه**: يعني د ښځو مينه او د ناوړو کسانو ملگرتيا هم تر لږ وخت پوري وي.

| | |
|---|---|
| بارعيت چون كند سلطان ستم | مرورا باشد بقا در ملك كـم |
| كله چي پاچا پر اولس ظلم وكړي | په هيواد كي د هغه بقا ډېر لږ وي |

| | |
|---|---|
| گر ترا از دوستان آيد عـتاب | كم بقا باشد چو خط بر روى آب |
| كه تا ته د ملگرو څخه ملامتيا راسي | د هغه بقا لږ ده لكه پر اوبو باندي كرښه |

| | |
|---|---|
| گرچه باشد زن زماني مهربان | چون كم آيد بهره بكشايد زبان |
| كه چيري ښځه د لږ وخت لپاره مهربانه سي | مگر كله چي برخه لږ سي نو ژبه خلاصوي |

**خلاصه**: يعني كه څه هم ښځه د لږ وخت لپاره مهربانه او مينه كونكي وي مگر د نفقې يا بل شي كمېدو په وخت كي د شكايت ژبه چلوي.

| | |
|---|---|
| چون بناجنسان نشيند آدمـي | كمترك بيند از ايشان همدمي |
| كله چي سړى د ناوړو كسانو سره كښيني | نو دهغوئ څخه به ډېر كم مناسبت ويني |

| | |
|---|---|
| زاغ چون فارغ زبوى گل بـود | نفرتش از صحبت بلبل بـود |
| كله چي كارگه د گل د بوى څخه ازاد وي | نو هغه د بلبل د ملگرتيا څخه نفرت كوي |

**مشكل الفاظ**: زاغ: كارگه، صحبت: ملگرتيا.

**خلاصه:** یعني څرنګه چي کارګه د ګلِ د بوی سره د تعلق نه درلودو په وجه د بلبل څخه نفرت کوي همدارنګه فاسقان هم د ښو اخلاقو څخه د بیزاری په وجه د نیکانو څخه نفرت کوي.

| جمله را زین حال آگاهي بـود | صحبت ناجنس جانکاهي بود |
|---|---|
| ټول په دغه خبره خبر دي | د بدو ملګرتیا د ځان هلاکت دی |

| اي پسر چون باد از وی درگذر | چون ترا ناجنس آید در نــظر |
|---|---|
| اي هلکه! د باد غوندي د هغه څخه تیر سه | کله چي ته بد سری ووینې |

**خلاصه:** یعني که چیري د بد سري سره تیرېږې نو د هغه څخه ځان وساته او باید د بدو د ملګرتیا څخه ځان وساتل سي.

## در بیان انکه چهار چیز از چهار چیز کمال مي یابد

څلور شیان په څلورو شیانو پوره کیږي.

| چون شنیدي یادمي دار اي غلام | چار چیز از چار دیگر شد تمام |
|---|---|
| کله چي یې واورې نو یاد یې کړه اي هلکه | څلور شیان په نورو څلورو شیانو پوره کیږي |

| از عمل دینت همي یابد جمال | دانش مرد از خرد گیرد کمال |
|---|---|
| ستا دین په عمل سره ښیګڼه تر لاسه کوي | د سړي علم په عقل سره کمال تر لاسه کوي |

**خلاصه:** یعني یو دا چي په علم کي بشپړتیا او پوخوالی په صحیح عقل سره راځي او دوهم دا چي دین او ایمان په عمل سره ښائسته کیږي.

| نعمتت از شکر شامل مي شود | دینت از پرهیز کامل مي شود |
|---|---|
| ستا نعمت په شکر سره زیاتیږي | ستا دین په پرهیزګاری پوره کیږي |

**خلاصه:** دریم دا چي دینداري په پرهیزګاری سره پوره کیږي او څلورم دا چي په شکر ادا کولو سره نعمت زیاتیږي.

| هست دانش را کمالات از خرد | بي عمل را امل دین کس نشمرد |
|---|---|
| د عمل کمالات په عقل سره دي | بې عمله هیڅوک دیندار نه ګڼل کیږي |

| شکر نعمت را کمالي مي دهد | غافلان راګوشمالي مي دهـد |
|---|---|
| شکر ادا کول نعمت ته کمال ورکوي | او غافلانو ته سزا ورکوي |

**خلاصه**: یعني په شکر کولو سره نعمت پوره کیږي او ناشکره ته الله ﷻ سزا ورکوي.

| شکر ناکردن زوال نعمت ست | بهره شاکر کمال نعمت ست |
|---|---|
| شکر نه ادا کول د نعمت ختمېدل دي | د شکر کونکي برخه د نعمت پوره کېدل دي |

**خلاصه**: یعني شکر نه ادا کول د نعمت د ختمېدو سبب دی او شکر کونکي ته پوره نعمت په برخه کیږي.

| علم را بي عقل نتوان کاربست | پیش بي عقلان نمي باید نشست |
|---|---|
| علم بېله عقله په عمل کي نه سي راوستل کیدای | بایَد د بې عقلانو سره ناسته ونه کړل سي |

| بي خرد دانش وبال ست اي پسر | علم مـرغ وعقل بال ست اي پسر |
|---|---|
| علم بېله عقله غم دی اي هلکه | علم مرغه دي او عقل وزرونه دي |

| هر که علمي دارد ونبود بـرآن | از طریق عقل باشد بر کـران |
|---|---|
| څوک چي علم لري مګر په هغه عمل نه کوي | هغه د عقل د لاري څخه لیري دی |

**خلاصه**: یعني په علم باندي عمل نه کونکی بې عقل دی ځکه که چیري هغه عقل درلودای نو په خپل علم به یې عمل کړی وای.

# در بیان آنکه باز گردانیدن آن محال ست

د هغو شیان په بیان کي چي بېرته راګرځېدل یې ناممکن دي.

| از محالات ست باز آوردنش | چارچیز ست آنکه بعد از رفتنش |
|---|---|
| بېرته راګرځېدل د محالاتو څخه دي | څلور شیان دي چي تر تلو وروسته یې |

**مشکل الفاظ**: رفتنش: د هغو لمنځه تلل، ختمېدل، محالات: ناممکن.

| یا که تیري جست بیرون از کمان | چنان حدیثي رفت ناګه بر زبان |
|---|---|
| یا غشی د لیندی څخه دباندي ووزي | کله چي خبره ناڅاپه د خولې څخه ووزي |

**مشکل الفاظ**: حدیثي: یوه خبره، ناګه: ناڅاپه، کمان: لیندی، تیر: غشی،

**خلاصه**: یعني کله چي خبره د خولې څخه ووزي نو بېرته راګرځېدای نه سي او دوهم غشی چي کله د لیندی څخه ووزي نو بېرته راګرځېدای نه سي.

| کس نگرداند قضائي رفته را | بازچون آرد حدیث گفته را |
|---|---|
| تېره سوي قضا هیڅوک رد کولای نه سي | کړل سوي خبره ولي بېرته راوګرځول سي |

| همچنین عمرت که ضائع ساختي | بازکی گردد چوتیر انداختي |
|---|---|
| همدارنګه ستا عمر چي تا برباد کړی دی | کله چي ته غشی وولې نو هغه کله راګرځي |

**خلاصه**: یعني څرنګه چي د ویشتل سوي غشي بېرته راګرځېدل ناممکن دي همدارنګه د تېر سوي عمر اعاده هم ناممکن ده، دا څلورم شی سو.

| پس ندامتهای بسیارش بود | هر که بي اندیشه گفتارش بود |
|---|---|
| په پای کي به ډېره شرمندګي وي | د چا چي خبري بېله فکر کولو وي |

**خلاصه**: یعني بېله فکر کولو خبره کول د پښېماني سبب ګرځي.

| چو بگفتي کي توان بنهفتنش | تانگفتي مي تواني گـــفتنش |
|---|---|
| او کله چي ووایې نو هغه کله پټولای سې | کوم خبره چي تا کړې نه ده هغه کولای سې |

**مشکل الفاظ**: بنهفتن: پټول،

**خلاصه**: یعني کله چي خبره تر خولې ووزي نو بیا د هغې پټول ناممکن دي.

# در بیان غنیمت دانستن عمر

د عمر غنیمت ګڼلو په بیان کي.

| چون رود دیگر نیاید باز پـــس | عمر رامي دان غنیمت هر نفس |
|---|---|
| کله چي ولاړ سي نو بیا بېرته نه راځي | عمر هر . ګړی غنیمت وګڼه |

| هر که راضي از قضا شد بدنه کرد | هیچ کس از خُود قضا را رد نه کرد |
|---|---|
| څوک چي په قضا راضي سو بد یې ونه کړه | هیچا خپل قضا رد کړې نه ده |

**خلاصه**: په دغه شعر کي د الله ﷻ په رضا باندي د راضي کېدو بیان دی، یعني هیڅوک د الله ﷻ قضا بدلولای نه سي، څوک چي په قضا راضي سو نو هغه ښه وکړه ځکه بې ګټي پرېشانه نه سو او د ثواب ور هم سو.

| مهرمي باید نهادن بر زبـــان | هر که مي خواهد که ماند درامان |
|---|---|
| هغه باید پر ژبه مهر ولګوي | که څوک غواړي چي په امان کي وي |

| چون رود پشیش نخواهي دید نیز | مي سـزد گر عمر را داري عزیز |
|---|---|
| کله چي ولاړ سي نو بیا به یې ونه وینې | مناسب ده چي ته د عمر قدر وکړې |

**خلاصه**: یعني د عمر قدر کول مناسب دي ځکه کله چي ولاړ سي نو بیا راګرځېدل یې ممکن نه دي.

# در بیان خاموشي وسخاوت

د چوپتیا او سخاوت په بیان کي.

| یادگیر این نکته از من اي عزیز | حاصل آید چار چیز از چار چیز |
| --- | --- |
| په یاد یې کړه دغه نکته زما څخه اي ګرانه | تر لاسه کیږي څلور شیان د څلورو شیانو څخه |

| .گردد ایمن نبودش انـــدیشه | خامشي را هر که سازد پیشه |
| --- | --- |
| هغه په امن دی او هیڅ بیره نه لري | څوک چي چوپتیا خپل عادت وګرځوي |

**خلاصه**: : دا لومړی شی سو، یعني په چوپتیا سره امان تر لاسه کیږي.

| گشت ایمـن هر که نیکي کرد فاش | گر سلامت بایدت خاموش باش |
| --- | --- |
| چا چي نیکي خپره کړه هغه بې بیري سو | که سلامتیا غواړې نو چپ سه |

**مشکل الفاظ**: فاش کردن: عامول، ایمن: په امن کي،

**خلاصه**: یعني که چیري د غم او آفت څخه خلاصون غواړې نو پټه خوله اوسه، دا د لومړي شي سره اړوند بیان دی او دوهم شی وروسته بیانوي چي چا نیکي خپره کړه هغه په دواړو جهانونو کي په امن کي سو، یعني امن د نیکی په خپرولو سره تر لاسه کیږي.

| شکر نعمت رادهد افزون تري | از سخاوت مرد یابد ســروري |
| --- | --- |
| شکر کول نعمت ته زیاتوب ورکوي | په سخاوت سره انسان سرداري تر لاسه کیږئ |

**مشکل الفاظ**: سروري: سرداري، بزرګي، افزون تري: ډیر زیاتبدل،

**خلاصه**: یعني په سخاوت سره بزرګي تر لاسه کیږي، دا دریم شی دی، په دوهم شعر کي وایي چي په شکر کولو سره نعمت زیاتیږي او دا څلورم شی سو.

| از سلامت کسوتي بردوش کرد | هر که او ساکت شد وخاموشي کرد |
| --- | --- |
| د سلامتیا یوه جامه یې پر اوږو کړه | څوک چي پټه خوله سو او چوپتیا یې وکړه |

| | |
|---|---|
| گرهمي خواهي كه باشي درامان | رونكوئي كن تو باخلق جـهان |
| كه چيري ته غواړې چي په امان سې | ولاړ سه او د دنيا د مخلوق سره نيكي وكړه |

**خلاصه**: يعني په نيكي كولو سره امان تر لاسه كيږي.

| | |
|---|---|
| هر كرا عادت شود جود كـرم | درميان خلق گردد مـــحترم |
| څوك چي د سخاوت او وركړې عادت وي | هغه به د مخلوق په منځ كي باعزته وي |

| | |
|---|---|
| هر كه كارنيک يابد مي كــند | آن همه كه ميكند باخود مي كند |
| څوک چي ښه يا بد كار كوي | پوه سه چي هغه د ځان لپاره كوي |

**خلاصه**: يعني كه څوک ښه كار كوي نو د خپل ځان لپاره يې كوي او كه بد كار كوي نو هم يې د ځان لپاره كوي، تاوان او گټه به يې بېرته ځان ته راجع وي.

| | |
|---|---|
| اي برادر بنده معبود بـــاش | تاتواني باسخا وجــــود باش |
| اې وروره! د معبود غلام سه | تر څو چي كولاى سې سخاوت او وركړه كوه |

**خلاصه**: يعني د الله ﷻ غلام سه او د خلگو سره د سخاوت چلند كوه.

| | |
|---|---|
| باش از بخل بخيلان پر حــذر | تا نسوزد مر ترا نــــار سقر |
| د بخيلانو د بخيلى څخه په بېره كي سه | تر څو تا د دوږخ اور ونه سوځي |

**مشكل الفاظ**: پرحذر: په بېره كي، سقر: دوږخ.

**خلاصه**: يعني د بخيلانو غوندي بخل مه كوه ددې لپاره چي د دوږخ اور دي ونه سوځي ځكه د بخل په وجه زيات وختونه په واجبو حقونو كي كوتاهي كيږي چي ثمره يې دوږخ دى.

# در بیان چیزي که خواري آرد

د هغو شیانو په بیان کي چي خواري راولي.

| نشنود این نکته جز اهل تمیز | چار چیزت بردهد از چار چیز |
|---|---|
| نه اوري دغه نکته مګر هوښیاران | څلور شیان د څلورو شیانو څخه مخکي وي |

**مشکل الفاظ:** بردهد: مخته راځي، جز: ماسیوا، اهل تمیز، عاقل.

**خلاصه:** یعني څلور شیان د ثمرې په توګه تر څلورو شیانو مخکي راځي.

| مي بیند او چار دگر بي اختیار | هر که زوصادر شود این چارکار |
|---|---|
| هغه به څلور شیان بي اختیارهویني | د چا څخه چي دغه څلور کارونه صادر سي |

| ماند تنها هر که استخفاف کرد | چون سوال آوردگردد خوارمرد |
|---|---|
| چا چي حقارت وکړی هغه یوازي سو | کله چي سوال راسي نو سړی ذلیل کیږي |

**مشکل الفاظ:** استخفاف: سپکوالی،

**خلاصه:** یعني چا چي فقر او سوال وکړی هغه ذلیل سو، ځکه د خلګو په وړاندي ذلیل کېدل د سوال لازمي نتیجه ده او چا چي په تکبر سره خلګ سپک وګڼل هغه به په پای کي یوازي پاته سي ځکه خلګ د لویي کونکي څخه ځان لیري کوي، دلته په څلورو شیانو کي دوه بیان سول یو د سوال په وجه ذلت او بل د سپکوالي په وجه یوازیوالي راتلل.

| عاقبت روزي پشیماني خورد | هر که در پایان کاري ننگرد |
|---|---|
| آخر به هغه یوه ورځ پښیماني ویني | څوک چي د یو کار پای ته فکر نه کوي |

**خلاصه:** یعني څوک چي د کار انجام ته پام نه کوي نو پښیمانه به سي، دا دریم شی دی.

| بردلش آخر نشیند بــــارها | هر که نکند احتـــیاط کارها |
|---|---|
| په پای کي به د هغه پر زړه د پر بارونه ولوېږي | څوک چي په کارو کي احتیاط نه کوي |

| هر که گشت از خوی بدناسازگار | دوستان بیشک کند از وی فرار |
|---|---|
| څوک چي د بدعادت په وجه خراب سي | بيله شکه ملګري د هغه څخه تېښته کوي |

**مشکل الفاظ:** ناسازګار: نامناسب.

**خلاصه:** يعني څوک چي د بدو عادتونو په وجه د خلګو د طبيعت سره موافقت نه کوي نو ملګري هم د هغه څخه تېښته کوي، دا ځلورم شی سو.

## در بیان آنچه آدمي را شکست آرد

د هغو شیانو په بیان کي چي انسان ته ماته ورکوي.

| آدمي را چار چیز آرد شکست | باتو گویم گوش دار ای حق پرست |
|---|---|
| څلور شیان سړي ته ماته ورکوي | تا ته يې وایم او ته يې واوره اې د حق ملګريه |
| دشمن بسیار دام بي شمار | جرم بیحد وعیال پر قطار |
| ډېر دښمنان او بې شمېره پور | ډېري ګناوي او قطارونه اولاد |

**مشکل الفاظ:** دام: پور، عیال: کورنۍ، جرم: ګناه، پرقطار: يعني ډېر.

**خلاصه:** يعني د ډېر دښمن تکلیفونه او د زیات پور ادا کولو فکر او د ډېرو ګناهو څخه د زړه تنګي او د کورنۍ ساتنه د انسان لپاره سخت غم وي.

| وای مسکیني که غرق دام شد | هردمش از غصه خون آشام شد |
|---|---|
| افسوس پر هغه مسکین چي په پور کي غرق وي | هر ګړی د هغه د غم څخه وینه څښونکی وي |

**مشکل الفاظ:** وای: افسوس، خون: وینه، آشام، څښونکی،

| هر کرا بسیار باشد دشمنش | خیره گردد هر دوچشم روشنش |
|---|---|
| د چا چي دښمنان ډېر وي | د هغه ځلانده سترګي تاريکي کېږي |

| هر کرا اطفال بسیارش بـــود | در زمـــــانه زاري کارش بود |
|---|---|
| د چا چي کوچنیان زیات وي | په زمانه کي د هغه کار برباد وي |

**خلاصه**: یعني د چا چي بچیان ډېر وي هغه به په بد حال کي وي.

## در صفت زنان وصبیان

د ښځو او کوچنیانو په بیان کي.

| چارچیز ست از خطاها اي پسر | گوش دارش باتوگویم سربسر |
|---|---|
| څلور شیان د غلطیو څخه دي اي هلکه | تا ته هر څه وایم او ته یې واوره |

| اول از زن داشتن چشم وفـــا | ساده دل رابس خطاباشد خطا |
|---|---|
| اول د ښځي څخه د وفا امید درلودل | د ساده زړه لپاره غلطي او غلطي ده |

**خلاصه**: یعني د ښځي څخه د وفا امید درلودل د ساده خلګو لپاره لویه غلطي ده چي په پای کي پښېمانه کیږي.

| ایمني زابله خطای دیگر ست | صحبت صبیان ازینها بدتر ست |
|---|---|
| د بې عقلانو څخه په امن کېدل بله غلطي ده | د کوچنیانو تعلق تر ټولو بد تر دی |

**مشکل الفاظ**: یعني د بې عقل د بې عقلۍ څخه بې بیري کېدل غلطي ده او دریم شی د کوچنیانو سره ناسته ولاړه تر ټولو لویه او خطرناکه غلطي ده ځکه د هغوئ سره د ښځو او بې عقلانو غوندي عقل هم نه وي نو په لوی تاوان کي د لوېدو خطره وي.

| چارمي از مکر دشمن ایـــمني | کي کند دشمن بغیر از دشمني |
|---|---|
| څلورم د دښمن د چم څخه بې فکره کېدل | دښمن ماسیوا د دښمنۍ نور څه کوي |

**خلاصه** : څلورم شی د دښمن څخه بې فکره کېدل دي ځکه دښمن بېله دښمنۍ بل هیڅ نه کوي.

## در بيان عطاهائي حق

د الله ﷻ د انعامونو په بيان کي.

| چار چيز ست از عطاهائي كريم | باتوگويم يادگيرش اي سليم |
|---|---|
| څلور شيان د الله ﷻ د انعامونو څخه دي | تا ته يې وايم په ياد يې کړه اې سليمه |

**خلاصه**: يعني څلور شيان د الله ﷻ د انعامونو څخه دي، چا ته چي تر لاسه سي نو دېر احسان ورباندې سوى دى.

| فرض حق اول بجا آوردن ست | والدين از خويش راضي كردن ست |
|---|---|
| لومړى د الله ﷻ فرض ادا كول دي | دوهم مور او پلار د ځان څخه راضي كول دي |

| حكم ديگر چيست با شيطان جهاد | چارمي نيكي به خلق نامـراد |
|---|---|
| او يو بل حکم څه شي دى د شيطان سره جهاد | څلورم د بې برخي مخلوق سره نيكي كول |

**خلاصه**: دريم شى د شيطان مخالفت كول او څلورم د اړو كسانو مرسته كول دي.

## در بيان آنكه عمر زياده مي كند

د هغو شيانو په بيان كي چي عمر زياتوي.

| مي فزايد عمر مرد از چار چيز | اين نصيحت بشنو اي جان عزيز |
|---|---|
| څلور شيان د انسان عمر زياتوي | واوره دغه نصيحت اې گرانه |

**مشكل الفاظ**: مي فزايد: زياتوي، عزيز: گران.

**خلاصه**: د عمر زياتېدو څخه په عمر كي بركت كېدل مراد دي او حقيقي زياتوب مراد نه دى. د ځينو علماوو په نزد د عمر زياتوب او كمښت د ځينو اسبابو سره تعلق لري نو هغه وخت به د تقدير معلق خبره وي نه د مبرم.

| وانګهي ديدن جمال ماه وش | اول آوردن بگوش اواز خـوش |
|---|---|
| او بل د سپوږمۍ غوندي مخ لېدل | لومړی د ښه ږغ غوږو ته راتلل |

**مشکل الفاظ**: وانګهي: او هغه وخت، ماه وش: د سپوږمۍ غوندي مخ .

**خلاصه**: يعني يو دا چي ښه آواز واوري او بل د ښکلي محبوب لېدل، دا خبره بايد په ذهن کي وي چي پرديو ته کتل حرام دي .

| مي فزايد عمر مـــردم را ازان | سوم آمد ايمني بر مال وجـان |
|---|---|
| په دې سره د انسان عمر زياتيږي | دريم پر مال او ځان خوندي کېدل |

| در بقا افزونيش حاصل بـــود | آنکه کارش بر مراد دل بـــود |
|---|---|
| د هغه ژوند ته زياتوب په برخه کيږي | د چا چي کار د زړه مطابق وسي |

**مشکل الفاظ**: برمراد: د مقصد مطابق، افزوني: زياتوب، حيات: ژوند .

**خلاصه**: څلورم شی دا دی چي کار يې د مقصد سره سم سرته ورسيږي .

# در بيان آنکه عمر رابکاهد

د هغو شيانو په بيان کي چي عمر کموي.

| ياد دارش چون شنيدي اي عزيز | عمر مردم را بکاهد پنج چيـز |
|---|---|
| ياد يې کړه کله چي يې واورې اې ګرانه | عمر د انسان کموي پنځه شيان |

**مشکل الفاظ**: بکاهد: کموي، عزيز: ګران.

| پس غريبي وانګهي رنـــج دراز | شد يکي زان پنج در پيري نياز |
|---|---|
| بيا مسافري او همدارنګه اوږده ناروغي ده | په هغو کي يو د بوداتوب محتاجي ده |

**مشکل الفاظ**: پيري: بوداتوب، نياز: محتاجي، غريبي: مسافري، رنج: ناروغي. دراز: اوږد

**خلاصه**: يعني په بوداتوب کي محتاجي ، مسافري او اوږده ناروغي د انسان عمر کموي.

| | |
|---|---|
| هر که او بر مرده اندازد نظر | عمر او بي شک بکاهد اي پسر |
| څوک چي مړي ته وګوري | د هغه عمر بېله شکه کمېږي اې هلکه |

**خلاصه**: يعني څوک چي د مړي لوڅ بدن ته ګوري ځکه په هغه کي يو ډول بېره وي چي اثر يې په زړه کي کېږي.

| | |
|---|---|
| پنجم آمد ترس وبيم از دشمنان | عمر را اينها همي دارد زيان |
| پنځم شی د دښمن څخه خوف او بېره | د عمر لپاره دغه شيان تاواني دي |
| هر که اواز دشمنان ترسان بود | کار او هر لحظه ديگر سان بود |
| څوک چي د دښمنانو څخه په بېره کي وي | د هغه کار هر ګړی بل ډول وي |
| از خدا ترس ومترس از دشمنان | کزهمه دارد خدايت درامان |
| د الله ﷻ څخه وبېرېږه او د دښمنانو څخه مه بېرېږه | چي الله ﷻ به تا د ټولو څخه په امان کړي |

## در بيان باعث زوال سلطنت

د پاچاهۍ د زوال د سبب په بيان کي.

| | |
|---|---|
| چار چيز آمد فساد پادشـــاه | باتو مي گويم ولي دارش نگاه |
| څلور شيان د پاچاهۍ بربادي راولي | تا ته يې وايم مګر ته يې په نظر کي ولره |

**مشکل الفاظ**: فساد: خرابي،

| | |
|---|---|
| اول اندر مملکت جور امـــير | ديگر آن غفلت که باشد از وزير |
| لومړی په هيواد کي د والي ظلم | دوهم هغه سستي چي د وزير څخه وسي |

**خلاصه**: يعني يو دا چي د اميرانو له خوا پر اولس ظلم کېږي او دوهم دا چي د هيواد وزير په خپلو کارو کي سستي کوي.

| رنج شه باشد خیانت در دبیر | بدبود گر قوتي یابد اسـیر |
|---|---|
| د منشي خیانت د پاچا خفگان گرځي | بده به وي که چیري بندي طاقت تر لاسه کړي |

**مشکل الفاظ**: دبیر: منشي، اسیر: بندي،

**خلاصه**: یعني دریم شی د منشي خیانت کول او څلورم د بندیانو طاقت تر لاسه کول دي.

| چون کند در ملک شه میري ستم | پادشه رازین سبب باشد الـم |
|---|---|
| کله چي د پاچا په هیواد کي امیر ظلم وکړي | پاچا ته د هغه په سبب تکلیف رسیږي |

**مشکل الفاظ**: میر: امیر، الم: غم، تکلیف،

| چون بود غافل وزیر بي خبـر | ملک شه از وی بود زیر وزبـر |
|---|---|
| کله چي بي خبره وزیر غافل وي | د هغه په وجه د پاچا هیواد برباديږي |

| گر خلل درکاتب دیوان بـود | عاقبت رنج دل سلطان بـود |
|---|---|
| که د شاهي دفتر په منشي کي خنډ وي | نو په پای کي د پاچا زړه ته غم رسیږي |

**مشکل الفاظ**: خلل: خنډ، کاتب: منشي، لیکوال، دیوان: دفتر.

| گر اسیران را شود قوت پدید | در ولایت فتنها گردد جـدید |
|---|---|
| که چیري بندیان قوت تر لاسه کړي | نو په ولایت کي به نوي فتنې خپرې سي |

| چون صلاحت در وجود شه بود | دست میران از ستم کوته بود |
|---|---|
| کله چي د پاچا په وجود کي ورتیا وي | د امیرانو لاس به د ظلم څخه لنډ وي |

| گرنباشد واقف ودانا وزیـر | بادشه را زود بود رنج کـثیر |
|---|---|
| که چیري وزیر باخبر او هوښیار نه وي | پاچا ته به د هغه څخه ډېره پرېشاني ورسیږي |

**خلاصه**: یعني که وزیر هوښیار او باخبر نه وي نو پاچا ته به ډېر تکلیف دده څخه ورسیږي.

| ملک ویران گردد ازهر نابکار | گر ندارد شه سیاست را بکار |
| --- | --- |
| نو هیواد به د هر ناوړه کس په وجه برباد سي | که چیري پاچا د سیاست څخه کار نه واخلي |

**خلاصه**: یعني که چیري پاچا پر اولس باندي سیاست ونه کړي نو د ناوړو او بدو کسانو په وجه به هیواد برباد سي.

## در بیان آنکه آبرو ریزد

د هغو شیانو په بیان کي چي عزت کموي.

| تا نه ریزد آبرویت در نــــظر | دور باش از پنج خصلت اي پسر |
| --- | --- |
| ددې لپاره چي ستا عزت کم نه سي د خلکو په نظر کي | لیري اوسه د پنځو عادتونو څخه اي هلکه |

**خلاصه**: یعني څلور عادتونه داسي دي چي د خلکو په وړاندي ستا عزت کموي ځکه نو باید ور څخه ځان وساتل سي.

| زانکه گردي از دروغت بي فروغ | اولًا کم گوی بامـــــردم دروغ |
| --- | --- |
| ځکه په درواغو سره ته بې قدره کیږې | لومړی خلکو ته درواغ مه وایه |

**مشکل الفاظ**: بي فروغ: بې قدره، بې عزته، کم: مه.

| آبروئي خود بریزد بیگــــــمان | هر که استیزه کند بامــهتران |
| --- | --- |
| بېله شکه هغه خپل عزت کموي | څوک چي د مشرانو سره جګړه کوي |

**مشکل الفاظ**: استیزه: جګړه، مهتران: مشران،

**خلاصه**: یعني څوک چي د مشرانو سرهٔ جګړه کوي نو هغه خپل عزت د لاسه ورکوي، دا دوهم شی سو.

| گر بریزد آبرو نبود عــــجب | پیش مردم هر کرا نبود ادب |
| --- | --- |
| که د هغه عزت ولویږي نو هیڅ تعجب نه دی | څوک چي د خلکو په مخکي ادب نه لري |

| | |
|---|---|
| از سبکساران مباش اي نیکخوی | کز سبکساري بریزد آبروی |
| د سپکو کسانو څخه مه کېږه اي نیکه | ځکه په سپکوالي سره عزت له منځه ځي |

**مشکل الفاظ**: سبکسار: سپک،

| | |
|---|---|
| اي پسر بامهتران کمتر ستیز | و زحماقت آبروئي خود مریز |
| اي هلکه! د مشرانو سره جګړه مه کوه | او په بې عقلۍ سره خپل عزت مه کموه |

| | |
|---|---|
| گر بعالم آبرومي بایدت | دائما خلق نکوی بایدت |
| که په دنیا کې ته عزت غواړې | نو ته باید تل ښه اخلاق ولرې |

| | |
|---|---|
| هر که آهنگ سبکساري کند | ز آبروی خویش بیزاري کند |
| څوک چې د سپکوالي قصد وکړي | هغه د خپل عزت څخه نفرت کوي |

**مشکل الفاظ**: آهنگ: قصد، سبکساري: سپکوالی، بیزاري: نفرت.

| | |
|---|---|
| جز حدیث راست بامردم مگوی | تانگردد آبرویت آب جوی |
| خلکو ته ماسیوا د رښتیا خبري بل څه مه وایه | تر څو ستا عزت د ویالې اوبه نه سي |

**مشکل الفاظ**: جز: ماسیوا، حدیث: خبري، راست: رښتیا، جوی: ویاله.

| | |
|---|---|
| از خلاف و از خیانت باش دور | تا بود پیوسته در روی تو نور |
| د وعدې خلافۍ او خیانت څخه لیرې اوسه | تر څو تل ستا په مخ کې نور وي |

| | |
|---|---|
| گرهمي خواهي که گویندت نکو | اي برادر هیچ کس رابدمگو |
| که ته غواړې چې خلک تا ته ښه ووايي | نو اې وروره! هیچا ته بد مه وایه |

**مشکل الفاظ**: مصنف رحمه الله د پنځو شیانو د بیانولو وروسته د هغو اړوند د نورو ځینو شیانو بیان وکړی.

| تا نباشي درجهان اند وه گين | از حسد در روزگار کس مبين |
|---|---|
| ددې لپاره چې ته په دنیا کې غمجن نه سې | نو هیچا ته په زمانه کې د حسد په نظر مه گوره |

**مشکل الفاظ**: اندوه گين: غمجن، روزگار: زمانه، مبين: مه گوره.

**خلاصه**: یعني د هیچا نعمت ته د حسد په نظر مه گوره ځکه په داسې کولو سره ځان ته خفگان رسیږي.

## در بیان آنکه آبرو بیفزاید

د هغو شیانو په بیان کې چې عزت زیاتوي.

| مي فزايد آبرو از پنج چيز | باتوگويم بشنو اي اهل تميز |
|---|---|
| زیاتیږي عزت د پنځو شیانو په وجه | تا ته یې وایم ، واوره اې د عقل خاونده |

**خلاصه**: یعني د پنځو شیانو په وجه عزت زیاتیږي ځکه نو هغه باید غوره کړل سي.

| در سخاوت کوش گرداري غنا | تا فزايد آبرويت از سخا |
|---|---|
| په سخاوت کې کوښښ کوه که توان لرې | تر څو په سخاوت سره ستا عزت زیات سي |

**خلاصه**: یعني لومړی شی دادی چې په سخاوت سره د انسان عزت زیاتیږي.

| بردباري و وفاداري گزين | تاكه آب روئي افزايد ازين |
|---|---|
| زغم او وفاداري اختیار کړه | ددې لپاره چې په هغه سره ستا عزت زیات سي |

| هر که او بر خلق بخشايد همي | بي شك اب روئي افزايد همي |
|---|---|
| څوک چې پر مخلوق سخاوت کوي | بیله شکه د هغه عزت زیاتیږي |

| چون بكار خويش حاضر بوده | ابروئي خويش را افزوده |
|---|---|
| کله چې ته پر خپل کار حاضر یې | نو خپل عزت دې زیات کړې |

**خلاصه**: يعني كه چيري ته خپل كار ته پخپله حاضر سې او خپله يې وكړې نو په داسي كولو سره ستا عزت هم زياتيږي او كار به هم په ښه توګه سرته ورسيږي.

| و ز بخيلي بي خرد ملعون شود | از سخاوت آبرو افزون شود |
|---|---|
| او په بخيلي سره بې عقل لعنتي كيږي | په سخاوت سره عزت زياتيږي |

**مشكل الفاظ**: بي خرد: بې عقل، ملعون: لعنت كړل سوى،

**خلاصه**: يعني په سخاوت او وركړي عزت زياتيږي او په بخيلتوب سره انسان د لعنت وړ ګرځي.

| آبروئي او در افزائش بود | هر كرا بر خلق بخشائش بود |
|---|---|
| د هغه عزت به زياتيږي | څوک چي پر مخلوق مهرباني كوي |

| تا بروئي خويش بيني صد ضيا | باش دائم بردبار و باوفا |
|---|---|
| ددې لپاره چي په خپل مخ كي سل ځلاوي ووينې | تل زغم لرونكى او وفادار اوسه |

**مشكل الفاظ**: بروى خويش: په خپل مخ كي، صدضياء: سل ځلاوي يعني ډېره ځلا.

| سر خود بادوستان كمتر رسان | تابماند رازت از دشمن نهان |
|---|---|
| نو خپل راز دوستانو ته مه رسوه | ددې لپاره چي ستا راز د دښمن څخه پټ وي |

**خلاصه**: يعني كه غواړې چي ستا راز د دښمنانو څخه پټ سي نو بايد دوستانو ته هم خپل راز ونه وايې.

| انچه خود ننهاده باشي بر مدار | تانگردي پيش مردم شرمسار |
|---|---|
| نو كوم شى چي تا خپله ايښى نه وي هغه مه پورته كوه | ددې لپاره چي د خلګو په مخكي شرمنده نه سې |

**مشكل الفاظ**: برمدار: مه يې پورته كوه، شرمسار: شرمنده.

**خلاصه**: مطلب دا چي د هر چا لاس ته د حرص په سترګه مه ګوره.

| ای برادر پرده مردم مــدر | تاندرد پرده ات شخصي دگـر |
|---|---|
| اې وروره! د خلګو پرده مه لوڅوه | ددې لپاره چې بل څوک ستا پرده لوڅه نه کړي |

**خلاصه**: يعني بل څوک مه رسوا کوه ددې لپاره چې هغه تا رسوا نه کړي.

| باهوائي دل مکن زنـهار کار | تانيارد پس پــشيمانت بار |
|---|---|
| د زړه په خواهش هيڅکله کار مه کوه | تر څو ستا لپاره د پښيمانۍ ميوه نه راوړي |

**مشکل الفاظ**: زنهار: هيڅکله نه، بار: ميوه،

**خلاصه**: يعني د خواهش مطابق کار مه کوه تر څو د پښيمانۍ سره مخامخ نه سې.

| تا زبانت باشد اي خواجه دراز | دست کوته دار هر جانب متاز |
|---|---|
| ددې لپاره چې ستا ژبه اوږده وي اې ښاغلې | لاس لنډ کړه او هرې خوا ته مه ځغله |

**مشکل الفاظ**: د ژبې اوږديدل: يعني په خبرو کولو کې بې پرواهې کول، متاز: مه ځغله.

**خلاصه**: يعني د حرص لاس لنډ کړه او د مقصد پوره کولو لپاره هرې خوا ته مه ځغله ددې لپاره چې ستا ژبه په حق وينه کې روانه وي.

| قدر مردم را شناس اي محترم | تا شناسد ديگري قدر تو هــم |
|---|---|
| د خلګو قدر و پيژنه اې ښاغلې | ددې لپاره چې نور هم ستا قدر و پيژني |

| هر کرا قدري نباشد درجـهان | زنده مشمارش که هست از مردگان |
|---|---|
| څوک چې په دنيا کې قدر نه لري | ژوندی يې مه ګڼه د مړو څخه دی |

| از قناعت هر کرا نبود نــشان | کي تونگر سازدش مال جـهان |
|---|---|
| د چا لپاره چې د قناعت نښه نه وي | هغه به د ټولې دنيا مال کله غني کړي |

**خلاصه**: يعني څوک چې قناعت نه لري نو هغه د ټولې دنيا په مال هم نه مړيږي.

| | |
|---|---|
| برعدوي خويش چون يابي ظفر | عفو پيش آروزجرمش درگذر |
| كله چي پر خپل دښمن كاميابي تر لاسه كړې | عفوه وكړه او د هغه تر گناه تېر سه |

| | |
|---|---|
| دائمًا مي باش از حق ترسگار | نيز باش از رحمتش اميد وار |
| تل د الله ﷻ څخه بېرېدونكى اوسه | همدارنگه د هغه د رحمت اميدلرونكى سه |

| | |
|---|---|
| باتواضع باش وخوكن باادب | صحبت پرهيزگاران مي طلب |
| په تواضع سره اوسه او د ادب عادت جوړ كړه | د پرهيزگارانو ملگرتيا پيدا كړه |

| | |
|---|---|
| بردباري جوئي وبي ازار باش | تاكه گردد در هنر نام توفاش |
| زغم پيدا كړه او بې ازاره اوسه | تر څو ستا نوم په هوښيارى كي مشهور سي |

**مشكل الفاظ**: يعني د خلكو ظلم وزغمه او خپله هيڅا ته تكليف مه وركوه ددې لپاره چي ستا هوښياري مشهوره سي.

| | |
|---|---|
| صبر وعلم وحلم ترياق دل اند | حرص وبغض وكينه زهر قاتل اند |
| صبر، علم او زغم د زړه ترياق دي | حرص، دښمني او كينه وژونكي زهر دي |

**خلاصه**: يعني صبر، علم او زغم كول د زړه د ناروغيو لپاره ترټولو ښه درمل دي.

| | |
|---|---|
| همچو ترياق اند دانايان دهر | قاتل اند اي خواجه نادانان چو زهر |
| د ترياقو غوندي دي د زمانې هوښياران | او ناپوهان د زهرو غوندي وژونكي دي |

| | |
|---|---|
| مردم از ترياق مي يابد نجات | خودكسي از زهر كي يابدحيات |
| سړى په ترياقو خلاصون تر لاسه كوي | څوك كله په زهرو ژوند تر لاسه كولاى سي |

**خلاصه**: يعني انسان په ترياقو (درمل) سره د ناروغى څخه خلاصون تر لاسه كوي نه په زهرو سره،

| فخر جمله عملهانان دادن ست | در بروئي دوستان بکشادن ست |
|---|---|
| د ټولو کارونو فخر دوډۍ ورکول دي | د ملګرو په وړاندي دروازه خلاصول دي |

| گرچه دانا باشي واهل هـــنر | خويش راکمتر زهر نادان شمر |
|---|---|
| که څه هم ته پوه او هوښيار يې | خپل ځان تر هر ناپوه کم وګڼه |

**مشکل الفاظ**: يعني که څه هم ته عالم او په هر څه پوه يې مګر بيا هم خپل ځان تر ټولو کښته او ناپوه ګڼه او د پوهانو څخه کښته تر لاسه کړه.

# در بيان علامت نادان

د بې عقل د نښو په بيان کي.

| شد دو خصلت مردنادان رانشان | صحبت صبيان ورغبت بازنان |
|---|---|
| دوه عادتونه د بې عقل سړي نښي دي | د کوچنيانو مجلس او د ښځو شوق |

**مشکل الفاظ**: صبيان: هلکان، صحبت: ناسته ولاړه، اړيکي.

**خلاصه**: يعني د بې عقل سړي دوې نښي دي، يو د کوچنيانو مجلس او بل د ښځو شوق او د هغوئ سره اړيکي ځکه هغوئ هم ناقص العقل دي.

# در بيان صفت زندګاني

د ژوند د صفت په بيان کي.

| ناخوشي در زندګاني اي ولـيد | مرد را از خوي بدګردد پـديد |
|---|---|
| په ژوند کي ناخوښي اې هلکه | د سړي د بد عادت څخه څرګنديږي |

**خلاصه**: يعني د ژوند ناخوښي او بربادي د بد عادت څخه پيدا کيږي.

آنکه نبود مرد رافعل نکو ‌‌ ‌ مرده مي دانش که نبود زنده او
کوم سړی چي ښه عادت نه لري ‌ ‌ هغه مړ وګڼه ځکه ژوندی نه دی

هر که گوید عیب تو اندر حضور ‌ ‌ مي نماید راهت از ظلمت بنور
څوک چي ستا په مخکي ستا عیب ووایي ‌ ‌ هغه تا ته د تاریکۍ څخه رڼا ته لار ښيي

مر ترا هر کس که باشد رهنمای ‌ ‌ شکر او مي باید آوردن بجای
څوک چي ستا لپاره لارښود سي ‌ ‌ باید د هغه شکر ادا کړل سي

مرخردمندان عالم راشناس ‌ ‌ خلق نیک وشرم نیکو تر لباس
د دنیا هوښیاران و پیژنه ‌ ‌ ښه اخلاق او شرم ښه جامه ده

حال خود را از دوکس پنهان مدار ‌ ‌ از طبیب حاذق و از یار غار
خپل حال د دوو کسانو څخه مه پټوه ‌ ‌ د پوه ډاکټر او مخلص ملګري څخه

**مشکل الفاظ**: حاذق: ماهر، کامل، یارغار: ښه ملګری، دا په اصل کي د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ لقب دی،

**خلاصه**: یعني خپل حال باید د ماهر ډاکټر او مخلص ملګري څخه پټ نه کړل سي ځکه ډاکټر او مخلص ملګري ته ستا د حال معلومېدل ضروري دي.

تا صواب کار بیني سربسر ‌ ‌ برمراد خود مکن کار اي پسر
د دې لپاره چي د کار سموالی ووینې ‌ ‌ د خپل مطلب سره کار مه کوه اې هلکه

**خلاصه**: یعني د خواهش مطابق کار مه کوه.

تا تواني بازنان صحبت مجوی ‌ ‌ راز خود را نیز با ایشان مگوی
تر څو چي ممکن وي د ښځو سره اړیکې مه ساته ‌ ‌ همدارنګه خپل راز هغوئ ته مه وایه

| | |
|---|---|
| انچه اندر شرع باشند ناپسند | گرد او هر گز مگرد ای هوشمند |
| کوم کار چي په شریعت کي ناخوښه وي | هغه ته هیڅکله نژدې مه ورځه اې هوښیاره |

| | |
|---|---|
| هر چه راکردست حق بر توحرام | دور دار از خود که باشي نیکنام |
| کوم شی چي الله ﷻ پر تا حرام کړی دی | هغه د ځان څخه لیري کړه چي نېک نامی سې |

| | |
|---|---|
| چونکه روزي بر توبکشاید خدای | دل کشاده دار وتنگي کم نمای |
| کله چي الله ﷻ پر تا روزي پراخه کړي | نو زړه پراخ کړه او تنګي مه کوه |

| | |
|---|---|
| تازه روی وخوش سخن باش اي اخي | تابود نام تو درعالم سخي |
| ورین تندی او خوږ ژبی سه اې زما وروره | ددې لپاره چي په دنیا کي ستا نوم سخي سي |

**مشکل الفاظ**: تازه روی: ورین تندی، اخي: زما ورور،

| | |
|---|---|
| بر نخوراندوه مرگ اي بوالهوس | چونکه وقت آید نگردد پیش وپس |
| د مرګ غم مه خوره اې هوس والا | کله چي وخت راسي نو مخته او شاته نه کیږي |

**مشکل الفاظ**: مخور: مه خوره، مه کوه، اندوه مرگ: د مرګ غم، بوالهوس: حریص،

**خلاصه**: یعني اې هوښیاره! د مرګ په وجه خپل ژوند مه بې خونده کوه ځکه د هر چا لپاره مرګ پر خپل ټاکلي وخت راځي نو په غم او فکر سره مخته یا شاته نه کیږي.

| | |
|---|---|
| دل زغل وغش همیشه پاک دار | تاتواني کینه درسینه مدار |
| زړه د چم او چټلی څخه تل پاک ساته | ترڅو چي ممکن وي په سینه کي کینه مه ساته |

| | |
|---|---|
| تکیه کم کن خواجه بر کردار خویش | دل بنه بر رحمت جبار خویش |
| په خپل عمل لږ باور کوه اې بناغلي | د خپل خدای ﷻ پر رحمت زړه کښېږده |

| خَلق خُلق نيک را دارند دوست | بهترين چيزها خلق نکو ست |
| --- | --- |
| مخلوق ښه اخلاق خوښوي | په ټولو شيانو کي غوره شی ښه اخلاق دي. |

| کين بود آرائش اهل سـلف | روفروترباش دائم اي خـلف |
| --- | --- |
| ځکه دا د مخکنيو ښکلا ده | ولاړ سه او تل ډير کښته اوسه اي زويه |

**مشکل الفاظ**: فروتر: ډېر کښته، يعني تواضع او عاجزي کول، خلف: نېک زوی، سلف: د تيري زماني بزرگان،

| گرچه ازادست اوابنده گـير | آنكه باشد در كف شهوت اسير |
| --- | --- |
| هغه که څه هم ازاد وي غلام يې وګڼه | څوک چي د خواهش په لاس کي بندي وي |

| حاجت خود را از وهر گز مخواه | گرتو بيني ناکسي رادسـتگاه |
| --- | --- |
| نو خپل حاجت د هغه څخه هيڅکله مه غواړه | که چيري ته د يو بد سړي قدرت ووينې |

**مشکل الفاظ**: ناکسي: ناوړه، بد، دستگاه: قدرت،

**خلاصه**: يعني که چيري د يو بد سړي سره مال او سامان وي نو هغه ته خپل حاجت مه وايه ځکه که چيري هغه بد سړی ستا حاجت پوره کړي او يا يې پوره نه کړي په دواړو صورتو کي ستا ذلت دی.

| وربـه بيني هم مپرس ازوی خبر | بردر ناکس قدم هر گز مـبر |
| --- | --- |
| او که هغه ووينې نو د هغه څخه خبر مه پوښته | د بد سړي پر دروازه هيڅکله قدم مه ايږده |

| کار فرمايش ولي کمتر سـاز | ناتواني کار ابله رامسـاز |
| --- | --- |
| هغه ته د کار حکم کوه مګر مهرباني لږ کوه | تر څو چي کيدای سي د بې عقل لپاره کار مه کوه |

**خلاصه**: يعني تر څو چي ممکن وي د بې عقل سړي کار مه کوه بلکه په هغه کار کوه مګر د هغه سره ډېره نرمي او مهرباني مه کوه تر څو سرکښه نه سي.

# در بیان احتراز از دشمنان

د دښمنانو څخه د ځان ساتنې په بیان کې.

| از دوکس پرهیز کن اي هوشیار | تانه بیني نکبتي از روزگار |
|---|---|
| د دوو کسانو څخه ځان ساته اي هوښیاره | تر څو د زماني څخه هیڅ تکلیف ونه وینې |

**مشکل الفاظ**: نکبتي، غم او ستونزه، پرهیز: ځان ساتل، روزګار: زمانه،

| اول از دشمن که او استیزه روست | وانگهي از صحبت نادان دوست |
|---|---|
| لومړی د هغه دښمن څخه چي جګړه کونکی وي | او همدارنګه د بې عقل ملګري د مجلس څخه |

**مشکل الفاظ**: استیزه: جګړه.

| خویش را از نزد دشمن دور دار | یار نادان را زخود مهجور دار |
|---|---|
| خپل ځان د دښمن څخه لیري وساته | بې عقل ملګری د ځان څخه لیري کړه |

**مشکل الفاظ**: مهجور: لیري، جلا،

| اي پسرکم گوی بامردم درشت | وربگوئي از تو گردانند پشت |
|---|---|
| اي هلکه! خلګو ته سخته خبره مه کوه | او که یې وکړې نو خلګ ستا څخه مخ اړوي |

**مشکل الفاظ**: درشت: سخت، پشت ګردانند: شا در اړوي، یعني تعلق پرېږدي.

**خلاصه**: یعني سختي خبري مه کوه ځکه په سختو خبرو سره ملګري هم ناراضه کیږي.

| بهترین خصلت اردانی کراست | آنکه داد انصاف وانصافش نخواست |
|---|---|
| غوره عادت د چا دی که ته پوهیږې | هغه چي انصاف یې درکړی او انصاف یې ونه غوښتی |

**خلاصه**: یعني غوره عادت دادی چي سړی بل ته انصاف ورکوي مګر د خپل انصاف غوښتنه نه کوي بلکه صبر کوي.

| به بود زانش که پوشاني حرير | چون حديث خواب گوئي بافقير |
|---|---|
| دا غوره ده تر دې چي هغه ته ريشم ور واغوندې | کله چي ته فقير ته بنه خبره وکړې |
| تلخ باشد وزشکر شيرين ترست | خشم خوردن پيشه هر سرورست |
| دا تريخ وي مگر تر بورې ډېر خوږ وي | خښم په واک کي کول د سردار سرى کار دى |
| زندگاني تلخ دارد بـــيگمان | هر که بامردم نسازد در جهان |
| هغه بېله شکه تريخ ژوند لري | څوک چي په دنيا کي د خلگو سره موافقت نه کوي |
| دان که او ناپاک زاد ست اي عزيز | انکه شوخ ست وندارد شرم نيز |
| پوه سه چي هغه ارمونى دى اي گرانه | څوک چي شوخ وي او شرم هم نه لري |

**مشکل الفاظ**: شوخ: بې باک، بې ادبه، ناپاک زاد: ارمونى، يعني بد ذاته.

| باش دائم همنـــــشين زيرکان | از ملامت تابماني در امـــان |
|---|---|
| تل د هوښيارانو خلگو سره ناسته کوه | ددې لپاره چي د ملامتيا څخه په امان سې |

## در بيان آنکه خواري آرد

د هغو شيانو په بيان کي چي ذلت راولي.

| باتوگويم گرهمي گوئي بگوئي | هشت خصلت آورد خواري بروى |
|---|---|
| تاته يې وايم که ته وايې چي ويې وايم | اته عادتونه پر مخ ذلت راولي |
| مردناخوانده شود مهمان کس | اول آن باشد که مانندمـــگس |
| بېله بلني د يو چا مېلمه سي | لومړى دا چي د مچ غوندي |

**مشکل الفاظ**: مانند: مثل، مگس: مچ، مهمان: مېلمه.

| | |
|---|---|
| هر که او مهمان کس ناخوانده شد | نزد مردم خوار وزار وارنده شد |
| ځوک چې بېله بلنې د يو چا مېلمه سي | هغه د خلګو په نزد ذليل او خوار سو |

| | |
|---|---|
| ديگرآن باشد که نادانـي رود | کدخدای خانه مردم شـــود |
| دوهم دا چې يو ناپوه ولاړ سي | د خلګو د کور سردار سي |

| | |
|---|---|
| کارکردن برحديث آن دو مرد | کز سرجهل اند دائم در بـــزد |
| د هغو دوو کسانو پر صلح کار کول | چې د ناپوهۍ په وجه همېشه په جګړه وي |

| | |
|---|---|
| هر که بنشيندزبردست صدور | گررسد خواري برويش نيست دور |
| ځوک چې د شتمنو کسانو سربېره کښېني | که هغه ته ذلت ورسېږي نو ليري خبره نه ده |

**خلاصه**: يعني ځوک چې د شتمنو او لويو خلګو سربېره کښېني نو که چيري هغه ته ذلت ورسېږي هيڅ ليري خبره نه ده، دا ځلورم شی سو.

| | |
|---|---|
| نيست جمعي راچو بر قول توگوش | صدسخن گرباشدش يکسربپوش |
| که يوه ډله ستا پر خبره غوږ نه نيسي | که چيري سل خبري وي ټولي پټي کړه |

**خلاصه**: يعني که چيري يو ځوک ستا خبري ته توجه نه کوي نو که څه هم ستا سره په سلګونو ښې خبري وي بيا هم چپ سه او هيڅ مه وايه.

| | |
|---|---|
| حاجت خود را مگو بادشمنان | زين بترخواري نباشد درجهان |
| خپل حاجت دښمنانو ته مه وايه | په دنيا کي تر دې بدتر ذلت نسته |

**خلاصه**: يعني خپل حاجت دښمنانو ته بيانول تر ټولو بد ذلت دی، دا شپږم عادت دی.

| | |
|---|---|
| از فرومايه مراد خود مجـوی | تا نيايد مر ترا خواري مـجوی |
| د بد سري څخه خپل حاجت مه غواړه | تر څو ستا پر مخ ذلت نه راسي |

| تانگردي خوار وزار و مبتلا | بازن وکودک مکن بازي هلا |
|---|---|
| تر څو ته ذلیل ، خوار او اخته نه سي | د ښځي او هلک سره لوبي مه کوه |

## در بیان زندگاني خوش

د ښه ژوند په بیان کي.

| اولاً یار وطعام خوشگوار | درجهان شش چیز مي آید بکار |
|---|---|
| لومړی ملګری او ښه خوراک | په دنیا کي شپږ شیان په کار راځي |
| باز مخدومي که باشد مهربان | خوش بود یار موافق درجهان |
| بیا هغه مربي چي مهربان وي | په دنیا کي ښه ملګری ښه دی |

**مشکل الفاظ**: مخدومي: هغه چي خدمت یې وکړل سي یعني سردار یا روزونکی،

| به زدنیا زانکه دروی نفع تست | هر سخن کان راست گوئي ودرست |
|---|---|
| هغه تر دنیا ښه ده ځکه په هغې کي ستا ګټه ده | کومه خبره چي ته ریښتیا او سمه وکړې |
| عقل کامل دان تو زودلشاد باش | آنکه ارزان ست عالم دربهاش |
| کامل عقل وګڼه ته په هغه زړه ښه کړه | هغه شی چي په قیمت کي یې ټوله دنیا ارزانه ده |
| بازگشت جمله چون آخربدوست | دشمن حق را نباید داشت دوست |
| حال دا چي د ټولو رجوع اخیر هغه ته ده | د خدای ﷻ دښمن باید دوست نه کړل سي |

**خلاصه** : یعني د الله ﷻ دښمن باید دوست نه کړل سي ځکه ټول د الله ﷻ په دربار کي حاضرېدونکي یو، دا شپږم شی سو . والله اعلم .

| زانکه نبود هیچ لحمي بي غدود | عیب کس بااونمي باید نمود |
|---|---|
| ځکه هیڅ غوښه بېله غدود څخه نه وي | د یو چا عیب باید هغه ته ښکاره نه کړل سي |

**مشکل الفاظ**: غدود: د غدة جمع ده معنی د فاسدي ويني.

**خلاصه**: يعني لکه څنګه چي په بدن کي ښه او بده وينه وي همداسي په انسان کي هم ښه او هم بد عادت وي نو بايد د هغه بد صفت هغه ته بيان نه کړل سي.

| از خدا خواه آنچه خواهي اي پسر | نيست دردست خلائق خير وشر |
|---|---|
| هر څه چي غواړې د الله ﷻ څخه يې وغواړه اي هلکه | د مخلوق په لاس کي خير او شر نه دی |

| بندگان رانيست ناصر جزاله | ياري از حق خواه واز غيرش مخواه |
|---|---|
| د بندگانو لپاره د الله ﷻ ماسوا هيڅوک مرسته کونکی نسته | د الله ﷻ څخه مرسته وغواړه او د بل چا څخه يې مه غواړه |

| آنکه از قهر خدا ترسد بســـي | بيگمان ترسند از وی هرکسي |
|---|---|
| څوک چي د الله ﷻ د غضب څخه ويريږي | بيله شکه هر څوک د هغه څخه بيريږي |

| از بدي گفتن زبان را هر که بست | کرد شيطان لعين را زيردست |
|---|---|
| چا چي د بد ويني څخه ژبه بنده کړه | هغه ملعون شيطان مغلوب کړی |

## در بيان آنکه اعتماد رانشايد

د هغو شيانو په بيان کي چي د باور وړ نه دي.

| کس نيابد پنج چيز از پنج چيز | يادگير از ناصح اي صاحب نفس |
|---|---|
| هيڅوک پنځه شيان د پنځو کسانو څخه تر لاسه کولای نه سي | زما ناصح څخه يې ياد کړه اي د نفس خاونده |

| نيست اول دوستي اندر ملوک | اين سخن باور کند اهل سلوک |
|---|---|
| لومړی دا چي په پاچاهانو کي دوستي نسته | بزرګان خلک د دې خبري يقين کوي |

**خلاصه**: يعني په پاچاهانو کي رېښتنې دوستي نه پيدا کېږي او بزرګان خلګ په دې خبره ښه پوهيږي.

| سفلــــــه را بامروت ننگري | هيچ بدخـــوی نيايد مهتري |
|---|---|
| هيڅ بد سړی به سخي ونه ويني | هيڅ بدعادته سړي سرداري تر لاسه کولای نه سي |

**مشکل الفاظ**: سفله: بد سړی، بامروت: سخاوت، مهتري: سرداري، بزرگي.

| هر که بر مال کسان دارد حسد | بوئي رحمت بردماغش کی رسد |
|---|---|
| څوک چي د خلګو په مال حسد کوي | د رحمت بوی د هغه دماغ ته کله رسيږي |

**خلاصه**: څلورم دا چي څوک د خلګو په مال حسد کوي نو دهغه دماغ ته د رحمت او شفقت بوی هم نه رسيږي يعني مهربانه به نه وي.

| آنکه کذاب ست ميگويد دروغ | نيست اورا در وفاداري فروغ |
|---|---|
| څوک چي درواغجن وي او درواغ وايي | نو هغه ته په وفادارۍ کي ځلا نسته |

**خلاصه**: يعني پنځم عادت دادی چي څوک درواغجن وي هغه وفا نه لري.

## در بيان نصيحت وخير انديشي

د نصيحت او خوا خوږۍ په بيان کي.

| هر کرا سه کار عادت باشدش | درجهان بخت وسعادت باشدش |
|---|---|
| د چا چي دري کارونه عادت وي | په دنيا کي به بخت او نېکمرغي تر لاسه کړي |

| اولا گر بيند او عـــيب کسان | درملامـــت هيچ نکشايد زبان |
|---|---|
| لومړی دا چي کله د خلګو عيب ويني | نو په بد وينه کي هيڅ ژبه نه خلاصوي |

**خلاصه**: يعني لومړی دا چي د خلګو عيب ويني نو پر هغوئ بد ويل نه کوي.

| هر کرا بيني براه ناصـــواب | سربراهش آر تا يابي ثـــواب |
|---|---|
| څوک چي ته پر غلطه لار ويني | هغه پر لاري کړه چي ثواب تر لاسه کړې |

**خلاصه**: يعني څوک چي پر غلطه لار ويني نو سېده لاري ته يې راوله چي ثواب حاصل کړې.

| بار خود برکس میفگن زینهار | زحمت خودرا زمردم دور دار |
|---|---|
| خپل بار پر چا باندې هیڅکله مه اچوه | خپل تکلیف د خلکو څخه لیرې کړه |

**خلاصه:** یعني خپل تکلیف چا ته مه بیانوه او همدارنګه خپل بار پر نورو خلګو مه ایږده، دا دریم عادت سو .

# در بیان تسلیم

د ځان سپارلو په بیان کې (یعني الله ﷻ ته).

| رخ مگردان اي برادر از سه کار | گرهمي خواهي که باشي رستگار |
|---|---|
| نو مخ مه ګرځوه اې وروره د درو کارو څخه | که چیرې ته غواړې چې خلاصون تر لاسه کړې |

**خلاصه:** یعني که چیرې د الله ﷻ د غضب او قهر څخه ځان ژغورل غواړې نو د درو کارو څخه سرغړونه مه کوه .

| بعد ازان جستن بجان ودل رضا | اولا دیدن بود حکم قـــــضا |
|---|---|
| تر هغه وروسته په ځان او زړه سره رضا | لومړی د الله ﷻ د تقدیر حکم لیدل دي |

**خلاصه:** یعني لومړی د الله ﷻ په تقدیر راضي کېدل دي او دوهم په ځان او زړه سره د الله ﷻ رضا تر لاسه کول دي .

| هر که این دارد بود اهل صفا | چیست سوم دور بـودن از جفا |
|---|---|
| څوک چې دغه صفت ولري هغه پاک سو | دریم څه شی دی؟ د ظلم څخه لیرې کېدل |

| جـز براه حق نه بخشد هیچ چیز | هر که دارد دانش وعقل وتمیز |
|---|---|
| د الله ﷻ د لارې څخه ماسیوا هیڅ نه ورکوي | څوک چې پوهه، عقل او تمیز ولري |

| کی بود آن خیر مقبول خـــدا | صدقه کالوده گردد بـــــاریا |
|---|---|
| هغه خیرات به کله الله ﷻ ته مقبول وي | صدقه چې په ریا سره چتله سي |

**مشکل الفاظ** : کاٰلوده: چي لړل سوئ وي، ریا : ښوونه،

**خلاصه**: یعني څوک چي د ریا لپاره صدقه کوي هغه د الله ﷻ په دربار کي نه قبلیږي.

| گر عمل خالص نباشد همچون زر | قلب را ناقد نیارد در نـــظر |
|---|---|
| که چیري عمل د زرو غوندي خالص نه وي | د روپو ساتونکی ناچله په نظر کي نه نیسي |

**مشکل الفاظ**: قلب: ناچله، غیرخالص، ناقد: د درهم او دینار ساتونکی.

**خلاصه**: یعني څرنګه چي ناچله روپۍ د منلو ور نه دي همدارنګه هغه عمل چي خالص نه وي د الله ﷻ خوښ نه دی.

| تاتونگر باشـــي اندر روزگار | نفـــس را از آرزوها دور دار |
|---|---|
| ددې لپاره چي په زمانه کي توانا سې | نفس د غوښتنو څخه لیري وساته |

**خلاصه**: یعني نفس د خواهشاتو څخه لیري کړه او قناعت اختیار کړه.

| با تو دادم این چنین تعلیـم را | اي پسر تسلیم کن تسـلیم را |
|---|---|
| ما تا ته داسي ښووني وکړې | اي هلکه! ته تسلیم او رضا ومنه |

## در بیان کرامات حق

د الله ﷻ د ورکړو په بیان کي.

| چار چیز ست از کرامتهائي حق | یاد دارش چون زمن گیري سبق |
|---|---|
| څلور شیان د الله ﷻ د خاص مهربانیو څخه دي | په یاد یې کړه چي کله زما څخه سبق واخلې |

**خلاصه**: یعني دغه څلور شیان چي د چا سره وي پر هغه الله ﷻ خاص فضل کړی دی.

| اولا صدق بازبانت در سـخن | وانگهي حفظ امانت فهم کـن |
|---|---|
| لومړی په خبرو کي ستا د ژبي رېښتنوالی | او همدارنګه د امانت ساتنه، پوه سه |

| | |
|---|---|
| پس سخاوت هست از فضل اله | فضل حق دان ار نظر داري نگاه |
| بيا سخاوت د الله ﷻ د مهربانيو څخه دی | دا د الله ﷻ فضل وګڼه که چيرې نظر لرې |

| | |
|---|---|
| تاتواني دور باش از سود خوار | زانكه هست از دشمنان كردگار |
| تر څو چې ممکن وي د سودخوره ليرې اوسه | ځکه هغه د الله ﷻ د دښمنانو څخه دی |

| | |
|---|---|
| هر كرا حق داده باشد اين چهار | باشد آنكس مؤمن پرهيزگار |
| چا ته چې الله ﷻ دغه څلور شيان ورکړي وي | هغه کس به پرهيزګار مؤمن وي |

| | |
|---|---|
| پيش مردم آنكه رازت كردفاش | همدم آن ابله باطل مباش |
| چا چې د خلګو په مخکې ستا عيب ښکاره کړی | د هغه بې عقل او باطل ملګري مه کوه |

**مشكل الفاظ:** همدم: ملګری، ابله: بې عقل،

**خلاصه:** تر دې مخکې د سود خور څخه د ځان ساتنې نصيحت وو او دلته د دغه بې عقل د ناستې څخه منع فرمايې چې څوک ستا راز ښکاره کړي هغه هم د ملګرې ور نه دی.

| | |
|---|---|
| هر كه باشد مانع عشر وزكوة | وانكه غافل وار بگذارد صلوة |
| څوک چې د عشر او زکوة منع کونکی وي | او څوک چې د غافل غوندې لمونځ ادا کوي |

**مشكل الفاظ:** مانع: منع کونکی، نه ورکوونکی، عشر: د کښت څخه لسمه برخه،

| | |
|---|---|
| پر حذر باش ازچنان كس زينهار | تانسوزد مرترا آسيب نار |
| خبردار! له داسې کس څخه په بېره کې اوسه | تر څو د اور صدمه تا ونه سوځي |

# در بیان فروخوردن خشم

د غصې هضم کولو په بیان کې.

| | |
|---|---|
| لذت عمرت اگر باید بـــدهر | باش دائم پر حذر از خشم وقهر |
| که چیرې ته د ژوند خوند غواړې | نو همېشه د غصې او قهر څخه په بېره کې سه |

**خلاصه:** یعني غصه او خښم کول د ژوند خوند ختموي.

| | |
|---|---|
| گرنگردد خلق باخوی توراست | گربخوی مردمان سازي رواست |
| که چیرې مخلوق ستا د عادت سره موافق نه وي | نو که د خلګو د عادت سره موافقت وکړې ښه ده |

**خلاصه:** یعني که چیرې خلګ ستا د طبیعت موافق نه وي نو پوه سه چې ستا طبیعت او عادت خراب دی ته باید هغه سم کړې.

| | |
|---|---|
| اي برادر تکیه بر دولت مکن | یاد دار از ناصح خود این سخن |
| اې وروره! په مال او دولت باور مه کوه | په یاد ولره د خپل خېرخواه څخه دغه خبره |
| سود نکند گرگریزي از قــضا | هر چه مي آید بدان مي ده رضا |
| ګټه نه لري که د الله ﷻ د قضا څخه تېښته وکړې | هر څه چې پېښ سي په هغه خوښي څرګنده کړه |
| زانچه حاصل نیست دل خرسند دار | گوش دل راجانب این پند دار |
| هغه څه چې تر لاسه نه دي په هغه زړه ښه کړه | دغه نصیحت ته د زړه غوږونه کښېږده |

**خلاصه:** یعني کوم شی چې تر لاسه نه سي په هغه مه خفه کیږې بلکه خوشحاله سه.

| | |
|---|---|
| هر که اوبادوستان یکدل بـود | جمله مقصود دلش حاصل بود |
| څوک چې د ملګرو سره په یوه زړه وي | د هغه د زړه ټول مقصدونه پوره کیږي |

## در بيان جهان فاني

د فاني دنيا په بيان کي.

| درجهان داني که باشد معتبر | آنکه اورا باک نبود از خطر |
| --- | --- |
| ايا ته پوهيږې چي په دنيا کي څوک معتبر دی | هغه څوک چي د خطرې څخه بېره نه کوي |

**خلاصه**: يعني په دنيا کي هغه څوک ښه دی چي د خطرو څخه په بيره کي نه وي، مطلب دا چي د دنيا د وفا او بې وفائي څخه د هغه زړه ازاد وي.

| کم کند باکس وفا اين روزگار | جور داردنيستش بـــامهرکار |
| --- | --- |
| دغه زمانه د خلگو سره کمه وفا کوي | ظلم لري او د مهربانۍ سره يې هيڅ کار نسته |

| آنکه با تو روز غم بودست يار | روز شادي هم بپرسش زينهار |
| --- | --- |
| څوک چي د غم په ورځ ستا ملگرى وو | خبردار! د خوښۍ په ورځ هم د هغه پوښتنه وکړه |

| زوز نعمت گرتو پردازي به کس | روز محنت باشدت فرياد رس |
| --- | --- |
| که ته د خوښۍ په ورځ د يو چا سره بوخت يې | هغه به د غم په ورځ ستا مرسته کونکى وي |

**مشکل الفاظ**: پردازي: بوخت کېدل، محنت: تکليف،

**خلاصه**: يعني ته چي د خوښۍ په ورځ د چا مرسته کونکى يې هغه به د غم او تکليف په وخت کي ستا مرسته کونکى سي.

| چون بيابي دولتي از مستعان | اندران دولت بپرس از دوستان |
| --- | --- |
| کله چي ته د الله ﷻ څخه دولت تر لاسه کړې | په هغه دولت کي د ملگرو حال وپوښته |

**مشکل الفاظ**: مستعان: هغه څوک چي مرسته ور څخه غوښتل کيږي، يعني الله ﷻ،

**خلاصه**: يعني که چيري الله ﷻ تا ته نعمت درکړي نو د هغه په شکر کي غريب ملگري او خپلوان هم خبر کړه.

| چون رسد شادي همان همدم بود | مرترا هر کس که يار غم بود |
|---|---|
| نو کله چې خوښي ترلاسه سي بايد هغه ملگرى وي | څوک چې ستا د غم ملگرى وي |

**خلاصه**: يعني څوک چې د غم په وخت کې ستا ملگرى وي بايد د خوښۍ په وخت کې هم هغه ياد او ملگرى کړې.

## در بيان معرفت الله

د الله ﷻ د پېژندني په بيان کې.

| تابيابي از خداى خود خبر | معرفت حاصل کن اي جان پدر |
|---|---|
| تر څو د خپل خداى ﷻ څخه خبر سې | معرفت تر لاسه کړه اي د پلار ځانه |

**مشکل الفاظ**: معرفت: پېژندنه، جان پدر: د پلار ځان.

| درفنا بيند بقائي خويش را | هر که عارف شد خداى خويش را |
|---|---|
| هغه په فنا کېدو کې خپله بقاء ويني | څوک چې د خپل خداى پېژندونکى سي |

| قرب حق را لائق وارزنده نيست | هر که او عارف نباشد زنده نيست |
|---|---|
| هغه د الله ﷻ د نژدېوالي ور او لائق نه دى | څوک چې پېژندونکى نه وي هغه ژوندى نه دى |

**خلاصه**: يعني څوک چې الله ﷻ نه پېژني هغه د حقيقي ژوند څخه بې برخي او د الله ﷻ د دربار ور نه دى.

| هيچ بامقصود خود واصل نشد | هر که او رامعرفت حاصل نشد |
|---|---|
| هغه د خپل مقصد سره پيوست نه دى | چا ته چې معرفت ترلاسه نه وي |

**مشکل الفاظ**: مقصود: مقصد يعني د الله ﷻ پېژندنه. واصل: پيوست.

| حق تعالى را بداني باعطا | نفس خود را چون تو بشناسي دلا |
|---|---|
| نو الله ﷻ به د ورکړي خاوند و پېژني | اي زړه! کله چې ته خپل نفس و پېژني |

**خلاصه:** یعني کله چي ته الله ﷻ وپیژني نو په دي به هم پوه سې چي الله ﷻ د ورکړي او سخا خاوند دی.

| عارف آن باشد که باشد حق شناس | هر که عارف نیست گردد ناسپاس |
|---|---|
| عارف هغه څوک دی چي الله ﷻ پیژني | څوک چي عارف نه وي هغه ناشکره وي |

**مشکل الفاظ:** حق شناس: د الله ﷻ پیژندونکی، ناسپاس: بې شکره،

| هست عارف رابدل مهر ووفا | کار عارف جمله باشد باصفا |
|---|---|
| د بزرگ په زړه کي مهرباني او وفاداري وي | د بزرگ ټول کارونه پاک وي |

**خلاصه:** یعني د بزرگ زړه د مهرباني او وفا څخه ډک وي ځکه هغه د الله ﷻ د صفاتو مظهر وي او له همدې کبله د هغه ټول کارونه د چټلي څخه پاک وي.

| هر که اورا معرفت بخشد خدای | غیرحق را دردل او نیست جای |
|---|---|
| چا ته چي الله ﷻ معرفت ورکړي | د هغه په زړه کي دغیر الله لپاره ځای نه وي |

| نزد عارف نیست دنیا را خطر | بلکه برخودینتش هرگز نظر |
|---|---|
| د بزرگ په نزد د دنیا هیڅ قدر او قیمت نسته | بلکه د هغه پر خپل ځان هم نظر نه وي |

| معرفت فاني شدن دروی بود | هر که فاني نیست عارف کی بود |
|---|---|
| معرفت په هغه کي دننه فنا کیږي | څوک چي فاني نه وي هغه کله بزرگ وي |

**خلاصه:** یعني معرفت د الله ﷻ په وړاندي د خپل ځان ورکول دي، څوک چي خپل ځان ورک نه کړي هغه څنګه بزرګ کېدای سي.

| عارف از دنیا وعقبی فارغ ست | زانچه باشد غیر مولی فارغ ست |
|---|---|
| بزرگ د دنیا او آخرت څخه ازاد وي | د الله ﷻ ماسیوا د نورو ټولو څخه فارغ وي |

| همت عارف لقائي حق بـود | زانکه در حق فاني مطلق بـود |
|---|---|
| د عارف مقصد د الله ﷻ ملاقات دی | ځکه هغه په خدای ﷻ کي بالکل فاني وي |

**خلاصه:** یعني د بزرګ مقصد د الله ﷻ ملاقات وي نو د هغه لپاره نه د دنیا خوندونه او نه د آخرت مرتبه مقصد وي.

# در بیان مذمت دنیا

د دنیا د بدۍ په بیان کې.

| | |
|---|---|
| باچه ماند این جهان گویم جواب | آنکه بیند آدمي چیزي بخواب |
| دا دنیا د څه شي مشابه ده جواب یې وایم | دا چې سړی یو شی په خوب کې ویني |

| | |
|---|---|
| چون شوي بیدار از خواب اي عزیز | حاصلي نبود زخوابت هیچ چیز |
| اې ګرانه! کله چې ته د خوب څخه وېښ سې | نو د خوب څخه تا ته هیڅ په لاس نه درځي |

**خلاصه:** یعني په خوب کې ته یو شی ویني مګر کله چې راوېښ سې نو د هغو شیانو څخه هیڅ هم پاته نه وي،

| | |
|---|---|
| همچنین چون زنده افتاده مرده | هیچ چیزي از جهان باخود نبرد |
| همدارنګه کله چې یو ژوندی ولوېږي او مړ سي | هغه د خپل ځان سره ددنیا هیڅ شی نه یوړ |

**خلاصه:** یعني څوک چې د دنیا څخه ولاړ سي نو د دنیا هیڅ شی ورسره نه وي.

| | |
|---|---|
| هر کرا بودست کردار نکو | در ره عقبی بود همراه او |
| هر چا چې نېک عمل درلودی | هغه به د آخرت په لار کې د هغه ملګری وي |

**خلاصه:** یعني چا چې نېک عملونه کړي وي هغه به د آخرت په سفر کې په ښه ورسي.

| | |
|---|---|
| این جهانرا چون زني دان خوبروی | خویش را آراید اندر چشم شوی |
| دا دنیا د یوې ښکلې ښځې غوندې وګڼه | چې د خاوند په وړاندې خپل ځان سنګار کوي |

**مشکل الفاظ:** خوبروی: ښکلې، شوی: خاوند، مېړه،

**خلاصه:** یعني دنیا د ښځې غوندې وګڼه چې د خاوند په مخکې خپل ځان ښائسته کوي.

| مرد رامي پرورد اندر کنار | مکروشیوه مي نماید بیشمار |
|---|---|
| سړی په خپل غېږ کي ساتي | چمبازي، هوښیاري او ناز کوي |

**مشکل الفاظ:** کنار: غېږ، شیوه: ناز،

| چون بیابد خفته شورا ناگهان | بي گمان سازد هلاکش آن زمان |
|---|---|
| کله چي ناڅاپه خاوند بیده ویني | بیله شکه هغه وخت هغه هلاکوي |

**مشکل الفاظ:** شو: خاوند.

**خلاصه:** یعني په ښکاره ورسره ښه چلند کوي مګر کله چي هغه بیده ویني نو د غفلت په حالت کي یې هلاکوي.

| برتو باید اي عزیز پر هنر | کزچنین مکاره باشي پر حذر |
|---|---|
| پر تا باندي ضروري ده اي هوښیار ملګري | چي د داسي چمباز څخه په بېره کي سې |

**خلاصه:** یعني د ښځي غوندي چمبازي دنیا څخه باید په بېره کي سې.

## در بیان ورع

د پرهیزګارۍ په بیان کي.

| در ورع ثابت قدم باش اي پسر | گرهمي خواهي که گردي معتبر |
|---|---|
| په پرهیزګارۍ کي ثابت قدمه سه اي هلکه | که چیري ته غواړي چي معتبر سې |

**خلاصه:** یعني که چیري غواړي چي ثابت قدم اوسې نو پرهیزګاري غوره کړه.

| خانه دین گردد آباد از ورع | لیک مي گردد خرابي از طمع |
|---|---|
| په پرهیزګارۍ سره د دین کور اباديږي | مګر په حرص سره خرابیږي |

**خلاصه:** یعني په پرهیزګاري سره دینداري پوره کیږي مګر په حرص او طمع سره خرابیږي.

| | |
|---|---|
| هر که از علم وورع گیرد سبق | دور باید بودنش از غیر حق |
| څوک چي د علم او پرهیزګارۍ څخه سبق واخلي | هغه باید لیري سي د غیر الله څخه |

**خلاصه**: یعني د چا چي د علم او پرهیزګارۍ سبق یاد وي هغه د الله ﷻ څخه ماسیوا د نورو شیانو څخه ځان لیري ساتي.

| | |
|---|---|
| ترس گاري از ورع پیدا شود | هر که باشد بي ورع رسوا شود |
| د خدای ﷻ بېره په پرهیزګارۍ سره پیدا کیږي | څوک چي بې پرهیزه وي هغه رسوا کیږي |

| | |
|---|---|
| باورع هر کس که خود را کرد راست | جنبش وآرامش از بهر خداست |
| چا چي خپل ځان په پرهیزګارۍ سنبال کړی | د هغه ښوربدل او آرام د الله ﷻ لپاره وي |

**مشکل الفاظ**: جنبش: ښوربدل، حرکت کول،

**خلاصه**: یعني څوک چي پرهیزګاري ولري د هغه هره کړنه د الله ﷻ لپاره وي.

| | |
|---|---|
| آنکه از حق دوستي دارد طمع | در محبت کاذبش دان بي ورع |
| څوک چي د الله ﷻ سره د دوستي امید لري | هغه په بې پرهیزه محبت کي درواغجن وګڼه |

**خلاصه**: یعني د پرهیزګارۍ ماسیوا د الله ﷻ د محبت دعوه کول درواغ دي ځکه د مخلوق څخه په جلا والي د الله ﷻ سره تعلق قائمیږي.

# در بیان تقوی

د تقوا (د الله ﷻ څخه بیره) په بیان کي.

| | |
|---|---|
| چیست تقوی ترک شبهات وحرام | از لباس و از شراب واز طعام |
| تقوا څه ده ؟ د شبهاتو او حرامو پرېښودل | د جامو او د څښاک او خوراک څخه |

**خلاصه**: د تقوی او ورع معنی سره نژدې دي مګر دلته چي کومه تقوی د ورع نتیجه وي د هغې بیان دی یعني په خوراک، څښاک، جامو او هرشي کي د شکمنو او حرامو څخه ځان ساتل.

| نزد اصحاب ورع باشد وبـال | هر چه افزون ست اگر باشد حلال |
|---|---|
| د پرهیزګارانو په نزد وبال وي | کوم شی چي تر ضرورت زيات وي که څه هم حلال وي |

**مشکل الفاظ**: وبال: عذاب، غم،

| حسن اخلاص ترا نايد خـــلل | چون ورع شد يار باعلم وعمل |
|---|---|
| ستا د اخلاص په ښه والي کي تاوان نه راځي | کله چي د علم او عمل سره تقوا هم يو ځای سي |

| توبه کن درحال وعذر آن بخواه | ناګهان اي بنده ګر کردي ګناه |
|---|---|
| سمدستي توبه وکړه اود هغه عذر وغواړه | که دي ناڅاپه ګناه وکړه. اي بنده |

**خلاصه**: دا هم د تقوا نښه ده چي په ګناه کولو سره سمدستي توبه وکړل سي.

| توبه نسيه ندارد هيچ ســـود | چون ګناه نقد آمد در وجـــود |
|---|---|
| نو د پور توبه هيڅ ګټه نه کوي | کله چي نغده ګناه په وجود کي راسي |

**مشکل الفاظ**: نسيه: پور، سود: ګټه.

**خلاصه**: يعني کله چي ګناه اوس وسي نو توبه هم بايد سمدستي وسي، که چيري خدای مه کړه تر توبې مخکي مرګ راسي نو غم به وي.

| بر اميد زندګي کان بيوفاست | در انابت کاهلي کردن خطاست |
|---|---|
| د ژوند په اميد چي بې وفا دی | په توبه کولو کي سستي کول غلطي ده |

**مشکل الفاظ**: انابت: الله ﷻ ته رجوع، توبه،

**خلاصه**: يعني د بې وفا ژوند په باور په توبه کولو کي سستي او ځنډ کول غلطي ده.

# در بیان فوائد خدمت

د خدمت د ګټو په بیان کې.

| | |
|---|---|
| تا تواني اي پسر خدمت گزین | تاشود اسپ مرادت زیر زین |
| تر څو چې ممکن وي خدمت وکړه اې هلکه | تر څو ستا د مقصد آس تر زین لاندي وي |

**خلاصه:** یعني د خلګو په خدمت کولو سره ستا هر مقصد تر سره کیږي.

| | |
|---|---|
| بنده چون خدمت مردان کند | خدمت او گنبد مردان کند |
| بنده چې د الله ﷻ د بندګانو خدمت کوي | څرخېدونکي ګنبده د هغه خدمت کوي |

**مشکل الفاظ:** مردان: بندګان، ګنبد مردان: څرخېدونکې ګنبده یعني اسمان.

**خلاصه:** یعني څوک چې د بندګانو خدمت کوي نو د آسمان ټول مخلوق د هغه خدمت کوي.

| | |
|---|---|
| بهر خدمت هر که بربندد میان | باشد از آفات دنیا در امـــان |
| څوک چې د خدمت لپاره ملا وتړي | هغه به د دنیا د غمونو څخه په امان وي |
| هر که پیش صالحان خدمت کند | ایزدش بادولت وحرمت کـند |
| څوک چې د نېکانو خدمت کوي | الله ﷻ هغه ته دولت او عزت ورکوي |
| خادمان راهست درجنت مآب | روز محشر بي حساب وبي عقاب |
| د خدمت کونکو ځای په جنت کې دی | د حشر په ورځ بېله حساب او بېله عذابه |
| خادمان باشند اخوان را شفیع | جای ایشان در جنان شد با رفیع |
| خدمت کونکي به د ورونو لپاره شفیع وي | د هغوئ ځای به په جنت کې لوړ وي |

**مشکل الفاظ:** اخوان: ورونه، شفیع: شفاعت کونکي، جنان: جنتونه، رفیع: لوړ.

**خلاصه:** یعني خدمت کونکي خلک به د قیامت په ورځ هم شفاعت کوي او په جنت کې به د

معنوي لوړ مقام وي.

| بهتر از صد عابد ممسک بود | گرچه خادم عاصي ومفلس بود |
| --- | --- |
| تر سلو بخیلو عبادت کونکو غوره دی | که څه هم خادم مسکین او ګناه کار وي |

**خلاصه:** یعني خدمت کونکی سړی که څه هم مسکین او ګناه کار وي بیا هم تر سلو بخیلانو عبادت کونکی غوره دی ځکه د بخیل عبادت الله ﷻ نه خوښوي او ګناه کار خادم دهر وختونه مخلوق ته د ګټې رسولو په وجه مقبول سي.

| اجر ومزد صائمان وقائـــمان | مي دهد هر خادمي رامستعان |
| --- | --- |
| د روژاتي او وېښ سړی ثواب او بدله | الله ﷻ ورکوي هر خدمت کونکي ته |

**مشکل الفاظ:** صائمان: روژاتیان، قائمان: یعني د شپې عبادت کونکي، مزد: مزدوري.

| از درخت معرفت یابد ثـــمر | بهر خدمت هر که بربندد کمر |
| --- | --- |
| هغه به د معرفت د درختي څخه میوه تر لاسه کړي | څوک چي د خدمت لپاره ملا وتړي |

| هم ثواب غازیانش مي دهـند | هر که خادم شد جنانش مي دهند |
| --- | --- |
| همدارنګه د غازیانو ثواب ورکوي | څوک چي خدمتګار سي الله ﷻ جنت ورکوي |

# در بیان صدقه

د صدقې په بیان کي.

| صدقه مي ده درنهان وآشکار | تا امان باشي زقهر کـــردگار |
| --- | --- |
| صدقه ورکوه په پټه او ښکاره کي | ددې لپاره چي د الله ﷻ د قهر څخه په امان سې |

**مشکل الفاظ** بنهان: پټ، آشکار: ښکاره. قهر: غضب.

| تا بلاها از توګـــرداند اله | صدقه ده هر بامداد وهرپګاه |
| --- | --- |
| تر څو الله ﷻ ستا څخه مصیبتونه دفع کړي | هر سهار صدقه کوه |

**مشکل الفاظ:** بامداد: سهار، پگاه: سهار، اله: الله ﷻ.

**خلاصه:** یعني سهار او ماښام صدقه کوه تر څو الله ﷻ ستا څخه غمونه او آفتونه لیري کړي.

| هر که او را خیر عادت مي شود | بیگمان عمرش زیادت مي شود |
|---|---|
| د چا چي د خیرات کولو عادت وي | بېله شکه د هغه عمر زیاتیږي |

**خلاصه:** یعني څوک چي دېر خیرات کوي د هغه په عمر کي برکت وي.

| آنکه نیکي مي کند در حق ناس | بهترین مردمان اورا شـــناس |
|---|---|
| څوک چي د خلکو سره ښېگڼي کوي | هغه تر ټولو ښه سړی وګڼه |

**مشکل الفاظ:** ناس: خلګ، حق: برخه،

**خلاصه:** یعني څوک چي د خلکو سره ښه کوي نو هغه په ټولو خلګو کي ښه وګڼه.

| آنکه از وی هست مردم را ضرر | درمیان خلق زو نبوُد بـــتر |
|---|---|
| د چا څخه چي خلګو ته تاوان رسیږي | د مخلوق په منځ کي تر هغه بدتر نسته |

| دین ندارد هر که نبود ترس گار | نیست عقل آن را که باشد نابکار |
|---|---|
| دین نه لري هغه څوک چي پرهیزګار نه وي | عقل نه لري هغه څوک چي بې کاره وي |

**مشکل الفاظ:** ترس گار: پرهیزګار، نابکار: نااهله، بې کاره.

| باورع باش اي پسر گر مومني | کافري از قهر حق گر ایمـني |
|---|---|
| پرهیزګار سه اې هلکه که مؤمن یې | کافر یې که د الله ﷻ د قهر څخه نه یېرېږې |

| هر کرا نبود ورع ایمانش نیست | هر کرا نبود حیا احسانش نیست |
|---|---|
| څوک چي تقوا نه لري هغه ایمان نه لري | څوک چي حیاء نه لري هغه اخلاص نه لري |

**خلاصه:** یعني بېله تقوا ایمان کامل نه دی او بېله حیاء د احسان مرتبه نه تر لاسه کیږي.

| توبه نبود هر کرا توفیق نیست | حق نه بیند هر کرا تحقیق نیست |
|---|---|
| چا ته چي توفیق نه وي هغه توبه نه لري | څوک چي تحقیق نه لري هغه حق نهویني |

**خلاصه**: یعني چا ته چي د عبادت توفیق نه وي د هغه توبه نه په برخه کیږي او څوک چي د تحقیق ماده نه لري هغه حق نه سي تر لاسه کولای.

## در بیان تعظیم مهمان

د مېلمه پالني په بیان کي

| اي برادر مهمان رانیک دار | هست مهمان از عطای کردگار |
|---|---|
| اي وروره! مېلمه خوشحاله وساته | مېلمه د الله ﷻ د ورکړي څخه دی |

**مشکل الفاظ**: مهمان: مېلمه، نیک دار: خوشحاله یې وساته،

**خلاصه**: یعني د مېلمه درناوی وکړه ځکه د هغه راتلل د الله ﷻ فضل دی.

| مهمان روزي بخود مي آورد | پس گناه میزبان رامي برد |
|---|---|
| مېلمه د خپل ځان سره روزي راوړي | او بیا د کوربه گناهونه وړي |

**خلاصه**: یعني مېلمه د خپل قسمت رزق خوري محض پر کوربه باندي احسان کوي چي د هغه گناهونه ختموي ځکه مېلمستیا د بخښني ذریعه ده.

| هر کرا جبار دارد دشمنش | باز دارد مهمان از مسکنش |
|---|---|
| د چا سره چي الله ﷻ دښمني کوي | د هغه د کور څخه مېلمه منع کوي |

**خلاصه**: یعني الله ﷻ چي د چا سره محبت نه کوي نو هغه ته مېلمه نه راولي.

| اي برادر دار مهمان راعزیز | تابیابي عزت از رحمان تو نیز |
|---|---|
| اي وروره! د مېلمه درناوی وکړه | تر څو ته هم د الله ﷻ څخه عزت تر لاسه کړې |

| | |
|---|---|
| مؤمني کوداشت مهمان رانکو | حق کشاید باب جنت رابـــرو |
| کوم مؤمن چي مېلمه خوشحاله کړی | الله ﷻ دي پر هغه د جنت دروازه خلاصه کړي |
| هرکراشد طبع از مهمانِ ملول | از وی آزرده خدا وهم رسـول |
| د چا طبیعت چي په مېلمه خراب سو | د هغه څخه الله ﷻ او رسول ﷺ هم ناراض دي |
| بنده کو خدمت مهمان کـند | خویش راشائسته رحمان کـند |
| کوم بنده چي د مېلمه خدمت کوي | هغه خپل ځان د الله ﷻ د رحمت ور ګرځوي |
| هرکه مهمان رابروی تازه دید | از خدا الطاف بي اندازه دیـد |
| چا چي مېلمه ته په ورين تندي وکتل | د الله ﷻ څخه به بې شمېره مهرباني ووېني |
| از تکلف دورباش اي میزبـان | تاگراني نبودت از مـــــهمان |
| د تکلف څخه ځان وساته اي کوربه | تر څو ته په مېلمه خوابدی نه سي |

**مشکل الفاظ:** تکلف: تکلیف کول، گراني: بار، سختي،

**خلاصه:** یعني د مېلمه لپاره دېر تکلیف مه کوه بلکه د خپل توان لحاظ وساته څکه په تکلیف کولو سره د سړي د مېلمه پالنې څخه بد کېږي.

| | |
|---|---|
| مهمان را اي پسر اعزاز کـــن | گربود کافر برو در بـــاز کن |
| اي هلکه ! د مېلمه عزت وکړه | که څه هم کافر وي د هغه لپاره دروزه خلاصه کړه |

**مشکل الفاظ:** اعزاز کن: عزت یې وکړه، باز کن: خلاصه کړه. در: دروازه.

**خلاصه:** یعني د مېلمه درناوی وکړه که څه هم کافر وي څکه دا د هر مېلمه حق دی.

| | |
|---|---|
| هست مهمان از عطاهای کریم | هر که زو پنهان شود باشد لئیم |
| مېلمه د الله ﷻ د ورکړو څخه دی | څوک چي د هغه څخه پټ سي هغه بد دی |

| چون رسد مهمان برویش دِر مبند | معرفت داري گره بزر مـبند |
|---|---|
| کله چي مېلمه راسي نو هغه ته دروازه مه بندوه | که معرفت لرې نو مال ته غوټه مه ورکوه |

**مشکل الفاظ**: مال ته غوټه مه ورکوه، یعني بخیلتوب مه کوه،

**خلاصه**: یعني که چیري ته د الله ﷻ پیژندنه لرې نو د مېلمه څخه مال مه پټوه او کله چي هغه راسي نو دروازه مه بنده.

| چون رسد مهمان ازو پنهان مشو | خیز وبه خوان کسي مهمان مشو |
|---|---|
| کله چي مېلمه راسي نو د هغه څخه مه پټېږه | ولاړ سه او د چا پر سترخوان مه مېلمه کېږه |

**خلاصه**: یعني بېله ضرورته د چا سره مه مېلمه کېږه مګر کله چي تا ته مېلمه راسي نو د هغه څخه ځان مه پټوه بلکه درناوی یې وکړه.

| کوششي در نیک نامي مي کند | هر که مهمان راګرامي مي کند |
|---|---|
| هغه په ښه نامه کي کوښښ کوي | څوک چي د مېلمه عزت کوي |

| پیش اومي باید آوردن طــعام | هر که مهمانت شود از خاص وعام |
|---|---|
| هغه ته باید خوراک راوړل سي | که خاص یا عام سړی ستا مېلمه سي |

| بردباید پیش ذرویش اي پـسر | زانچه داري اندک وبـیش اي پسر |
|---|---|
| باید بزرګانو ته یې یوسې اې هلکه | اې هلکه! ته چي هر څه لږ یا ډېر لرې |

**خلاصه**: یعني هر څومره توان چي لرې باید خلګو ته یې ورکړې په خاصه توګه بزرګانو ته.

| تادهندت دربهشت عدن جاي | نان بده بر جائعان بهر خداي |
|---|---|
| تر څو تا ته په جنت عدن کي ځای درکړي | ډوډۍ ورکړه وږو کسانو ته د الله ﷻ لپاره |

**مشکل الفاظ**: جائع: وږی، عدن: د تل اوسېدو ځای، دجنت یو مشهور صفت،

**خلاصه**: یعني وږو ته د الله ﷻ لپاره ډوډۍ ورکړه تر څو جنت دي په برخه سي.

| باتن عور آنکه بخشد جــــامه | حق دهد او را ز رحمت نــامه |
|---|---|
| څوک چي لوڅ بدن ته جامه ورکړی | الله ﷻ هغه ته رحمت نامه ورکوي |

**مشکل الفاظ**: عور: لوڅ، نامه: یعني رحمت، لیک.

**خلاصه**: یعني څوک چي لوڅ ته جامه ورکړي نو الله ﷻ د هغه لپاره د رحمت حکم کوي.

| هر که ثوبي باتن عوري دهـد | در دو عالم ایزدش نوري دهد |
|---|---|
| څوک چي لوڅ بدن ته یوه جامه ورکړي | الله ﷻ هغه ته په دواړو جهانونو کي نور ورکوي |

| گر براري حاجت محــــتاج را | بر سر اقــــــبال یابي تاج را |
|---|---|
| که چیري ته د اړو کسانو اړتیا پوره کړې | نو ته به د پرمختګ سر تاج تر لاسه کړې |

**مشکل الفاظ**: براري: پوره کول، اقبال: پرمختګ.

| هر کرا باشد بدولت بخت یار | خیر ورزد درنهان وآشــــــکار |
|---|---|
| د چا چي بخت د دولت ملګری وي | هغه په ښکاره او پټه نیکي اختیاروي |

| اي پسر هر گز مخور نان بخیل | کم نشین درعمر برخوان بخیل |
|---|---|
| اي هلکه! د بخیل ډوډۍ هیڅکله مه خوره | په ژوند کي مه کښېنه د بخیل پر سترخوان |

| نان ممسک جمله رنج ست وعنا | مي شود نان سخي نور وصفا |
|---|---|
| د بخیل ډوډۍ ټول غم او سختي ده | د سخي ډوډۍ نور او پاکي ګرځي |

**مشکل الفاظ**: ممسک: بخیل، عنا: سختي،

**خلاصه**: یعني د بخیل ډوډۍ د غم او تکلیف سبب دی ځکه په هغې سره چتلي پیدا کیږي ځکه هغه یې په پراخ زړه نه ورکوي او د سخي د ډوډۍ څخه نور او پاکي پیدا کیږي.

| تا نخواندت بخوان کس مـرو | درپی مردار چون گرگس مرو |
|---|---|
| تر څو چي بلنه در نه کړي د چا سترخوان ته مه ځه | د ټپوس غوندي په مردار پسې مه ځه |

**مشکل الفاظ**: گرگس: تپوس. مرو: مه ځه.

| چشم نیکي از خسیس دون مدار | سقف ویران را تو براستون مدار |
|---|---|
| د فاسق بخیل څخه د نیکۍ امید مه کوه | ته نړېدلی بام پر ستني مه دروه |

| گرکني خیري توآن از خودمبین | هرچه بیني نیک بین وبدمبین |
|---|---|
| که چیري نیکي وکړې نو د ځان څخه یې مه ګڼه | هر څه چي وویني ښه یې وګڼه او بد یې مه ګڼه |

**خلاصه**: یعني کله چي نیکي وکړې نو د خپل ځان کمال یې مه ګڼه بلکه د الله ﷻ فضل یې وګڼه او په دنیا کي چي هر څه پېښیږي د الله ﷻ د حکمت مطابق یې وګڼه.

## در بیان علامات احمق

د بې عقل د نښو په بیان کي.

| سه علامت دان که در احمق بود | اولا غافل زیاد حق بـــــود |
|---|---|
| درې نښې زده کړه چي په بې عقل کي وي | لومړی دا چي هغه د الله ﷻ د یاد څخه غافل وي |

**خلاصه**: د بې عقل سړي درې نښې دي، لومړی دا چي هغه د الله ﷻ د یاد څخه غافل وي.

| گفتن بسیار عادت باشـدش | کاهـلي اندر عبادت باشدش |
|---|---|
| د ډېرو خبرو کولو عادت یې وي | او هغه په عبادت کي سست وي |

**خلاصه**: دوهم دا چي ډېري خبري کوي او دریم دا چي په عبادت کي سستي کوي.

| اي پسر چون احمق وجاهل مباش | یکدم از یاد خدا غافل مباش |
|---|---|
| اي هلکه! د بې عقل او ناپوه غوندي مه کېږه | یو ګړی د الله ﷻ د یاد څخه مه غافل کېږه |

| هر که او از یاد حق غافل بود | از حماقت در ره بـــاطل بود |
|---|---|
| څوک چي د الله ﷻ د یاد څخه غافل وي | هغه د بې عقلۍ څخه پر باطل لاره دی |

**خلاصه**: يعني غافل د خپلي بې عقلۍ څخه پر باطله لار دی او د کاميابۍ لار يې ورکه کړې ده.

| هيچ از فرمان حق گردن متاب | تانماني روز محشر در عذاب |
|---|---|
| د الله ﷻ د حکم څخه هيڅکله غاړه مه گرځوه | تر څو د حشر په ورځ په عذاب نه سې |

| باطلي را اي پسر گردن منه | نقد مردان رابهرکودن منه |
|---|---|
| اې هلکه! د هيڅ باطل اطاعت مه کوه | د خلگو خزانه د هر بې عقل سره مه ايږده |

**خلاصه**: يعني د هيڅ باطل اطاعت مه کوه او همدارنگه د بزرگانو خزانه يعني نصيحت هر بې عقل ته مه ايږده.

| در قضائي آسماني دم مزن | هر کسي رابيش بين دلم مزن |
|---|---|
| په آسماني فيصلو کې خبره مه کوه | هر څوک زيات وگڼه او کم يې مه گڼه |

| دست خود را سوئي نامحرم ميار | جانب مال يتيمان هم ميار |
|---|---|
| خپل لاس نامحرم ته مه نژدې کوه | او د يتيمانو مال ته يې هم مه ور وړه |

**خلاصه**: يعني پردۍ ښځو او د يتيم مال ته نظر مه کوه.

| تاتواني راز باهمدم مگوی | گرتوباشي نيز باخود هم مگوی |
|---|---|
| تر څو چې ممکن وي خپل راز ملگري ته مه وايه | که ته يوازې يې نو خپل ځان ته يې هم مه وايه |

| تاشوي آزاد ومقبول اي عزيز | بي طمع مي باش گرداري تميز |
|---|---|
| ددې لپاره چې ازاد او مقبول سې اې گرانه | بې طمع سه که چيرې عقل لرې |

**خلاصه**: يعني که چيرې د عقل خاوند يې نو حرص او طمع مه کوه بلکه ازاد ژوند کوه.

## در بیان علامات فاسق

د فاسق د نښو په بیان کې.

| هست فاسق را سه خصلت در نهاد | باشد اول در دلش حب فساد |
|---|---|
| د فاسق په طبیعت کې درې عادته وي | لومړی دا چې د هغه په زړه کې د فساد مینه وي |

**خلاصه:** یعني د فاسق په زړه کې د فساد خپرولو شوق او خواهش وي.

| خصلتش آزار دن خلق خداست | دور دارد خویش را از راه راست |
|---|---|
| د هغه عادت د مخلوق ازارول دي | هغه خپل ځان د سیده لارې لیرې کوي |

**خلاصه:** یعني دوهم دا چې مخلوق ته تکلیف رسوي او دریم دا چې د سیده لارې ځخه ځان لیرې کوي یعني په عبادت کې سستي کوي.

## در بیان علامات شقي

د بدبخته د نښو په بیان کې.

| هست ظاهر سه علامات در شقي | مي خورد دائم حرام از احمقي |
|---|---|
| په بدبخته کې درې نښې ښکاره دي | تل د بې عقلۍ ځخه حرام خوري |

**خلاصه:** یعني د بدبخت سړي درې نښې دي، لومړی دا چې د بې عقلۍ په وجه حرام خوري، د بې عقلۍ یې ځکه وویل چې د نس د کولو لپاره د آخرت تل پاتې راحت د لاسه ورکوي.

| بي طهارت باشد وبیگانه خیز | هم زاهل علم باشد درگـــریز |
|---|---|
| بېله پاکۍ اوسیږي او بې وخت کښېني | همدارنگه د عالمانو ځخه تېښته کوي |

**خلاصه:** دوهمه نښه داده چې د پاکۍ بندوبست نه کوي او بې وخته کښېني، دریم دا چې د عالمانو ځخه لیرې وي ځکه نو همېشه په جهالت کې وي.

| اي پسر مگریز از اهل عـــلوم | تا نسوزد مرترا نار ســـــموم |
|---|---|
| اې هلکه! د عالمانو ځخه تېښته مه کوه | تر ځو تا تود اور ونه سوځي |

**خلاصه:** يعني ته هم د بدبختانو غوندې د عالمانو څخه تېښته مه کوه تر څو دوږخ ته ونه رسيږې.

| پيش مردم عيب کس هر گز مجوی | تا تواني هيچ کس رابدمگوی |
|---|---|
| د خلګو په مخکې د چا عيب مه وايه | تر څو چې ممکن وي چا ته بد مه وايه |
| وز عذاب گور ني انديشه کن | باطهارت باش وپاکي پيشه کن |
| او د قبر د عذاب څخه هم ببره وکړه | دِ پاکی سره اوسه او پاکي خپل عادت کړه |

**خلاصه:** يعني پاکي خپل عادت کړه او د قبر د عذاب څخه ځان وساته ځکه د قبر عذاب زيات وختونه د ناپاکی په وجه وي.

## در بيان علامات بخيل

د بخيل د نښو په بيان کې.

| باتوگويم يادگيرش اي خــــليل | سه علامات ظاهر آمد در بخيل |
|---|---|
| تا ته يې وايم ياد يې کړه اې ملګرې | د بخيل درې ښکاره نښې راغلي دي |
| وزبلائي جوع هم لرزان بــود | اولا از سائلان ترســـــــان بود |
| او د لوږي د غم څخه هم په لړزه کي وي | لومړی دا چې د فقيرانو څخه په ببره کي وي |

**خلاصه:** يعني لومړی دا چې هغه د فقير څخه ځان پټوي او دوهم دا چې په الله ﷻ باندي په باور نه کولو د لوږي څخه بيريږي چې د لوږي مر نه سم.

| بگذرد زانجا وگويد مرحــــبا | چون رسد ره بخويش وآشـــــنا |
|---|---|
| د هغه ځايه تيريږي او مرحبا وايي | کله چې په لاره کي ناڅاپه خپل مخامخ سي |

**خلاصه:** يعني کله چې په لاره کي دوست يا ملګری ورسره مخامخ سي نو د هغه ځايه ژر ځي او د تلو په خوښي کي ځان ته مبارکي وايي.

| کم رسد باکس زخوانش مائده | نیست ازمالش کسي رافائده |
|---|---|
| د هغه د ستر خوان څخه چا ته ډوډی نه رسيږي | د هغه په مال کي هيچا ته ګټه نشته |

**خلاصه**: يعني د هغه په مال چا ته ګټه نه رسيږي او د هغه ډوډی چا ته په لاس نه ورځي.

## در بيان قساوت قلب

د زړه د سختوالي په بيان کي.

| چون بديدم روا زوبرتافـــتم | سخت دل راسه علامت يافتم |
|---|---|
| کله چي ما ولیدلي نو د هغه څخه مي مخ واړوی | ما د سخت زړه دري نښي پيدا کړي دي |

**خلاصه**: يعني د سخت زړه لرونکي سړي دري نښي دي او په چا کي چي هغه نښي ووينم نو د هغه څخه ليري والی اختيار وم.

| هم قناعت نبودش بابيش وکم | باضعيفان باشدش جور وستم |
|---|---|
| همدارنګه هغه پر لږ او ډېر قناعت نه کوي | د ضعيفانو سره د هغه ظلم او زياتي وي |

| در دل سختش نباشد کارگـر | موعظت هرچند گوئي بيشتر |
|---|---|
| د هغه په سخت زړه کي اثر نه کوي | ته چي هر څومره زيات نصيحت ورته وکړې |

| تانباشي همنشين بامــردگان | اهل دنيا را بمعنی مرده دان |
|---|---|
| ته هيڅکله د مړو سره ناسته مه کوه | شتمن خلګ په حقيقت کي مړه وګڼه |

**خلاصه**: يعني سخت زړه د مړه غوندي وي ځکه هغه د الله ﷻ د ياد څخه د غفلت په وجه د زړه تازګي او معنوي ژوند نه لري نو بايد ور څخه ځان وساتل سي.

## در بیان حاجت خواستن

د حاجت غوښتنې په بیان کې.

| آنکه دارد روئي خوب ازوی بجوی | حاجت خود رامجوی از زشت روی |
|---|---|
| څوک چې ښه طبیعت لري د هغه څخه يې وغواړه | خپل حاجت د بدطبیعته څخه مه غواړه |

**خلاصه:** یعني د بد طبیعته سړي څخه د خپل حاجت په غوښتلو ځان مه ذلیل کوه.

| تاتواني حاجت او را بـــــرآر | مؤمني را باتو چون افتاد کار |
|---|---|
| ترڅو چې ممکن وي د هغه حاجت پوره کړه | کله چې د يو مؤمن په تا کار سي |
| چون نخواهي یافت از دربان مخواه | حاجت خود را جز از سلطان مخواه |
| که تر لاسه نه سي د دربار څخه نو له پیردار څخه يې مه غواړه | خپل حاجت د پاچا ماسیوا د بل چا څخه مه غواړه |
| از کسي پیش کس آزادي مکن | از وفات دشمنان شادي مکن |
| د چا په مخکې د چا سره بې پرواهي مه کوه | د دښمنانو په مرګ خوشحالي مه کوه |

**خلاصه:** یعني د دښمن په مرګ مه خوشحاله کیږه ځکه یوه ورځ ته هم مړ کیږې او د چا په مخکې د بل چا بې پرواهي مه کوه ځکه په داسې کولو سره دښمني پیدا کیږي.

## در بیان قناعت

د قناعت په بیان کې.

| گرچه هیچ از فقر نبود تلخ تر | باقناعت ساز دائم اي پسر |
|---|---|
| که څه هم تر مسکینۍ زیات تریخ شی نشته | همیشه قناعت اختیار کړه اي هلکه |

**خلاصه:** یعني قناعت اختیار کړه او پر مسکینۍ صبر وکړه که څه هم مسکیني تکلیفي شی دی مګر پایله يې ښه ده.

| هرسحر برخیز واستغفار کـن | فرصتي اکنون که داري کارکن |
|---|---|
| هر سهار پورته سه او استغفار وکړه | اوس چي کوم وخت لرې په هغه کي کار وکړه |

**خلاصه**: یعني د شپې په آخري برخه کي پورته سه او عبادت او استغفار وکړه، او په فارغه وختو کي کار کوه.

| همنشین خویش را غیبت مکن | غیرشیطان برکسي لعنت مکن |
|---|---|
| د خپل ملګري غیبت مه کوه | د شیطان ماسیوا پر چا لعنت مه وایه |

| چون شود هر روز درعالم جدید | ازگناهان توبه مي باید گـزید |
|---|---|
| کله چي په دنیا کي هره ورځ نوې وي | باید د ګناهو څخه توبه وکړل سي |

| هر کرا ترسي نباشد از خـدا | حق بترساند زهر چـیزي ورا |
|---|---|
| څوک چي د الله ﷻ څخه بېره نه کوي | الله ﷻ هغه د هر شي څخه بیروي |

| تاتواني حاجت مسکین بـرآر | تابرآر حاجتت راکـردګار |
|---|---|
| تر څو چي ممکن وي د مسکین چاجت پوره کړه | تر څو الله ﷻ ستا حاجت پوره کړي |

| هست مالت جمله درکف عاریت | ګر بماند از تو باشد زاریـت |
|---|---|
| ستا ټول مال په لاس کي امانت دی | که ستا څخه پاته سي نو ستا ناتواني ده |

**خلاصه**: یعني د مسکین حاجت پوره کړه ځکه مال د الله ﷻ امانت دی که چیري د هغه د رضا مطابق مصرف نه کړل سي نو تر مرګ وروسته به د هغه حساب ستا سره کیږي.

| عاریت رابازمي باید سـپرد | هیچ کس دیدي که زر باخود ببرد |
|---|---|
| امانت باید بېرته وسپارل سي | څوک دي لیدلی چي زر یې د ځان سره یووړل |

**خلاصه**: یعني کله چي امانت بېرته ورکول کیږي نو د مالک د رضا موافق نه مصرفول پالتو کار دی.

| حاصل از دنيا چه باشد اي امين | نه گزي كرباس وسه گز از زمين |
|---|---|
| اي امانتداره! د دنيا څخه څه تر لاسه كيږي | يوازي نهه گزه ټوكر او دري گزه مځكه |

**مشكل الفاظ** : امين: امانتدار، نه گزي: نهه گزه، كرپاس: د وړيو ټوكر، زمين: مځكه.

**خلاصه**: يعني مال ستا په لاس كي امانت دى او ته د يو ځو امانتدار يې، د دنيا څخه د تلو په وخت كي يوازي نهه گزه كفن او دري گزه مځكه تا ته رسيږي.

| هر چه دادي در ره حق آن تست | آنچه ماند از تو بلائي جان تست |
|---|---|
| هغه چي تا د الله ﷻ په لاره كي وركړل هغه ستا دي | او كوم چي پاته سي هغه ستا د ځان بلا ده |

**خلاصه**: يعني كوم مال چي د الله ﷻ په لاره كي مصرف كړل سي هغه ستا ملك دى او ستا لپاره گټه لري او هر څه چي پاته سي هغه به ستا لپاره د حساب په ورځ عذاب وي.

| هر كه بااندك زحق راضي شود | حاجت او را خدا قاضي شـود |
|---|---|
| څوك چي د الله ﷻ څخه پر لږ راضي سي | الله ﷻ د هغه د حاجت پوره كونكى سو |

**خلاصه**: يعني څوك چي د الله ﷻ په وېش راضي سي نو الله ﷻ د هغه هر حاجت پوره كوي.

| هست دنيا بر مثال قنـــطره | بگذار ازوى گرتو داري رو بره |
|---|---|
| دنيا د يو پل په مثال ده | كه لاري ته اراده لري نو پر هغه تېر سه |

**مشكل الفاظ**: قنطره: پل،

**خلاصه**: يعني دنيا د پل په مثال ده كه چيري تا آخرت ته قصد كړى وي نو پر د غه پل تېر سه.

| هر كه سازد بر سر پل خـــانه | نيست عاقل او بود ديـــوانه |
|---|---|
| چا چي د پله پر سر كور جوړ كړى | هغه هوښيار نه دى بلكه ليونى دى |

**خلاصه**: يعني كه چيري يو څوك د پله پر سر كور جوړ كړي نو هغه ته خلك ليونى وايي همدارنگه دنيا د هستوگني ځاى گڼل هم بې عقلي ده.

| از خدا نبود رواجستن غـــنا | هست مؤمن راغنا رنج وعـــنا |
|---|---|
| د الله ﷻ څخه مال غوښتل صحیح نه دي | د مؤمن لپاره مال تکلیف او غم دی |

**خلاصه**: یعني مال او دنیا د عبادت څخه غفلت راولي ځکه نو د مؤمن لپاره ښه شی نه دی.

| فقر ودرویشي شفائي مؤمن ست | زانکه اندروی صفائي مؤمن ست |
|---|---|
| فقر او درویشي د مؤمن شفا ده | ځکه په هغه کي د مؤمن پاکي ده |

| مال و اولادت بمعنی دشمن اند | گرچه نزدیک تو چشم روشن اند |
|---|---|
| ستا مال او اولاد په حقیقت کي دښمن دي | که څه هم ستا په نزد ځلانده سترګي دي |

| انما اموالکم را یـــــــادگیر | مال وملک این جهان برباد گیر |
|---|---|
| (آیت) انما اموالکم... یاد کړه | ددي دنیا مال او ملک برباد وګڼه |

**خلاصه**: دغه آیت کریمه ته اشاره ده چي : (انما اموالکم واولادکم فتنة) یعني بېله شکه ستاسي مالونه او اولادونه فتنه دي،

| مرد ره رابود دنیا سود نیست | هرگزش اندیشه نابود نیـست |
|---|---|
| د بزرګ لپاره دنیا ګټه نه ده | هغه ته د نه درلودو بالکل فکر نه وي |

| هر که از صدقش دل صافي بود | خرقه با لقمه کافـــــي بود |
|---|---|
| د چا چي زړه د صداقت په وجه پاک وي | د هغه لپاره یوه چپنه او یوه ګوله بس وي |

**خلاصه**: یعني د چا چي په زړه کي صداقت وي هغه په یوه چپنه او یوه ګوله دودی بسنه کوي.

| هر که دربند زیادت مي شود | دور از اهـل سعادت مي شود |
|---|---|
| څوک چي د زیاتوب په فکر کي وي | هغه د خوشبختو کسانو څخه لیري وي |

| بندگان حق چو جان راباختند | اسپ همت تاثر یاتا خـــــتند |
|---|---|
| د الله ﷻ بندګانو چي کله ځان وبایلی | د همت آسونه یې تر کوثر پوري وځغلول |

**خلاصه:** يعني كله چي د الله ﷻ خاصو بندگانو ذ هغه په لاره كي ځانونه قربان كړل نو دېر مخته ولاړل او لوړي درجې يې تر لاسه كړې.

| تا نبازي در ره حق هر چه هست | انچه مي بايد كجا آيد بدست |
|---|---|
| تر څو چي ټول د الله ﷻ په لاره كي صرف نه كړې | هغه څه چي غواړې كله په لاس درتلاى سي |

**خلاصه:** يعني تر څو چي هر څه د الله ﷻ په لار كي قربان نه كړې ستا مقصدونه نه پوره كيږي.

# در بيان نتائج سخا مي گويد

د سخا د پايلو په بيان كي وايي.

| درسخا كوش اي برادر درسخا | تا بيابي از پس شــــدت رخا |
|---|---|
| اې وروره! په سخاوت كي كوښښ كوه | تر څو د سختۍ وروسته سوكالي تر لاسه كړې |

**خلاصه:** يعني په سخاوت كولو سره ستا هره تنگي او مشكل حل كيږي.

| باش پيوسته جوان مرد اي اخي | زانكه نبود دوزخي مرد سخي |
|---|---|
| اې زما وروره! تل سخاوت كوه | څكه سخي سړى دوږخي نه وي |

**خلاصه:** يعني تل سخاوت اختيار كړه څكه سخي سړى دوږخ ته نه ځي،

| در رخ مرد سخي نور وصفاست | زانكه درجنت قرين مصطفا ست |
|---|---|
| د سخي سړي په مخ كي نور او پاكي وي | څكه هغه په جنت كي د مصطفى ﷺ سره اوسېدونكى دى |

**مشكل الفاظ:** قرين: ملگرى، يو ځاى،

**خلاصه:** يعني د سخي سړي مخ په دنيا كي منور وي او په آخرت كي هم څكه هغه به په آخرت كي د رسول الله ﷺ سره وي.

| حق تعالى بر در جنت نوشت | اينكه جائي اسخيا باشد بهشت |
|---|---|
| الله ﷻ د جنت پر دروازه ليكلي ده | دا چي جنت د سخيانو ځاى دى |

| جائي ممسک جز درون نار نيست | اسخيا را باجهنم کار نيست |
|---|---|
| د بخيل ځای ېيله اوره بل نشته | د سخيانو د دوږخ سره کار نشته |

| درجهنم همدم ابـــليس دان | کار اهل بخيل را تلبيس دان |
|---|---|
| هغه په دوږخ کي د ابليس ملګری وګڼه | د بخيلانو کار چمبازي او مکر وګڼه |

**مشکل الفاظ:** تلبيس: چمبازي، همدم: ملګری، ابليس: شيطان.

**خلاصه:** يعني د بخيل کار په چمبازۍ سره د مال تر لاسه کول دي ځکه هغه به په دوږخ کي د شيطان ملګری وي ځکه هغه هم د آدم عليه السلام او ټولو انسانانو سره مکر کړی دی.

| بلکه با اوکی رسد بوی بهشت | هيچ ممسک نګذرد سوئي بهشت |
|---|---|
| بلکه هغه ته د جنت بوی هم نه رسيږي | هيڅ بخيل به د جنت سره تېر نه سي |

| اهل کبر وبخل را باشد مــقر | آنکه مي خوانند مر اورا سقر |
|---|---|
| د لويي کونکي او بخيل د اوسېدو ځای به وي | هغه چي خلک ورته دوږخ وايي |

**مشکل الفاظ:** سقر: د دوږخ نوم، مقر: د قرار ځای، د اوسېدو ځای، .

**خلاصه:** يعني دوږخ د لويي کونکي او بخيل ځای دی.

| از بخيلي وتکبر دور بـــاش | اي پسر در مردمي مشهور باش |
|---|---|
| د بخيلی او لويي څخه ځان ليري وساته | اې هلکه! په سخاوت کي ځان مشهور کړه |

**مشکل الفاظ:** مردمي: سخاوت،

**خلاصه:** يعني په سخاوت کي ځان مشهور کړه، د لويي کولو او بخل څخه ځان وساته.

| تا شود روئي دلت بدر منـير | با سخا باش وتواضع پيشه ګير |
|---|---|
| تر څو ستا د زړه مخ ځلانده سپوږمی سي | ځان سخي کړه او خاکساري عادت کړه |

**مشکل الفاظ:** بدر: د څوارلسمي سپوږمی، پيشه: عادت، منير: ځلانده.

**خلاصه**: يعني د سخاوت او خاکسارۍ په غوره کولو سره زړه ځلانده کيږي.

## در بيان کارهائي شيطاني

د شيطاني کارونو په بيان کې.

| | |
|---|---|
| چار خصلت فعل شيطاني بود | داند اينها هر که رحماني بود |
| څلور خويونه شيطاني کار دی | څوک چې بزرګ يې هغه دا زده کوي |
| عطشه مردم چو بگذشت از يکي | باشد آن از فعل شيطان بيشکي |
| د سړي ترچې چې کله د يو چا څخه راووزي | هغه بېله شکه د شيطان د کارو څخه دی |

**مشکل الفاظ**: عطشه: ترچې،

**خلاصه**: يعني ترچې زيات وختونه د شيطان د اثر او يا غفلت په وجه وي.

| | |
|---|---|
| خون بيني نيز از شيطان بود | آنکه ظاهر دشمن انسان بود |
| د پزې وينه هم د شيطان له خوا وي | چې د انسان ښکاره دښمن دی |
| خاميازه فعل شيطان ست وقی | اي پسر ايمن مباش از مکر وی |
| ارژمې د شيطان کار دی او قی | اې هلکه! د هغه د چم څخه مه بې غمه کيږه |

**مشکل الفاظ**: خاميازه: ارژمې، ايمن: بېله يېرې، مکر: چم.

**خلاصه**: يعني ارژمې او قی کول هم د شيطان د اثر څخه دي.

## در بيان علامات منافق

د منافق د نښو په بيان کې.

| | |
|---|---|
| دور باش اي خواجه از اهل نفاق | درجهنم دان منافق را دناق |
| اې ښاغلې! د منافق څخه ليرې اوسه | د منافق لپاره په دوږخ کې بند وګڼه |

**خلاصه**: يعني د منافقت څخه ځان وساته ځکه د منافق ځای دوږخ دی.

| سه علامت در منافق ظاهر ست | زان سبب مقهور قهر قاهر ست |
|---|---|
| په منافق کي دري ښکاره نښي دي | ځکه هغه د الله ﷻ په عذاب اخته دی |

| وعدهائي او همه باشد خلاف | قول او نبود بغير از كذب ولاف |
|---|---|
| د هغه ټولي وعدي خلاف وي | د هغه خبره ماسيوا د درواغ او مسخرو نه وي |

**خلاصه**: لومړی نښه داده چي وعده خلافي کوي او دوهمه دا چي خبري يې درواغ او يا مسخري وي.

| مؤمنانرا كم اعانت مي كـنـد | هم امانت را خيانت مي كنـد |
|---|---|
| د مؤمنانو ډېر لږ مرسته کوي | همدارنګه په امانت کي خيانت کوي |

**خلاصه**: يعني په امانت کي خيانت کوي او د امانت په ساتنه کي د مؤمنانو مرسته نه کوي.

| نيست در وعده منافق راوفـا | زان نباشد در رخش نور وصفا |
|---|---|
| د منافق په وعده کي وفا نه وي | ځکه د هغه په مخ کي نور او ځلا نه وي |

| تا نه پنداري منافق را امـــين | نيست باداشرش از روی زمين |
|---|---|
| ته پر منافق باندي هيڅکله د امين ګمان مه کوه | د هغه بدي دي د ځمکي د مخ څخه ختمه سي |

| از منافق اي پسر پرهيز كـــن | تيغ را از بهر قتلش تيز كـــن |
|---|---|
| اي هلکه! د منافق څخه ځان وساته | د هغه د وژني لپاره توره تېره کړه |

**خلاصه**: يعني تر خپله وسه د منافق څخه ځان ليري وساته بلکه هغه د وژلو وړ دی.

| بامنافق هر كه همره مي شود | منزل او درتگ چه مي شـــود |
|---|---|
| څوک چي د منافق سره يو ځای کيږي | د هغه ځای د ځاه په بيخ کي وي |

**خلاصه:** یعني څوک چي د منافق ملګرتیا کوي هغه به په تباهي کي وي.

## در بیان علامات متقي

د پرهیزګار د نښو په بیان کي.

| | |
|---|---|
| سه علامت باشد اندر متقي | کی بود نسبت تقي راباشقي |
| په پرهیزګار سړي کي دري خویونه وي | د پرهیزګار نسبت د بدبخت سره کله کیږي |

| | |
|---|---|
| پرحذر باش اي تقي از یار بد | تا نیندازد ترا در کار بد |
| اي پرهیزګاره! ځان وساته د بد سړي څخه | تر څو تا په بد کار اخته نه کړي |

**خلاصه:** پرهیزګارانو ته وینا دهچي د بد ملګري څخه ځان وساتئ.

| | |
|---|---|
| کم رود ذکر دروغش بر زبان | از طریق کذب باشد برکران |
| درواغ خبره د هغه پر ژبه نه وي | هغه د درواغو د لاري څخه لیري وي |

| | |
|---|---|
| از حلال وپاک هم گیرند گام | تا نیفتند اهل تقوی در حرام |
| هغوئ د حلال او پاک څخه هم قدم نیسي | تر څو پرهیزګاران په حرامو اخته نه سي |

**خلاصه:** یعني پرهیزګار خلک د ځینو حلالو او پاکو شیانو څخه هم د شک په وجه ځان ساتي تر څو په حرامو اخته نه سي.

## در بیان علامات اهل جنت

د جنتیانو د نښو په بیان کي.

| | |
|---|---|
| هر کرا باشد سه خصلت در سرشت | باشد آنکس بیشک از اهل بهشت |
| د چا په طبیعت کي چي دري خویونه وي | بیله شکه هغه د جنتیانو څخه دی. |

**خلاصه:** یعني د چا په طبیعت کي چي دري خویونه وي هغه جنتي دی یعني دغه دري شیان د جنتي سړي علامې دي.

| مي دهد آئينه دل راجــــلا | شكر درنعما وصبر اندر بـــلا |
|---|---|
| د زړه هنداري ته ځلا وركوي | په نعمتو كي شكر او په غم كي صبر |

**مشكل الفاظ:** نعما: نعمتونه، خوشحالي، جلا: ځلا،

**خلاصه:** يعني د نعمتونو تر لاسه كېدو په وخت كي شكر كول او د غم په وخت كي صبر كول زړه د باطني ناروغيو څخه پاكوي.

| حق زناردوزخش دارد نـــگاه | هر كه مستغفر بود اندرگناه |
|---|---|
| الله ﷻ هغه د دوږخ د اور څخه ساتي | څوك چي د گناهونو څخه بخښنه غوښتونكى وي |

**مشكل الفاظ:** مستغفر: توبه غوښتونكى، نگاه: ليري.

**خلاصه:** يعني څوك چي پر گناهونو توبه كوي هغه به د دوږخ داور څخه وساتل سي، استغفار دريمه نښه ده.

| خواهد او عذر گناه خويـشتن | هر كه ترسد از اله خــويشتن |
|---|---|
| هغه د خپلو گناهونو عذر غواړي | څوك چي د خپل معبود څخه ېيرېږي |

**خلاصه:** يعني د چا په زړه كي چي د الله ﷻ ېيره وي هغه د گناهونو څخه توبه كوي.

| ايزدش از اهل جنت كى كند | معصيت را هر كه پي درپى كند |
|---|---|
| الله ﷻ هغه كله د جنتيانو څخه گرځوي | څوك چي پرله پسې گناهونه كوي |

| وزبدان ومفسدان بيزار بـــاش | اي پسر دائم باستغفار بـــاش |
|---|---|
| او د بدو او فاسدانو څخه بېزار سه | اې هلكه! تل استغفار كوه |

| خير خود را وقف هر درويش كن | گركني خيري بدست خويش كن |
|---|---|
| خپل مال د هر بزرگ لپاره وقف كړه | كه چيري خيرات كوې نو په خپل لاس يې وكړه |

**خلاصه:** يعني كه چيري نيكي يا خيرات كول غواړې نو په خپل لاس يې وكړه

| یک درم کان را زدست خود دهند | به بود زان کز پس اوصد دهند |
|---|---|
| یو درهم چي خلک یې په خپل لاس ورکوي | دا تر دې غوره ده چي په هغه پسي سل درهم خیرات سي |

**خلاصه:** یعني په خپل ژوند کي یو درهم خیراتول تر مرګ وروسته د سلو درهمو خیراتولو څخه غوره دی ځکه په ژوند کي د مال سره مینه وي او د خوښي په شي کي ثواب زیات وي.

| گر به بخشي خود یکي خرمائي تر | بهتر از بعد تو صد مثقال تـر |
|---|---|
| که خپله یوه تازه خرما خیرات کړي | په تا پسي تر سل مثقاله زرو غوره ده |

**خلاصه:** یعني که چیري په خپل ژوند کي یوه تازه خرما خیرات کړې دا تر دې غوره ده چي ستا مرګ وروسته سل مثقاله زر خیرات کړل سي.

| هر که بخشیدي مکن با او رجوع | گرز پاافتاده از دست جـوع |
|---|---|
| کوم چي تا ورکړه په هغه پسي رجوع مه کوه | که څه هم ته د لوږي څخه عاجز سي |

**خلاصه:** یعني په خیرات کي رجوع مه کوه که څه هم په لوږي اخته یې، د امام اعظم رحمه الله په نزد رجوع کول یعني بېرته اخیستل مکروه دي.

| وآن بدان ماند که شخصي قی کند | بازمیل خوردن آن مي کـــند |
|---|---|
| او دا د دې سره مشابه دی چي یو څوک قی وکړي | بیا د هغه د خوړلو شوق وکړي |

**خلاصه:** یعني د تحفې او خیرات بېرته اخیستل داسي دي لکه قی کول او بیرته د هغه خوړل.

| باپسر گر چیز کی بخشد پدر | مي رسد گر باز گیرد زان پسر |
|---|---|
| که چیري پلار زوی ته یو شی ورکړي | نو حق لري چي د زوی څخه یې بېرته واخلي |

**خلاصه:** که چیري پلار زوی ته یو شی په تحفه کي ورکړي نو هغه بېرته اخیستلای سي.

| اي پسر شادي زمال وزر مجوی | انچه کس را داده دیگر مجوی |
|---|---|
| اي هلکه! په مال او زر کي خوشحالي مه پلټه | چا ته چي یو شی ورکړې بېرته یې مه اخله |

## در بیان آنکه در دنیا ازان خوش نباید بود

د هغه شي په بیان کي چي په دنیا کي په هغه خوشحالي ونه کړل سي

| سود او را درعقب ماتم بـــود | شادي دنیا سراسر غم بـــود |
|---|---|
| د هغې په ګټي پسې غم دی | د دنیا خوشحالي ټول غم دی |

**خلاصه**: یعني د دنیا خوشحالي په حقیقت کي غم دی ځکه د هغې د ګټي انجام ژړا ده.

| جائي شادي نیست دنیا هوشدار | نهي لاتفرح زدنیا گـــوش دار |
|---|---|
| دنیا د خوشحالۍ ځای نه دی هوښیار سه | په دنیا باندي د نه خوشحاله کېدو منع واوره |

| این سخن دارم زاستادان سبق | شادماني راندار ددوست حق |
|---|---|
| ما دغه خبره د استادانو څخه اورېدلې ده | الله ﷻ دنیوي خوشحالي نه خوښوي |

| روئي دل راجانب دلجوی کن | اي پسر بامحنت وغم خوی کن |
|---|---|
| د زړه مخ د محبوب په خوا کړه | اې هلکه د محبت او غم عادت جوړ کړه |

**خلاصه**: یعني په دنیا کي د محبت، غم او تکلیف هر څه عادت جوړ کړه او خدای ﷻ خپل هدف جوړ کړه.

| لیک از دنیا فرح جستن خطاست | گر فرح داري زفضل حق رواست |
|---|---|
| مګر د دنیا څخه خوشحالي پیدا کول غلط دي | که د الله ﷻ په فضل خوشحاله سې نو صحیح ده |

**مشکل الفاظ**: فرح: خوشحالي، فضل: مهرباني.

**خلاصه**: که چیري یو څوک د الله ﷻ په فضل او مهربانۍ خوشحاله سي نو صحیح کار دی مګر په دنیوي مال اؤ سامان خوشحاله کېدل بې ځایه کار دی.

| غم شود یار فرح جویــنـدگان | حزن واندوه ست قوت بندگان |
|---|---|
| غم د خوښۍ پلټونکو ملګری کېږي | غم او ستونزه د بندګانو خوراک دی |

**مشكل الفاظ:** حزن واندوه: غم او تكليف، قوت: غذا،

**خلاصه:** يعني په دنيا كي د الله ﷻ د بندگانو لپاره غم او تكليف لازمي شى دى.

| ازچه موجودي بينديش اي پسر | هر كسي دارد غم خويش اي پسر |
|---|---|
| ته د څه لپاره يې فكر وكړه اې هلكه | هر څوك خپل غم لري اې هلكه |

**خلاصه:** يعني ته د څه لپاره پيدا سوى يې، فكر وكړه څكه هر څوك خپل فكر لري.

| كرد ايزد مرترا ازنيست هست | از برائي آنكه باشي حق پرست |
|---|---|
| الله ﷻ ته د نيستي څخه موجود كړې | ددې لپاره چي ته د الله ﷻ بندگي وكړې |

**مشكل الفاظ:** حق پرست: د الله ﷻ بندگي كونكى،

**خلاصه:** يعني الله ﷻ ته د خپل بندگى لپاره پيدا كړى يې.

| تاتو باشي بنده معـــبود باش | باحيا وباسخا وجـــــود باش |
|---|---|
| تر څو چي ته يې د الله ﷻ بنده اوسه | حيا لرونكى، سخي او احسان كونكى سه |

**خلاصه:** يعني تر څو چي ژوندى يې د الله ﷻ بندگي كوه او د الله ﷻ څخه د حياء په وجه نافرماني پرېږده او د الله ﷻ د بندگانو سره احسان كوه.

## در بيان نصائح ونتائج دنيوي

د دنيوي نصيحتونو او نتيجو په بيان كي.

| خواب كم كن اول روز اي پسر | نفس را بدخو مياموز اي پسر |
|---|---|
| خوب مه كوه د ورځي په پيل كي اې هلكه | نفس ته بد خوى مه زده كوه اي هلكه |

**خلاصه:** يعني د ورځي په پيل كي خوب كول بد عادت دى، خپل ځان ته داسي بد عادت مه ښيه.

**فائده:** د دغه باب زياتي خبري دنيوي او طبي دي چي شرعي تاوان پكښي نسته.

| آخر روزت نكو نبـــــود منام | پيشتر از شام خواب آمد حرام |
|---|---|
| د ورځي په پاى كي خوب كول ښه نه دي | تر ماخستن مخكي خوب كول هم بد دي |

**خلاصه**: یعني د مازدیګر او ماخستن په منځ کي خوب کول بد دي.

| اهل حکمت رانمي آید صواب | درمیان آفتاب وسایه خـــواب |
|---|---|
| پوهان یې ښه نه ګڼي | د لمر او سایې په منځ کي خوب کول |

**خلاصه**: د پوهانو په نزد داسې ځای بیده کېدل چي نیم بدن لمر ته او نیم سایې ته وي صحیح نه دي ځکه په داسې کولو سره د پیس ناروغي پیدا کیږي، په حدیث شریف کي هم د دې څخه منع راغلې ده.

| اي پسر هر ګز مروتنها سـفر | باشدت رفتن سفر تنها خـطر |
|---|---|
| اې هلکه! هیڅکله یوازې په سفر مه ځه | یوازې سفر کول ستا لپاره خطره ده |

**خلاصه**: یعني یوازې سفر کول د خطرې څخه خالي نه وي ځکه که چیري په سفر کي یو ه پېښه وسي نو ځان ساتل به مشکل وي او همدارنګه شیطان هم یوازې سړی ژر ګمراه کولای سي.

| دست را بررخ زدن شوم ست | استماع علم کن زاهل عـــلوم |
|---|---|
| لاس پر مخ اېښودل منحوس (بد) دي | د عالمانو څخه د علم خبري واوره |

**خلاصه**: یعني مخ پر لاس تکیه کول ځکه دا د غفلت نښه ده.

| شب در آئینه نظر کردن خطا ست | روزګر بیني تو روئي خود رواست |
|---|---|
| د شپې په هنداره کي کتل بد دي | که د ورځي خپل مخ ووینې نو صحیح دي |

**خلاصه**: یعني د شپې په هنداره کي کتل بد کار دی ځکه د شپې د شکل په بل ډول لیدل زیات وختونه بېره پیدا کوي.

| خانه ګر تنها وتاریـــکت بود | مونسي باید که نزدیکت بـود |
|---|---|
| که ستا کور یوازې او تاریک وي | نو باید یو ملګری درسره نژدې وي |

**خلاصه**: یعني په یوازې او تاریک کور کي یوازې اوسېدل د خطر څخه خالي نه دي باید یو څوک د ځان سره ملګری کړل سي.

| نزد اهل علم سرد آمد چو يخ | دست را کم زن تو در زير زنخ |
|---|---|
| دا خبره د عالمانو په نزد تر يخي يخه ده | تر زني لاندي لاس مه ايږده |

**خلاصه:** يعني د جاهلانو غوندي لاس تر زني کښېښستل بد عادت دی.

| درميان شان نيائي زينهار | چارپايان راچو بيني در قطار |
|---|---|
| نو هيڅکله د هغوئ په منځ کي مه راځه | کله چي ته حيوانان په قطار کي ووينې |

| روز وشب مي باش دائم در دعا | تا فزايد قدر وجاهت را خدا |
|---|---|
| ورځ او شپه تل په دعاء کي اوسه | ددې لپاره چي الله ﷻ ستا قدر او مرتبه لوړه کړي |

**خلاصه:** يعني شپه او ورځ دعاوي کوه ځکه د الله ﷻ په وړاندي عاجزي کول د مرتبې لوړېدو سبب دی.

| رونکوئي کن نکوئي درنهان | تا شود عمرت زياده درجهان |
|---|---|
| ولاړ سه او په پټه نيکي کوه | ددې لپاره چي په دنيا کي ستا عمر زيات سي |

**خلاصه:** يعني په بې ريا عبادت کولو سره په عمر کي برکت لوېږي.

| معصيت کم کن بعالم زينهار | تا نکاهد روزيت در روزگار |
|---|---|
| خبردار اوسه! په دنيا کي ګناه مه کوه | ددې لپاره چي په زمانه کي ستا رزق کم نه سي |

| ايزد اندر رزق او نقصان كند | هر كه رو در فسق ودر عصيان كند |
|---|---|
| الله ﷻ د هغه په رزق کي کمښت کوي | څوک چي فسق او ګناهو ته مخه کړي |

**خلاصه:** يعني څوک چي په فسق او ګناهو کي پر مخ ولاړ سي نو الله ﷻ د هغه رزق کموي.

| در سخن كذاب را نبود فروغ | کم شود روزي زگفتار دروغ |
|---|---|
| د درواغو په خبره کي نور نه وي | کمېږي روزي په درواغ ويلو سره |

**خلاصه:** يعني په درواغ ويلو سره هم رزق کمېږي او همدارنګه خبره يې بې اغېزې وي.

| فاقه آرد خواب بسیار اي پسر | خواب کم کن باش بیدار اي پسر |
|---|---|
| مفلسي راولي ډېر خوب کول اې هلکه | لږ خوب کوه او بیداره اوسه اې هلکه |

**خلاصه:** یعني ډېر خوب کول د مفلسۍ او فقر سبب دی ځکه د لږ خوب کولو او د شپې عبادت کولو عادت جوړ کړه.

| هر که در شب خواب عریان مي کند | در نصیب خویش نقصان مي کند |
|---|---|
| څوک چې د شپې لوڅ بیدېږي | په خپل نصیب کې تاوان کوي |

**مشکل الفاظ:** عریان: لوڅ، نصیب: بخت، قسمت.

**خلاصه:** یعني په لوڅ بدن خوب کول د رزق د تنګۍ سبب دی په خاصه توګه کله چې ستر هم پټ نه وي نو بیا ډېر بد دی.

| بول عریان هم فــقیري آورد | انــده بســیار پــیري آورد |
|---|---|
| لوڅ بولي کول هم فقیري راولي | زیات غم کول بوډاتوب راولي |

**خلاصه:** یعني په لوڅ بدن او لوڅ سر بولي کول هم مسکیني راولي او ډېر غم کول بوډاتوب راولي.

| در جنابت بد بود خوردن طعام | ناپسند ست این بنزد خاص وعام |
|---|---|
| د جنابت په حالت کې خوراک کول بد دي | دغه کار ناخوښه دی د خاصو او عامو په نزد |

| ریزه نان رامیفگن زیر پــائي | گرهمي خواهي تو نعمت از خدای |
|---|---|
| د ډوډۍ ټوټې تر پښو مه لاندې کوه | که چیرې ته د الله ﷻ څخه نعمت غواړې |

| شب مزن جاروب اندر خــانه | خاکروبه هم منه در زیــر در |
|---|---|
| د شپې په کور کې جارو مه وهه | کچره هم تر دروازې لاندې مه ایږده |

**خلاصه:** یعني د شپې جارو وهل او کچره په کور کې پرېښودل د مسکینۍ سبب دي.

| نعمت حق برتومي گردد حرام | گر بخواني باب ومامت رابنام |
|---|---|
| د الله ﷻ نعمت به پر تا حرام سي | که چیري ته خپل پلار او مور په نامه وبولې |

**مشکل الفاظ**: باب: پلار، مامت: ستا مور.

**خلاصه**: یعني مور او پلار په نامه بلل د الله ﷻ د ناراضګۍ او بدمرغۍ سبب دی.

| بینوا گردي وافتي در وبـــال | گر به هر چوبي کني دندان خلال |
|---|---|
| ته به بې سامانه سې او په سختي کي به سې | که په هر لرګي غاښونه خلالوې |

**مشکل الفاظ**: چوب: لرګی، بي نوا: بې سامانه،

**خلاصه**: یعني په هر شي غاښونه پاکول هم د مسکینۍ او فقر سبب دی، د خاص شي بندوبست کول ښه دي.

| از برائي دست شستن آب جوئي | دست را هرگز بخاک وگل مشوی |
|---|---|
| د لاس پرېولو لپاره اوبه پیدا کړه | لاسونه په خاورو او ختو مه پرېوله |

**خلاصه**: یعني په خاورو او ختو لاسونه پرېولل هم د مسکینۍ سبب دی مګر که چیري یو شی په یوازي اوبو نه پاکیږي نو د خاورو استعمال بد نه دی.

| کم شود روزي زکردار چنـین | اي پسر در آستان در مــشین |
|---|---|
| په داسي کولو سره روزي کمیږي | اې هلکه! په دروازه کي مه کښېنه |

**خلاصه**: یعني د دروازې په چوکاټ کي کښېنستل هم د رزق د کمښت سبب دی.

| باش دائم از چنین خصلت بدر | تکیه کم کن نیز در پهلوی در |
|---|---|
| تل د داسي عادت څخه لیري اوسه | د دروازې پر کونج هم تکیه مه کوه |

| وقت خود را دان که غارت میکني | در خلا جاگر طهارت مي کني |
|---|---|
| نو پوه سه چي خپل وخت ضائع کوې | که چیري ته په بیت الخلاء کي اودس کوې |

**مشکل الفاظ**: خلاجا: بیت الخلاء، تشناب، غارت: برباد،

| باید از مردان آدب اموختن | جامه را برتن نشاید دوختن |
|---|---|
| باید د کاملو انسانانو څخه ادب زده سي | جامه باید پر بدن ونه ګنډل سي |

**خلاصه**: یعني پر بدن باندي د جامې ګنډل د ادب خلاف کار دی.

| روزیت کم گرد داي درویش بیش | گر بدامن پاک سازي روئي خویش |
|---|---|
| اي بزرګه! ستا روزي به ډېره کمه سي | که چیري په لمن خپل مخ پاکوې |

**خلاصه**: یعني په لمن د مخ پاکول هم د روزۍ کمولو سبب دی.

| زانکه رفتن رانیابي هیچ سود | دیر رو بازار بیرون آئي زود |
|---|---|
| ځکه ته به هلته په تګ سره هیڅ ګټه تر لاسه نه کړې | بازار ته په ځنډ سره ځه او ژر راوځه |

**خلاصه**: یعني بازار د غفلت ځای دی، هلته بیله ضرورته پاته کېدل بې ګټې دي ځکه په ځنډ سره تلل او ژر بېرته راتلل پکار دي.

| ره مده دود چراغ اندر دماغ | نیک نبود گرکشي ازدم چراغ |
|---|---|
| په دماغ کي د څراغ دود ته لار مه ورکوه | په پوکلو سره څراغ مړ کول ښه نه دي |

| زانکه آن خاص تو باشد خوشترک | کم زن اندر ریش شانه مشترک |
|---|---|
| ځکه ستا ژمونځ خاص کېدل ښه دي | په ږېره کي مشترکه ژمونځ مه وهه |

**مشکل الفاظ**: ریش: ږېره، شانه: ژمونځ.

| زانکه مي ارد فقیري اي پسر | از گدایان پارهائي نان مخر |
|---|---|
| ځکه دا فقیري راولي اې هلکه | د فقیرانو څخه د ډوډۍ ټوټې مه رانیسه |

**خلاصه**: یعني د فقیرانو څخه ډوډۍ رانیول او خوړل هم د فقر سبب ګرځي.

| باشد اندرماندنش نقصان قوت | دور کن از خانه تار عنکبوت |
|---|---|
| د هغې په پرېښودو کي د خوراک کمښت راځي | د کور څخه د جوالګي ځاله لیري کړه |

**خلاصه:** یعني په کور کي د جوالګي ځالي پرېښودل هم په رزق کي کمي راولي.

| خشک ریش خویش راتازه مکن | خرج را بیرون زاندازه مـــکن |
|---|---|
| خپل وچ سوی زخم مه تازه کوه | مصرف تر اندازې زیات مه کوه |

| چونکه رهواري بره لنگي مکن | دسترس گر باشدت تنگي مکن |
|---|---|
| کله چي تلونکی يې نو ګوډ والی مه کوه | که چیري توان لرې نو تنګي مه کوه |

**مشکل الفاظ:** دسترس: توان، رهواري: تېزآس، لنګي: ګوډ توب.

**خلاصه:** یعني د توان درلودو سربېره په ضروري شیانو کي تنګي مه کوه، او بیا وایي چي کله ته قدم وهونکی آس یې نو د ګوډ چم مه کوه.

## در بیان فوائد صبر

د صبر د ګټو په بیان کي.

| غم مکن از دیدن سختي گران | تا شوي در روزگار از صابـران |
|---|---|
| د سختی او تکلیف په لیدو غم مه کوه | د دې لپاره چي په زمانه کي د صابرانو څخه سې |

| خویش را از صابران مشمر هلا | گرترش سازي تو روی اندر بلا |
|---|---|
| نو ځان د صابرانو څخه مه ګڼه. هیڅکله | که چیري ته په غم کي مخ تروش کړې |

| نزد اهل صدق شاکر نیســتي | در بلا وقتي که صابر نیسـتي |
|---|---|
| د ریښتنو بندګانو په نزد شکر کونکی هم نه یې | که د غم په وخت کي صبر کونکی نه یې |

**خلاصه:** یعني کله چي د غم په وخت کي صبر نه کوې نو د نعمت په وخت کي شکر هم نه کوې

| | |
|---|---|
| بي شکايت صبر تو باشد جميل | باکسي کم کن شکايت اي خليل |
| بېله شکايت کولو به ستا صبر ښه وي | چا ته کم شکايت کوه اې ملګرې |

| | |
|---|---|
| گر نباشد فخر از درويشــيت | کی باهل فقر باشد خويشيت |
| که چيري ته په فقيري فخر نه کوې | نو د فقيرانو سره به کله ستا خپلوي وي |

**خلاصه**: يعني که چيري ته په فقيري او مسکينۍ خوشحاله نه يې نو د بزرګانو او درويشانو سره ستا هيڅ تعلق نسته ځکه هغوئ په فقر او مسکينۍ فخر کوي.

| | |
|---|---|
| گر همه جنبش بفرمان باشدت | حرمت از خدمت فراوان باشدت |
| که ستا ټولي کرني د الله ﷻ د فرمان مطابق وي | نو په خدمت سره به ستا عزت زيات سي |

**مشکل الفاظ**: جنبش: کرنه، حرمت: عزت، فراوان: زياتوب.

**خلاصه**: يعني که چيري ستا هر کار د الله ﷻ د حکم مطابق وي نو د خلګو په خدمت کولو سره به الله ﷻ ستا عزت او مرتبه نور هم زيات کړي.

| | |
|---|---|
| بنده از خدمت بعقبی مي رسد | ليکن از حرمت بمولی مي رسد |
| بنده په خدمت سره تر آخره رسيږي | او په حرمت سره تر مولا پوري رسيږي |

**خلاصه**: يعني بنده د مخلوق په خدمت سره د آخرت ثواب تر لاسه کوي او د خدمت په وجه چي کوم عزت او مقبوليت تر لاسه کيږي د هغه په ذريعه تر مولی پوري رسيږي.

| | |
|---|---|
| حرمتت در خدمت آرام دل ست | هر که خدمت کرد مرد مقبل ست |
| په خدمت کي ستا عزت او د زړه آرام دی | چا چي خدمت وکړ هغه هوښيار سړی دی |

**خلاصه**: يعني په خدمت سره چي کوم عزت تر لاسه کيږي هغه د زړه د سکون ذريعه ده.

| | |
|---|---|
| گرنکردي اي پسر گرد خلاف | آنگهي زيبد ترادر صــبر لاف |
| اې هلکه! که ته د شريعت خلاف کار ونه کړې | هغه وخت تا ته په صبر کي خبره کول روا دي |

**خلاصه**: يعني كله چې د شريعت خلاف كار ته نژدې هم ورنه سې نو بيا ستا د صبر كولو دعوه رښتيا ده.

| گرهمي داري فرج را انتـظار | در بلا جز صبر نبود هيچ كار |
| --- | --- |
| كه چيري ته د پراخۍ په انتظار كي يې | نو په غم كي د صبر څخه ماسيوا بل كار نسته |

**خلاصه**: يعني كه چيري ته تر سختۍ وروسته د پراخۍ او اسانۍ اميد لرې نو يوازې صبر د هغې ذريعه ده.

## در بيان تجريد وتفريد

د تجريد (خالي كولو) او تفريد (يوازي كولو) په بيان كي.

يعني د الله ﷻ ماسيوا د نورو شيانو څخه د زړه خالي كولو او يوازي كولو بيان.

| گر صفا مي بايدت تجريد شو | ور خبرداري زاهل ديـــد شو |
| --- | --- |
| كه چيري پاكي غواړې نو تجريد والا سه | كه چيري خبر يې نو بصيرت والا سه |

**مشكل الفاظ**: اهل ديد: بصيرت والا، تجريد: زړه د نورو شيانو څخه خالي كول.

**خلاصه**: يعني كه چيري ته د زړه پاكي غواړې نو بصيرت اختيار كړه او كه چيري په خپل انجام خبر يې نو پرهيزگار جوړ سه.

| ترك دعوى هست تجريد اي پسر | فهم كن معنى تفريد اي پسر |
| --- | --- |
| د دعوې پرېښودل تجريد دي اې هلكه | د تفريد په معنى پوه سه اې هلكه |

**خلاصه**: يعني تجريد د لويي او نفس پرېښودو نوم دى، د تفريد معنى به مخته ذكر سي.

| اصل تجريدت وداع شهوت ست | بلكه كلي انقطاع شهوت ست |
| --- | --- |
| ستا اصل تجريد د شهوت رخصتول دي | بلكه د شهوت په پوره توگه ختمول دي |

**خلاصه**: يعني اصل تجريد د نفساني خواهشاتو ختمول دي.

| گردهي یکبار شهوت را طلاق | آن زمان گردي تو در تفرید طاق |
|---|---|
| که ته شهوت ته په یو وار طلاق ورکړې، | هغه وخت ته په تفرید کي بې ساري شوې |

**خلاصه:** یعني د شهوت پرېښودل تجرید دي مگر د شهوت په پوره توگه له منځه وړل او انتهائي درجې ته رسېدل تفرید دي.

| گر تو برداري زغیرش اعتمید | آنگه از تجرید گردي با امــید |
|---|---|
| که ته د غیر الله څخه امید ختم کړې | هغه وخت به د تجرید امید لرونکی سې |

| اعتمادت چون همه بر حق بود | آن دمت تفرید جان مطلق بود |
|---|---|
| کله چي ستا ټول باور پر الله ﷻ وي | هغه وخت ستا د ځان تفرید کامل سو |

| ترک دنیا کن برائي اخـــرت | وزبدن برکش لباس فاخــرت |
|---|---|
| دنیا پرېږده د آخرت لپاره | او ستا د بدن څخه د فخر جامه وکاږه |

| گربیابي از سعادت این مقام | صاحب تجرید باشي والسلام |
|---|---|
| که چیري ته د بخت څخه دغه مقام ترلاسه کړې | نو تجرید والا به سې او بس |

| گر زدنیا دست شوی بهر حق | وانگه از تفرید گویندت سبق |
|---|---|
| که ته د دنیا څخه لاس پرېولې د الله ﷻ لپاره | نو هغه وخت تا ته د تفرید څخه سبق وایي |

**خلاصه:** یعني کله چي د مخلوق څخه لاس پرېولې او یوازي الله ﷻ ته متوجه سې نو هغه به د تفرید درجه ترلاسه کړې.

| رو مجرد باش و دائم مرد باش | تا بهر فرقي نشیني گردبــاش |
|---|---|
| ولاړه سه همیشه یوازي اوسه او نارینه سه | چي پر هر تندي کښېنستې گرز (دوره) سه |

**مشکل الفاظ:** مجرد: خالي، گرد: دوره، گرز،

| | |
|---|---|
| گرد کبر وعجب وخود رائي مگرد | قدر خود بشناس وهر جائي مگرد |
| په لويي، ځان خوښوني او فخر کي مه گرځه | خپل قدر وپېژنه او هر ځای مه گرځه |
| هر که گرد کوره انگشت گشت | جامه از دودش سياه وزشت گشت |
| څوک چي د سکرو د بټي پر شاوخوا وگرځي | د هغه جامي به د دود څخه توري سي |

**مشکل الفاظ**: انگشت: کوله، زشت: بد،

| | |
|---|---|
| وانکه باعطار مي گردد قريب | اوهمي يابد زبوی خوش نصيب |
| او څوک چي د عطر پلورونکي سره گرځي | هغه به د خوشبويي څخه برخه تر لاسه کړي |
| همنشين صالحان باش اي پسر | دور باش از رند وقلاش اي پسر |
| د صالحانو سره ناسته ولاړه کوه اي هلکه | د بدمعاش او بد سري څخه ليري سه اي هلکه |

**مشکل الفاظ**: رند: هغه سړی چي د مذهب پابند نه وي، قلاش: لوچک، بدمعاش.

| | |
|---|---|
| جانب ظالم مکن ميل اي عزيز | ورکني گردي ازان خيل اي عزيز |
| د ظالم پلوي مه کوه اي گرانه | او که داسي وکړي نو د هغي دلي څخه به سي |

**خلاصه**: يعني د ظالمانو ملگرتيا مه کوه کنه نو ته به د هغوئ څخه وشمېرل سې.

| | |
|---|---|
| روز اهل ظلم بگريز اي فـــقير | تانسوزي زآتش تيز اي فـــقير |
| د ظالمانو څخه تېښته وکړه اي فقيره | تر څو ته په تېز اور ونه سوځې اي فقيره |

**خلاصه**: يعني د ظالمانو څخه تېښته کوه کنه نو ته به د دوږخ په تېز اور وسوځې.

| | |
|---|---|
| صحبت ظالم بسان آتش ست | زانکه خلق ازار تند وسرکش ست |
| د ظالمانو ملگرتيا د اور غوندي ده | ځکه د مخلوق ازارونکی بد او نافرمان دی |

**مشکل الفاظ**: سان: مثل، تند: تېز، بد،

| از حضور صالحان صالح شوی | وزنشيني بابدان طالح شوى |
| --- | --- |
| د نېکانو په ملګرتیا به نېک سې | او که د بدو سره ناسته کوې نو بدکار به سې |

**مشکل الفاظ**: طالح: بدکار.

| هر که او باصالحان همدم شود | در حريم خاص حق محرم شود |
| --- | --- |
| څوک چي د نېکانو ملګری سي | هغه به د الله ﷻ په دربار کي رازدار سي |

**مشکل الفاظ**: حريم: چاردېواري، يعني دربار،

| اي پسر مگذار راه شـــرع را | اصل يابي گر بگيري فـرع را |
| --- | --- |
| اې هلکه! د شريعت لار مه پرېږده | بنياد به تر لاسه کړې که چيري ښاخ ونيسې |

**خلاصه**: د اصل څخه مراد اصلي مقصد چي وصول الی الله دی او دفرع څخه مراد د شريعت طريقه ده چي د وصول الی الله وسيله ده .

| از شريعت گر نهي بيرون قدم | در ضلالت آفتي ورنج والـــم |
| --- | --- |
| که د شريعت څخه دباندي قدم کښېږدې | نو په ګمراهۍ، پرېشانۍ او غم کي به ولوېږې |

| هر که در راه ضلالت مي رود | از جهالت بابطالت مــي رود |
| --- | --- |
| څوک چي د ګمراهۍ پر لار ځي | هغه په ناپوهۍ سره د بربادۍ پر لاز ځي |

| حق طلب وزكار باطل دور باش | درسخـا ومردمي مشهور باش |
| --- | --- |
| د حق پلټنه وکړه او د باطل څخه لیري سه | په سخاوت او مېړانه کي مشهور سه |

| هر که نگزيند صراط مستقيم | درعذاب اخرت ماند مقـــيم |
| --- | --- |
| څوک چي سيده لار اختيار نه کړي | هغه به د آخرت په عذاب کي هستوګن وي. |

**مشکل الفاظ** : صراط مستقيم: سيده لار، مقيم: اوسېدونکی.

| در ره شيطان منه گام اي اخي | تانگردي خوار وبدنام اي اخي |
|---|---|
| د شيطان پر لار قدم مه اېږده اي زما وروره | تر څو ته خوار او بدنام نه سې اي زما وروره |

**خلاصه**: گام نهادن: قدم اېښودل، تلل، يعني د شيطان پر لار مه ځه تر څو د الله ﷻ په وړاندي ذليل او خوار او د خلګو په وړاندي بدنامه نه سې.

| هر كه در راه حقيقت سالک ست | روز وشب خائف زقهر مالک ست |
|---|---|
| څوک چي د حقيقت پر لار روان يې | هغه شپه او ورځ د الله ﷻ د قهر څخه په بېره کي وي |

| برخلاف نفس كن كار اي پسر | تا نيفتي زار در نار سـقر |
|---|---|
| د نفس پر خلاف کار وکړه اي هلکه | تر څو ته د دوږخ په اور کي ونه لوېږې |

**خلاصه**: زار: عاجز، ناتوان، سقر: د دوږخ نوم،

## در بيان كرامات الهي

د الله ﷻ د کراماتو په بيان کي.

| چار چيز است از كرامتهاى حق | مقبل ست آنكس كه گيرد اين سبق |
|---|---|
| څلور شيان د الله ﷻ د کرامتونو څخه دي | بختور دی هغه کس چي دغه سبق واخلي |

**مشكل الفاظ**: کرامت: شرف او بزرګي، يعني د الله ﷻ خاص انعام،

**خلاصه**: يعني څلور شيان د الله ﷻ په خاص کرم او توفيق سره کېږي.

| اول آن باشد كه باشد راست گوى | باسخاوت باشد وهم تازه روى |
|---|---|
| لومړی دا چي رېښتيا ويونکی وي | سخاوت کونکی او خوش مزاجه وي |

| بعد ازان حفظ امانت باشدش | هم نظر پاک از خيانت باشدش |
|---|---|
| وروسته تر هغه د امانت ساتنه کوي | د هغه نظر د خيانت څخه پاک وي |

| باشد آنکس مؤمن وپرهیزگار | هر کرا حق داده باشد این چهار |
|---|---|
| هغه به مؤمن او پرهیزګار وي | چا ته چي الله ﷻ دغه څلور شیان ورکړي وي |

**خلاصه:** یعني څوک چي دغه څلور عادتونه ولري هغه به کامل مؤمن او پرهیزګار وي، یعني دغه څلور: لومړی رښتیا وایي، دوهم سخي او خوش طبیعته وي، دریم دا چي د امانت ساتنه کوي او څلورم دا چي نظر د خیانت څخه پاک وساتي.

## در بیان آنکه دوستي رانشاید

د هغه چا په بیان کي چي د ملګرتیا وړ نه وي

| تو طمع زان دوست بردار اي پسر | دوست بد باشد زیان کار اي پسر |
|---|---|
| ته د داسي ملګري څخه طمع پورته کړه اي هلکه | بد ملګری تاواني وي اي هلکه |

**خلاصه:** یعني بد ملګری تاواني وي د هغه څخه د ګټي طمع مه کوه.

| دوست مشمارش بدوهمدم مباش | هر که مي گوید بدیهائي تو فاش |
|---|---|
| هغه دوست مه ګڼه او ملګرتیا یې مه کوه | څوک چي ستا بدی ښکاره کړي |

| از چنان کس خویشتن را دور دار | دوستي هر گز مکن باباده خوار |
|---|---|
| د داسي کس څخه خپل ځان لیري وساته | د شراب خوره سره هیڅکله دوستي مه کوه |

| دور از وی باش تاداري حیات | منعمي گر مي کند ترک زکوة |
|---|---|
| د هغه څخه لیري سه تر څو چي ژوندی یې | که یو شتمن سړی زکوة ورکول پرېږدي |

**خلاصه:** یعني زکوة نه ورکونکی د دوستۍ وړ نه دی بلکه ځان ور څخه لیري ساته.

| گر سرخود بر قدمهائي تو سود | دور شوزان کس که خواهد از تو سود |
|---|---|
| که څه هم خپل سر ستا پر پښو کښېږدي | د هغه چا څخه لیري سه چي ستا څخه سود غواړي |

**خلاصه:** يعني د سود خوړونكي سړي څخه ځان ليري كړه كه څه هم هغه خپل سر ستا په پښو كي كښېږدي او ډېره زياته عاجزي وكړي .

| اي پسر از سود خواران كن حذر | خصم ايشان شد خدائي دادگر |
| --- | --- |
| اې هلكه! د سود خوړونكو څخه پېره وكړه | انصاف كونكي الله ﷻ د هغه دښمن دی |

**خلاصه:** خصم: دښمن، دادگر: انصاف كونكي،

| آنكه از مردم همي گيرد ربا | زينهار او ر انگوئي مــــرحبا |
| --- | --- |
| څوك چي د خلكو څخه سود اخلي | ته هغه ته هيڅكله بنه راغلاست مه وايه |

**خلاصه:** يعني سود خوړونكی د دوستی او ملګری ور نه دی.

## در بيان غمخواري مردم

د خلكو د غم خوړلو په بيان كي.

| بر سر بالين بيماران گـــــذر | زانكه هست اين سنت خيرالبشر |
| --- | --- |
| د ناروغانو د بالښت سره تېر سه | ځكه دا د رسول الله ﷺ سنت دي |

**مشكل الفاظ:** بالين: بالښت، خير البشر: غوره د انسانانو، يعني رسول الله ﷺ،

**خلاصه:** يعني د ناروغانو پوښتنه وكړه ځكه د ناروغ پوښتنه كول د رسول الله ﷺ سنت دی.

| ناتواني تشنه را سيراب كـــن | در مجالس خدمت اصحاب كن |
| --- | --- |
| تر څو چي توان لرې تږي ته اوبه وركړه | په مجلس كي د ملګرو خدمت وكړه |

**مشكل الفاظ:** تشنه: تږی، سيراب: اوبه كول.، اصحاب: ملګري.

| خاطر ايتام را دريــــــاب نيز | تا ترا پيوسته حق دارد عـزيز |
| --- | --- |
| د يتيمانو هم پاملرنه وكړه | تر څو تا الله ﷻ تل غوره كړي |

**خلاصه:** يعني د يتيمانو پاملرنه وکړه تر څو الله ﷻ ستا سره مينه وکړي.

| چون شود گريان يتيمي ناگهان | عرش حق درجنبش آيد آن زمان |
|---|---|
| که ناڅاپه يو يتيم په ژړا سي | د الله ﷻ عرش په لړزه سي په هغه وخت کي |

**خلاصه:** يعني که چيري يتيم ته تکليف ورسيږي نو د الله ﷻ عرش په حرکت کي راسي.

| چون يتيمي راکسي گريان کند | مالک اندردوزخش بريان کند |
|---|---|
| که يو څوک يتيم په ژړا کړي | مالک به هغه په دوږخ کي وسوځي |

**خلاصه:** يعني څوک چي يتيم ته تکليف ورسوي نو هغه به په دوږخ کي وسوځل سي.

| آنکه خنداند يتيم خسته را | باز يابد جنت در بسته را |
|---|---|
| څوک چي غمجن يتيم په خندا کړي | بندي دروازې والا جنت به خلاص پيدا کړي |

| هر که اسرارت کند فاش اي پسر | از چنان کس دور مي باش اي پسر |
|---|---|
| څوک چي ستا رازونه ښکاره کړي اې هلکه! | د هغه څخه ځان ليري کړه اې هلکه! |

| در جواني دار پيران را عزيز | تا عزيز ديگران باشي تو نيز |
|---|---|
| په ځوانۍ کي د سپينږيرو سره ښه کوه | تر څو نور خلک هم ستا سره ښه وکړي |

**خلاصه:** يعني په ځوانۍ کي د سپين ږيرو عزت او خدمت وکړه تر څو ته هم په خپل سپين ږيرتوب کي د نورو خلکو څخه عزت او خدمت ترلاسه کړې.

| بر ضعيفان گر ببخشائي رواست | کين زسيرتهائي خوب اوليا ست |
|---|---|
| که ته پر کمزورو مهرباني وکړې نو ښه خبره ده | ځکه دا د وليانو د ښو عادتونو څخه دي |

| بر سرسيري مخور هر گز طعام | تا نميرد در بدن قلب اي غلام |
|---|---|
| په ماړه نس هيڅکله ډوډۍ مه خوره | تر څو په بدن کي زړه مړ نه سي اې هلکه |

**خلاصه:** يعني په ماره نس دوديٰ مه خوره تر څو زړه دي مړ نه سي.

| علت مردم زپرخواري بـود | خوردن پر تخم بيماري بـود |
| --- | --- |
| انسان ته ناروغي د ډېر خوراک څخه وي | ډېر خوراک کول د ناروغۍ تخم دی |

**خلاصه:** يعني زياتي ناروغۍ د ډېر خوراک څخه وي.

| راحتي نبود حسود شـوم را | كاذب بدبخت را نبود وفـا |
| --- | --- |
| بد حسد کونکی ته هيڅکله ارام نه وي | بدبخت درواغجن وفا نه لري |

**خلاصه:** يعني حسد کونکی د خپل حسد په وجه ارام تر لاسه کولای نه سي او د هغه په مزاج کي وفاداري نه وي.

| هر منافق را تو دشمن زار باش | ازوی وازفعل وي بيزار بـاش |
| --- | --- |
| د هر منافق سره دښمني کوونکی سه | د هغه څخه اود هغه د کار څخه بېزار سه |

| توبه بدخو كجا محـكم بود | مربخيلان رامروت كـم بود |
| --- | --- |
| د بدعادته سړي توبه کله ټينګه وي | بخيلان ډېر لږ سخاوت کوي |

| تا شود دين تو صافي چون زلال | باش دائم طالب قوت حـلال |
| --- | --- |
| ددي لپاره چي ستا دين د خوږو اوبو غوندي پاک سي | تل د حلال رزق پلټونکی سه |

| آنكه باشد درپی قوت حـرام | در تن او دل همي ميرد تـمام |
| --- | --- |
| څوک چي په حرام خوراک پسې وي | د هغه په بدن کي زړه بالکل مړ کيږي |

**خلاصه:** يعني د حرام مال خورونکی زړه مړ وي او په هغه کي د ايمان تازګي نه وي.

# در بیان صله رحم

د صله رحمي په بیان کي.

| تاکه گردد مدت عمر تو بیش | روبپرسیدن برخویشان خویش |
|---|---|
| تر څو ستا د ژوند وخت زیات سي | د ځپلوانو د حال پوښتني لپاره ولاړ سه |

**خلاصه:** یعني د خپلوانو په پوښتنه او نیکي کولو سره په عمر کي برکت لویږي.

| بیگمان نقصان پذیرد عمر او | هر که گرد اند زخویشاوندرو |
|---|---|
| بېله شکه د هغه عمر تاواني کیږي | څوک چي د خپلوانو څخه مخ اړوي |

**خلاصه:** یعني څوک چي د خپلوانو سره تعلق ختموي او ښېگڼه ورسره نه کوي نو د هغه په عمر کي برکت نه وي.

| جسم خود قوت عقارب مي کند | هر که او ترک اقارب مي کند |
|---|---|
| هغه خپل بدن د لړمانو خوراک گرځوي | څوک چي خپلوان پرېږدي |

**مشکل الفاظ:** یعني څوک چي د خپلوانو سره صله رحمي نه کوي هغه خپل ځان د دوږخ د مارانو او لړمانو خوراک گرځوي،

| بد تر از قطع رحم چیزي مدان | گرچه خویشان تو باشد از بدان |
|---|---|
| تر قطع رحمي هیڅ شی بد مه گڼه | که څه هم ستا خپلوان د بدو خلکو څخه وي |

| نامش از وی بدي افسانه شد | هر که او از خویش خود بیگانه شد |
|---|---|
| د هغه نوم په بدی سره مشهور سو | څوک چي د خپلوانو څخه پردی سي |

**خلاصه:** یعني څوک چي د خپلوانو سره اړیکي نه ساتي د هغه نوم په بدی مشهور کیږي او خلک ورته بد وایي.

# در بيان فتوت

د مهراني په بيان كي.

| | |
|---|---|
| چيست مردي اي پسر نيكو بدان | اولا ترسيدن از حق درنهادن |
| اي هلكه! مېرانه څه شي ده ښه يې وپېژنه | لومړي په پټه د الله ﷻ څخه بېره كول |
| عذر خواهد مردپيش از معصيت | باشدش طاعات بيش از معصيت |
| كامل انسان تر گناه مخكي عذر كوي | د هغه عبادت تر گناهونو زيات وي |

**خلاصه:** يعني كامل انسان تر گناه كولو مخكي توبه كوي او په بېره كي وي چي په گناه اخته نه سي څكه د هغه طاعت تر گناهونو زيات وي او عام خلك د گناه كولو وروسته بېرېږي.

| | |
|---|---|
| آنكه كار نيك مردان مي كند | باضعيفان لطف واحسان ميكند |
| څوك چي د ښكانو خلكو كار كوي | هغه د كمزورو سره نرمي او احسان كوي |

**خلاصه:** يعني څوك چي د ښكانو خلكو په ډول كارونه كوي نو هغه پر كمزورو خلكو احسان كوي.

| | |
|---|---|
| هر كه اوباشد زمردان خدا | باشد اندر تنگدستي باسخا |
| څوك چي د الله ﷻ د كاملو بندگانو څخه وي | هغه په مفلسي كي هم سخاوت كوي |
| اي پسر در صحبت مردان درآي | تانظرها يابي از فضل خدائي |
| اي هلكه! د بزرگانو په ملگرتيا كي اوسه | تر څو د الله ﷻ د مهرباني نظر تر لاسه كړې |
| هر كه از مردان حق دارد نشان | مگذر اندعيب دشمن بر زبان |
| څوك چي د بزرگانو نښه لري | هغه پر ژبه د دښمن عيب نه راوړي |

**خلاصه:** يعني څوك چي د الله ﷻ ښك بنده وي نو هغه پر ژبه د دښمن عيب هم نه وايي.

| | |
|---|---|
| خود نخواهد مرد خصمان راهلاک | از غم ایشان شود اندو هناک |
| ښک بنده د خپلو دښمنانو بدي هم نه غواړي | بلکه د هغوئ په غم غمجن کيږي |

| | |
|---|---|
| مي نجويد مرد انصاف از کسي | گر رسد ظلم وجفا با او بسـي |
| کامل انسان د چا څخه انصاف نه غواړي | که څه هم هغه ته ظلم او بې وفائي ورسيږي |

**خلاصه**: يعني ښک انسان هيڅکله خپل غچ نه اخلي که څه هم ظلم ورسره وسي بلکه د صبر او زغم څخه کار اخلي.

| | |
|---|---|
| هر که پا اندر ره مردان نـهاد | کي رود هر گز بد نبال مـراد |
| چا چي د کامل بندگانو پر لار قدم کښېښود | هغه به هيڅکله تر مقصد شا ته نه سي |

**خلاصه**: يعني څوک چي د ښکو خلکو پر لار قدم کښېږدي هغه د خواهشاتو پيروي نه کوي.

| | |
|---|---|
| اي پسر ترک مراد خويش گير | وانگهي راه سلامت پيش گـير |
| اي هلکه! خپل مراد پرېږده او ښکي اختيار کړه | او هغه وخت د سلامتيا لار مخته کښېږده |

**خلاصه**: يعني نفساني خواهشات پرېږده تر څو په دواړو جهانونو کي سلامتيا ومومې.

## در بيان فقر

د بزرگۍ په بيان کي.

| | |
|---|---|
| فقر مي داني چه باشد اي پسر | با تو گويم گرنداري زان خبر |
| ايا پوهيږې چي فقيري څه ده؟ اي هلکه | تا ته يې وايم که ته خبر نه يې |

**خلاصه**: يعني که چيري تا ته معلومه نه وي نو زه اصلي بزرگي دربښيم.

| | |
|---|---|
| گرچه باشد بينوا وزير دلـــق | خويش رامنعم نمايد پيش خلق |
| که څه هم بې سامانه او تر گدړي لاندي وي | خپل ځان د مخلوق په وړاندي خوشحاله ښيي |

**مشکل الفاظ:** بي نوا: بې سامانه، دلق: ګدړي، زره جامه، منعم: نعمتونو والا، خوشحاله.

**خلاصه:** که څه هم ته هیڅ سامان او مال نه لرې مګر بیا هم د خپلې مفلسۍ او مسکینۍ اظهار مه کوه.

| گرسنه باشد زسیري دم زند | دوستي بادشمنان خود کند |
|---|---|
| وږی وي مګر بیا هم د مړتیا ساه کاږي | د خپلو دښمنانو سره هم دوستي کوي |

**مشکل الفاظ:** ګرسنه: وږی، سیري: مړتیا،

**خلاصه:** یعني بزرګان که څه هم وږي وي مګر بیا هم د مړتیا ژوند کوي او د دښمنانو سره هم د دوستانو غوندي ژوند کوي.

| گرچه باشد لاغر و زار وضعیف | وقت طاعت کم نباشد از حریف |
|---|---|
| که څه هم ډنګر، عاجز او کمزوری وي | د بندګۍ په وخت کې تر ملګري کم نه وي |

**مشکل الفاظ:** لاغر: ډنګر، زار: کمزوری، حریف: ملګری.

| خون دل پردارد ودست تهي | مي نماید در نزاري فربهي |
|---|---|
| د زړه وینه یې پوره وي مګر لاس یې خالي وي | په ډنګروالی کې چاغ معلومیږي |

**مشکل الفاظ:** نزاري: ډنګرتوب، فربهي: چاغوالی.

**خلاصه:** یعني زړه یې تازه او قوي وي مګر لاس یې خالي وي او همدارنګه د ډنګروالي سربېره چاغ معلومیږي.

| اي پسر خود رابدرویشان سپار | تانگهدارد وترا پروردگار |
|---|---|
| اې هلکه! خپل ځان بزرګانو ته وسپاره | ددې لپاره چې الله ﷻ تا په ساتنه کې واخلي |

| بافقیران هر که همدم مي شود | در سرائي خلد محرم مي شود |
|---|---|
| څوک چې د بزرګانو ملګری سي | هغه د جنت په ملستون کې راز دار سي |

**مشکل الفاظ:** سرای: مېلمستون، خلد: جنت،

**خلاصه:** یعني څوک چي د بزرګانو ملګرتیا وکړي هغه به د الله ﷻ د خاصو بندګانو او دوستانو څخه سي.

# در بیان انتباه از غفلت

د غفلت څخه د بېداره کېدو په بیان کي.

| در بلایازي مخواه از هیچ کس | زانکه نبود جز خدا فریاد رس |
|---|---|
| په غم کي د هیچا څخه مرسته مه غواړه | ځکه د الله ﷻ څخه ماسیوا هیڅ مرسته کونکی نسته |

| از خدای خویشتن غافل مباش | غافلانه دره باطل مــــباش |
|---|---|
| د خپل خدای څخه مه غافل کېږه | د غافل غوندي پر باطله لار مه کېږه |

| جائي گریه این جهان در وی مخند | چشم عبرت برکشا ولب به بند |
|---|---|
| دا دنیا د ژړا ځای دي ، خندا پکښي مه کوه | د عبرت سترګي خلاصي کړي او شونډان بند کړي |

**مشکل الفاظ:** گریه: ژړا، چشم: سترګي، لب: شونډان.

**خلاصه:** یعني دا دنیا د غم ځای دی ، دلته باید د آخرت فکر وکړل سي.

| همچو مور از حرص هرسوئي مرو | پند ناصح رابگوش جان شــنو |
|---|---|
| د مېږي غوندي د حرص څخه هر ځای ته مه ځه | د ناصح نصیحت د زړه په غوږو واوره |

**مشکل الفاظ:** مور: مېږی، سوئي: طرف، خوا،

| اي پسر کودک نه بازي مکن | کار با شیطان با نبازي مــکن |
|---|---|
| اې هلکه! ته ماشوم نه یې لوبي مه کوه | د شیطان سره په ملګرتیا کار مه کوه |

**مشکل الفاظ:** کودک: ماشوم، کوچنی، انبازي: ګډون،

**خلاصه:** یعني ته کوچنی نه یې او په لوبو ځان مه بوخت کوه، یعني د شیطان لار مه اختیاروه.

| نفس بد را در گنه یاري مده | عمر برباد از تبه کاري مده |
|---|---|
| بد نفس ته په گناه کي مرسته مه ورکوه | په بدو کارو ژوند مه بربادوه |

**مشکل الفاظ:** تبه کاري: یعني تباه کاري، بد کارونه،

**خلاصه:** یعني د گناهونو په کارو کي د شیطان خبره مه منه او په بدو کارو عمر مه ضائع کوه.

| هر کجا تهمت بود آنجا مرو | راه حق را همچو نابینا مرو |
|---|---|
| چیري چي بدگماني وي هلته مه ځه | د الله ﷻ په لار کي د ړانده غوندي مه ځه |

**خلاصه:** یعني داسي ځایو ته مه ځه چیري چي په تګ سره خلک بدگماني کوي.

| دشمني داري از و ایمن مباش | زیر سقف بي ستون ساکن مباش |
|---|---|
| ته دښمن لري د هغه څخه مه بي پروا کیږه | د بي ستني بام لاندي ارام مه دریږه |

**خلاصه:** یعني ته شیطان غوندي لوی دښمن لرې نو د هغه څخه مه بي پروا کیږه، د مثال په توګه لکه یو څوک چي تر بي ستني بام لاندي بي غمه ناست وي.

| در ره فسق وهوا مرکب متاز | خویشتن را سخره شیطان مساز |
|---|---|
| د نافرماني او خواهش په لار کي سپرلی مه ځغلوه | خپل ځان د شیطان بېگار مه جوړوه |

**مشکل الفاظ:** مرکب: سپرلی، متاز: مه ځغلوه، سخره: بې گاره، یعني د یو چا سره بېله مزدوری کېدل.

| چون سفر درپیش داري زادگیر | عمر خود را سربسر برباد گیر |
|---|---|
| کله چي سفر لرې نو توښه اختیار کړه | خپل عمر ټول برباد وګڼه |

**خلاصه:** یعني د آخرت سفر مخته دی نو د نیکو اعمالو توښه اختیار کړه او په ژوند باور مه کوه ځکه هغه ناڅاپه ختمیږي.

| | |
|---|---|
| اي پسر انديشيه از اغلال كن | نفس بد را از لكدپامـــال كن |
| اي هلكه! د دوږخ د طوقونو څخه بېره وكړه | خپل بد نفس تر پښو لاندي كړه |

**مشكل الفاظ:** اغلال: جمع د غل يعني طوق، لكد: لغته، پامال: تر پښو لاندي.

| | |
|---|---|
| تا نسوزي سازگاري پيشه كن | از عذاب وقهر حق انديشه كن |
| ددې لپاره چي ونه سوځې سامان برابر كړه | د الله ﷻ د عذاب او قهر څخه ويرېږه |

| | |
|---|---|
| جمله را چون هست بر دوزخ | جائي شادي نيست باچندين خطر |
| كله چي ټول پر دوږخ تيرېږي | د خوشحالى ځاى نه دى د دومره خطرونو سره |

**خلاصه:** يعني ټول به د دوږخ پر سر (پل صراط) باندي تيرېږي نو پر دومره خطرونو سربېره په دنيا كي خوشحالي كول بې ځايه كار دى.

| | |
|---|---|
| آتشي در پيش داري اي فقير | هيچ خوفت نيست از نار سعير |
| اور دي په مخكي دى اي بزرگه | ايا ته بېره نه لرې د سخت اور څخه |

**مشكل الفاظ:** آتش: اور، نار: اور، سعير: جوش وهونكى،

| | |
|---|---|
| عقبه در راهست وبارت بس گران | نگذرد بارت بسعي ديگـــران |
| په لاره كي سخته دره ده او ستا بار دروند دى | ستا بار د بل چا په مرسته نه وړل كيږي |

**مشكل الفاظ:** عقبه: دره، سخته لار، سعي: كوښښ، مرسته.

| | |
|---|---|
| داري اندر پيش روز رستـخيز | از خدايت نيست امكان گزيز |
| د قيامت ورځ تا ته مخته ده | تا ته د الله ﷻ څخه د تېښتي امكان نسته |

| | |
|---|---|
| اي پسر راه شريعت پيش گير | زود تر ترك هوائي خويش گير |
| اي هلكه! د شريعت لار خپل كړه | ډېر ژر خپل خواهشات پرېږده |

| تا بیابي جنت ورضوان حــق | اي برادر باش در فرمان حــق |
| --- | --- |
| تر څو جنت او د الله ﷻ رضا تر لاسه کړې | اې وروره! د الله ﷻ په حکم کې اوسه |

| تانماني روز محشر در عـذاب | گردن از حکم خدایت برمتاب |
| --- | --- |
| تر څو د قیامت په ورځ په عذاب نه سې | غاړه د الله ﷻ د حکم څخه مه اړوه |

**خلاصه:** یعني د الله ﷻ د حکم خلاف کارونه مه کوه تر څو د قیامت په ورځ په سخت عذاب اخته نه سې.

| شفقتي بنمائي باخلق خــدای | تا بیابي در بهشت عدن جای |
| --- | --- |
| د الله ﷻ د مخلوق سره شفقت کوه | ددې لپاره چې په تل پاتې جنت کې ځای ونیسې |

**خلاصه:** یعني د الله ﷻ پر مخلوق تل مهرباني او شفقت کوه تر څو الله ﷻ ستا څخه راضي سي او د تل لپاره جنت دې په برخه سي.

| بافقیران روز وشب مي ده طعام | تا دهندت جای در دارالسلام |
| --- | --- |
| د الله ﷻ په لار کې د رانده غوندې مه ځه | ددې لپاره چې تا ته په جنت کې ځای درکړي |

**خلاصه:** یعني مسکینانو ته ډوډۍ ورکول د جنت تر لاسه کېدو ذریعه ده.

| بازیابي جنت دربــــــسته را | شاد اگر داري درون خسته را |
| --- | --- |
| د بندي دروازې جنت به خلاص ومومې | که چیري ته غمجن زړه خوشحاله کړې |

| در دو عالم راحتش بخشد خدای | هر که آرد این نصیحت رابجای |
| --- | --- |
| الله ﷻ به په دواړو جهانونو کې آرام ورکړي | څوک چې دغه نصیحت پر ځای کړي |

**خلاصه:** یعني څوک چې د شیخ صاحب په دغه کتاب (پندنامه) عمل وکړي نو الله ﷻ به هغه ته د دواړو جهانونو ښېګڼې ور په برخه کړي، ځکه په دغه کتاب کې د دنیا او اخرت د کامیابۍ خبرې ذکر سوي دي.

## مناجات

| یا الهي رحم کن برماهـــــمه | عفو کن جمله گناه ما هـــمه |
|---|---|
| اې زما پروردګاره! پر موږ ټولو رحم وکړې | زموږ د ټولو ټولي ګناوې معاف کړې |

| عاجز یم وجرمهاکرده بـــسي | نیست مارا غیر تو دیگر کسي |
|---|---|
| موږ عاجز یو او ډیرې ګناوې مو کړې دي | نسته زموږ لپاره ماسیوا ستا څخه هیڅوک |

**خلاصه:** یعني موږ عاجز او ګناه کار یو او ماسیوا ستا څخه هیڅوک د ګناه بخښونکی او مرسته کونکی نه لرو.

| گر بخواني وربراني بنده ایـم | هرچه حکم تست زان خرمنده ایم |
|---|---|
| که ته موږ وبلې او یا مو وشړې ستا بندګان یو | هر څه چي ستا حکم وي موږ په هغه خوشحاله یو |

**خلاصه:** یعني که چیرې ته موږ خپل دربار ته وغواړې او یا مو د دربار څخه وشړې بیا هم موږ ستا غلامان یو، ته چي هر څه راسره وکړې موږ په خوشحاله یو.

| رحمت حق باد بر جان کـسي | کین نصائح رابخواند او بـسي |
|---|---|
| پر هغه کس دې د الله ﷻ رحمت وي | کوم چي دغه نصیحتونه ډېر ووایي |

## خاتمه

| رحمتي ماند بسي از ذوالجلال | بر روان پاک ان صاحب کمال |
|---|---|
| د الله ﷻ ډېر زیات رحمتونه دې وي | د هغه کمال خاوند پر پاک روح باندې |

| کین همه در هابنظم آورده است | غوطها در بحر معنی خورده است |
|---|---|
| چي دا ټولې ملغلرې یې په نظم کې راوړې دي | د حقیقت په دربار کې یې غوټې خوړلې دي |

**خلاصه:** یعني کوم باکماله شخص چي د حقیقتونو په دریاب کې په غوټو خوړلو سره دغه

ملغلري یو ځای کړي دي د هغه پر روح دي الله ﷻ د بر رحمتونه نازل کړي.

| یادگاري درجهان بگذاشــته | هیچ پندي را فرونگذاشــته |
|---|---|
| ډېر لوی یادگار یې په دنیا کي پرېښودی | هیڅ یو نصیحت یې هم نه پرېښودی |

| اهل دین را این قدر کافي بود | اهل دنیا را همین وافي بــود |
|---|---|
| د دیندار لپاره همدومره بس دي | او د دنیا والا لپاره هم دغه کافي دي |

**خلاصه:** یعني په دغو نصیحتونو کي د دنیا او آخرت ښېګڼي موجودي دي.

| هر که اینها را بداند عاقل ست | وانکه اینها کاربندد کامل ست |
|---|---|
| څوک چي دغه زده کړي عاقل دی | او څوک چي عمل په وکړي هغه کامل دی |

| در جوار انبیا دارالســـلام | همنشین اولیا باشد مـــدام |
|---|---|
| د نبیانو په همسایتوب کي په جنت کي | تل به د ولیانو هم ناستی وي |

**خلاصه:** یعني داسي کس به د نبیانو په څنګ کي ځای تر لاسه کړي او د الله ﷻ دوستان به د هغه سره ناسته ولاړه کوي، د غه جمله هم د شیخ صاحب لپاره دعاء کېدای سي، والله اعلم.

## قطعه در دعاء ومناجات

| یا رب آن ساعت که جان بر لب رسد | جسم پژمرده بتاب وتب رسد |
|---|---|
| اې الله! هغه وخت چي ساه شونډانو ته راسي | مړ بدن ګرمۍ او بې تابۍ ته ورسېږي |

| شربتِ شهد شهادت نوشــیم | خلعتِ راه سعادت پوشــیم |
|---|---|
| ته ما ته د کلمه شهادت د عسلو شربت راکړې | او د نېکمرغۍ د لاري چپنه راواغوندې |

| چون ندارم درد وعالم جز توکس | هــم تومي باشي مرا فریاد رس |
|---|---|
| کله چي ما سیوا ستا څخه په دواړو جهانونو کي څوک نه لرم | یوازې ته زما فریاد اورېدونکی یې |

# صد پند لقمان حکیم

## بصاحبزاده ذوالاحترام والتکریم

د لقمان حکیم صاحب خپل زوی ته سل وصیتونه

| | |
|---|---|
| ۱ | اول آنکه اي جان پدر خدائي عزوجل رابشناس<br>لومړی دا چي اې د پلار ځانه! الله ﷻ و پیژنه. |
| ۲ | وهر چه از پند ونصیحت گوئي نخست بر آن کار کن.<br>هر څه نصیحت چي کوې خپله په هغه عمل کوه. |
| ۳ | سخن باندازه خویش گوی<br>د خپل حیثیت سره سم خبره کوه. |
| ۴ | قدر مردم بدان<br>د خلګو درناوی و پیژنه. |
| ۵ | حق همه کس رابشناس.<br>د هر چا حق وپیژنه. |
| ۶ | راز خود را نگهدار.<br>خپل راز پټ وساته. |
| ۷ | یار را وقت سختي بیازمائي .<br>ملګری د سختی په وخت کي وازمویه. |
| ۸ | دوست رابسود وزیان امتحان کن .<br>دوستان د ګټي او تاوان په وخت کي امتحان کړه. |
| ۹ | از مرد ابله ونادان بگریز.<br>د بې عقل او جاهل سړي څخه تېښته کوه. |

| | |
|---|---|
| ۱۰ | دوست زیرک ودانا گزین. |
| | چالاکه او هوښیار ملګری غوره کړه. |
| ۱۱ | در کار خیر جدوجهد نمائي. |
| | د خیر په کار کې کوښښ وکړه. |
| ۱۲ | بر زنان اعتماد مکن. |
| | پر ښځو باور مه کوه. |
| ۱۳ | تدبیر بامردم مصلح ودانا کن. |
| | د هوښیار او نېک سړي سره مشوره کوه. |
| ۱۴ | سخن بحجت گوئي. |
| | خبره په دلیل سره کوه. |
| ۱۵ | جواني راغنیمت شمر. |
| | ځواني غنیمت وګڼه. |
| ۱۶ | هنگام جواني کار دوجهاني راست کن. |
| | د ځوانۍ په زمانه کې د دنیا او آخرت کار سم کړه. |
| ۱۷ | یاران و دوستان را عزیز دار. |
| | ملګري او خپلوان درانه وګڼه. |
| ۱۸ | بادوست و دشمن آبرو کشاده دار. |
| | د دوست او دښمن سره په ورین تندي چلند کوه. |
| ۱۹ | مادر وپدر راغنیمت دان. |
| | مور او پلار غنیمت وګڼه. |
| ۲۰ | استاد را بهترین پدر شمر. |
| | ښوونکی غوره پلار وګڼه. |

| | |
|---|---|
| خرچ باندازه دخل کن.<br>د ګټې په اندازه مصرف کوه. | ۲۱ |
| درهمه کار میانه رو باش.<br>په هر کار کې میانه چلند کوه. | ۲۲ |
| جوانمردي پیشه کن.<br>میړانه د ځان عادت وګرځوه. | ۲۳ |
| خدمت مهمان بواجبي اداکن.<br>د مېلمه خدمت ضروري وګڼه. | ۲۴ |
| درخانه که درآئي چشم وزبان رانگاه دار.<br>کور ته چې راسې سترګې او ژبه په واک کې ولره. | ۲۵ |
| جامه وتن پاک دار.<br>جامې او بدن پاک وساته. | ۲۶ |
| باجماعت یار باش.<br>د ټولې سره اوسېږه. | ۲۷ |
| فرزند را علم و ادب بیاموز.<br>زوی ته علم او روزنه ورکړه. | ۲۸ |
| واگر ممکن باشد تیر انداختن وسواري بیاموزد.<br>او که ممکن وي د غشي ویشتل او سپرلی کول هم ورزده کړه. | ۲۹ |
| از کفش وموزه که پوشي ابتدا از پائي راست کن و بدر آوردن از پائي چپ گیر.<br>څپلی او موزې چې اغوندې نو د راسته پښې یې پیل کوه او کله چې یې کاږې نو د چپه پښې څخه یې پیل کوه. | ۳۰ |

| | |
|---|---|
| ۳۱ | باهر کس کار باندازه او کن. |
| | د هر چا سره د هغه په اندازه کار کوه. |
| ۳۲ | بشب چون سخن گوئي آهسته ونرم گوی و بروز چون گوئي هر سو نگاه کن. |
| | په شپه کي چي خبري کوې کرار او نرمي خبري کوه او په ورځ کي چي کله خبري کوې هري خوا ته گوره. |
| ۳۳ | کم خوردن وخفتن وگفتن عادت انداز. |
| | لږ خوراک کول، خبري کول او خوب کول عادت کړه. |
| ۳۴ | هر چه بخود نه پسندي بدیگران مپسند. |
| | هر څه چي ځان ته نه خوښوې د بل لپاره یې هم مه خوښوه. |
| ۳۵ | کارها بادانش وتدبیر کن. |
| | هر کار په هوښیاري او تدبیر سره کوه. |
| ۳۶ | ناآموخته استادي مکن. |
| | بیله زده کړي استادي مه کوه. |
| ۳۷ | بازن وکودک راز مگوی. |
| | ښځي او کوچني ته حال مه وایه. |
| ۳۸ | بر چیز کسان دل منه. |
| | د خلگو پر شیانو زړه مه ږده (مه بایله). |
| ۳۹ | از بد اصلان چشم وفا مدار . |
| | د بد ذاتو خلگو څخه د وفا هیله مه کوه. |
| ۴۰ | بي اندیشه در کار مشو. |
| | بې فکره کار مه پیل کوه. |

| شمېره | متن |
|---|---|
| ۴۱ | ناکرده کرده مشمر.<br>ناکړل سوی کار کړل سوی مه گڼه. |
| ۴۲ | کار امروز بفردا میفگن.<br>د نن ورځې کار سبا ته مه پرېږده. |
| ۴۳ | بابزرگ تر از خود مزاح مکن.<br>چې تر تا مشر وي د هغه سره مسخرې مه کوه. |
| ۴۴ | بامردم بزرگ سخن دراز مگو.<br>د مشرانو خلکو سره اوږدې خبرې مه کوه. |
| ۴۵ | عوام الناس راگستاخ مساز.<br>د عامو خلکو سره بې ادبي مه کوه. |
| ۴۶ | حاجتمند را نومید مکن.<br>اړ کس مه نا امیده کوه. |
| ۴۷ | از جنگ گذشته پاد مکن.<br>تېر سوی جنگ مه تازه کوه. |
| ۴۸ | غیر کسان بخیر خود میامیز.<br>پردي خلک (دښمنان) خپل خیر ته مه رابوله. |
| ۴۹ | مال خود را به دوست و دشمن خود منمائي.<br>خپل مال دوست او دښمن ته مه ښیه. |
| ۵۰ | خویشاوندي از خویشان مبر.<br>له خپلوانو سره خپلوي مه ختموه. |

| | |
|---|---|
| ۵۱ | کسانرا که نیک باشند بغیبت یاد مکن. |
| – | نېک کسان په غیبت سره مه یادوه. |
| ۵۲ | بخود منگر. |
| | خپل ځان ته مه گوره (یعني ځان غټ مه گڼه). |
| ۵۳ | جماعتي که ایستاده باشند تو نیز موافقت همه کن. |
| | جماعت چي ولاړ وي ته هم د هغوئ سره گډون وکړه. |
| ۵۴ | انگشتان بهم مگذران. |
| | گوتي په يو بل کي مه ورکوه. |
| ۵۵ | درپیش مردم خلال دندان مکن. |
| | د خلگو په مخکي کي غاښونه مه پاکوه. |
| ۵۶ | آب دهن وبیني آواز بلند مینداز. |
| | خولي او پزي ته په اواز (خراري) سره اوبه مه اچوه. |
| ۵۷ | بوقت فازه دست بر دهن بنه. |
| | د ارږمی پر وخت پر خوله لاس ونیسه. |
| ۵۸ | بروی مردم کاهلي مکش. |
| | د خلگو په مخکي ارږمی مه کاږه (یعني خپله سستي مه ښکاره کوه). |
| ۵۹ | انگشت در بیني مکن. |
| | په پزه گوته مه ځخه. |
| ۶۰ | سخن هزل آمیخته مگوی. |
| | د خبرو په جریان کي مسخري مه کوه. |
| ۶۱ | مردم را پیش مردم خجل مکن. |
| | خلگ د خلگو په مخکي مه شرمنده کوه. |

| | |
|---|---|
| غمازي به چشم وآبرو مكن. | ٦٢ |
| په سترګو او ورزو اشاري مه کوه. | |
| سخن گفته ديگر بار مخواه. | ٦٣ |
| په مجلس کي چي خبره وسوه بيا يي تکرار مه غواړه. | |
| از سخنيكه خنده آيد حذر كن. | ٦٤ |
| هغه خبري مه کوه چي د خندا لامل ګرځي. | |
| ثنائي خود واهل خود پيش كس مگوى . | ٦٥ |
| د خپل ځان او کورني ستاينه د چا په وړاندي مه کوه. | |
| خود را چون زنان مياراى. | ٦٦ |
| ځان د ښځو په څېر مه جوړوه. | |
| هر گز بمراد فرزندان مباش . | ٦٧ |
| هيڅکله د زامنو پر رايه مه ځه. | |
| زبان نگهدار . | ٦٨ |
| خپله ژبه وساته. | |
| وقت سخن دست مجنبان. | ٦٩ |
| د خبرو کولو په وخت کي لاسونه مه ښوروه. | |
| حرمت همه كس را پاس دار. | ٧٠ |
| د هر چا قدر او درناوی وکړه. | |
| به بد كسان هم داستان مشو | ٧١ |
| له بدو خلګو سره مه ګډيږه. | |

| | |
|---|---|
| ۷۲ | مرده را با بدي یاد مکن که سود ندارد. |
| | د مړي بدي مه بیانوه ځکه گټه نه لري. |
| ۷۳ | تاتواني جنگ وخصومت مساز |
| | تر څو چې توان لرې جنگ مه کوه. |
| ۷۴ | قوت آزمائي مباش. |
| | زور مه ازمویه. |
| ۷۵ | آزموده کس را بصلاح .... مبر. |
| | ازمویل سوی سړی د گمان له کبله بیا مه ازمویه. |
| ۷۶ | نان خود را بر سفره دیگران مخور. |
| | خپله ډوډی د بل چا پر سترخوان مه خوره. |
| ۷۷ | درکار ها تعجیل مکن. |
| | په کارونو کي تلوار مه کوه. |
| ۷۸ | برائي دنیا خود را در رنج میفگن. |
| | د دنیا لپاره خپل ځان په تکلیف مه اخته کوه. |
| ۷۹ | هر که خود را بشناسد او را بشناس. |
| | چا چي ځان وپېژندی ته هغه وپېژنه. |
| ۸۰ | درحالت غضب سخن فهمیده گوی. |
| | د خښم په حالت کي په غور خبري کوه. |
| ۸۱ | بآستین آب بیني پاک مکن. |
| | په لستونو پزه مه پاکوه. |
| ۸۲ | بوقت بر آمدن آفتاب مخسب. |
| | د لمر ختلو په وخت کي مه ویدیږه. |

| | |
|---|---|
| ۸۳ | پیش مردم مخور.<br>د خلګو په مخکې خوراک مه کوه. |
| ۸۴ | از بزرگان براه پیش مرو.<br>تر مشرانو مخکې مه ځه. |
| ۸۵ | در میان سخن مردم میا.<br>د خلګو د خبرو په منځ کې مه ورلوېږه. |
| ۸۶ | پیش مردم سربه زانو منه.<br>د خلګو په مخکې سر پر زنګانه مه ایږده. |
| ۸۷ | چپ وراست منگر بلکه سر بسوئي زمین بدار.<br>چپه او راسته خوا ته مه ګوره بلکه مخکې ته ګوره. |
| ۸۸ | تاتواني بر ستور برهنه سوار مشو.<br>څومره چې دې توان وي پر لوڅې غاترې مه کښېنه. |
| ۸۹ | پیش مهمان بکسي خشم مکن.<br>د مېلمه په مخکې چا ته خښم مه کوه. |
| ۹۰ | مهمان را کار مفرمائي.<br>مېلمه ته د یو کار مه وایه. |
| ۹۱ | بادیوانه و مست سخن مگوئي.<br>د لیوني او مست سره خبرې مه کوه. |
| ۹۲ | باقلاشان واوباشان بر سر محل منشین.<br>د بېکاره او بې باکه خلګو سره د خوني پر سر مه کښېنه. |

| | |
|---|---|
| ۹۳ | به هر سودوزیان آبروی خود مریز. |
| | د هر تاوان او ګټې لپاره خپل عزت مه بایله. |
| ۹۴ | فضول ومتکبر مباش. |
| | پالتو او لويي کونکی مه کیږه. |
| ۹۵ | خصومت مردم بخویش مگیرد. |
| | د بل چا دښمني پر ځان مه اخله. |
| ۹۶ | از جنگ وفتنه برکنار باش. |
| | د جنګ او فتنې څخه لیري اوسه. |
| ۹۷ | بیکار دو انگشتري و درم مباش. |
| | پالتو دوې ګوتمې او درهم مه ایږده، یعني بېله ارتیا سامان مه ساته. |
| ۹۸ | مراعات کن چندانکه خود را خوار نسازي. |
| | تر هغه وخته د چا لحاظ ساته تر څو خپل ځان خوار نه کړې. |
| ۹۹ | فروتن باش. |
| | هنداره سه. |

| | |
|---|---|
| ۱۰۰ | زندگاني کن بخدای تعالی به صدق، به نفس به قهر، |
| | ژباړه: ژوند وکړه د الله ﷻ سره په صدق، د نفس سره په قهر، |
| | باخلق بانصاف، به بزرگان بخدمت، به خروان به شفقت، |
| | د خلکو سره په انصاف، د مشرانو سره په خدمت، د کشرانو سره په شفقت |
| | بدرویشان به سخاوت، به دوستان ویاران به نصیحت، |
| | د مسکینانو سره په سخاوت، د ملګرو او دوستانو سره په نصیحت |

بدشمان به حلم، بجاهلان بخاموشي، بعالمان به تواضع،
د دښمنانو سره په نرمی، د ناپوهانو سره په چوپتیا، د عالمانو سره په خاکساری
باین طریق بسر بر برمال کسي طمع مکن، وچون پیش آید
داسي ژوند وکړه چي د چا مال ته طمع مه کوه، او هر څه چي وړاندي سي
منع مکن لیکن چون بیش آید جمع مکن.
منعه مه کوه، مگر کله چي ډېر راسي نو مه يې ذخیره کوه .

وگفت سه هزار کلمه به نصحیت نوشته ام ، سه کلمه ازان-
او ویلي یې دي چي درې زره خبرې مې د نصیحت لیکلي دي، په هغو کي مې درې خبرې
برگزیده ام دو کلمه ازان یاد دارد یک را فراموش گردان،
غوره کړي دي، په هغو کي دوې خبرې یاد کړه او یوه هېره کړه،
یعني خدای تعالی ومرگ را یاد دار ونیکي کرده فراموش کن
یعني الله ﷻ او مرگ په یاد لره او کړې نیکي هېره کړه
ونیز فرموده اند: که خاموشي هفت خاصیت دارد : زینت ست
او دا یې هم ویلي دي چي چوپتیا اووه ځانگړتیاوي لري: ښکلا ده
بي پیرایه هیبت بي سلطنت، عبادت بي محنت حصار بي دیوار
بېله گېڼو، هیبت دئ بېله پاچاهي، عبادت دئ بېله کوښښه، کلا ده بېله دېواله
بي نیازي بي عذر، فراغ از کراما کاتبین، پوشیدن عیبها،
بې پرواهي ده بېله عذره، فراغت د کرام کاتبین څخه، پټېدل د عیبونو

## بیت

به طبعم هیچ مضمـون به لب بستن نمي آید
خموشي معنی دارد که درو گفتن نمي آید

ژباړه: زما په طبیعت کي تر چوپتیا غوره مضمون نه راځي،
چوپتیا هغــــه معنی لري چي په وینا کي نه راځي.

## فرد

سینهٔ هارا خامـــشي گنجیــــــنه گوهرکند
یا دارم از صدف این نکته ســــربسته را

ژباړه: چوپتیا د سینو څخه د ملغلرو خزاني جوړوي.
دغه سرتړلې نکته د صـــدف څخه په یاد لرم.

نقل است : که از و پرسیدند که معنی بلوغ چیست؟ فرموده: دو معنی دارد : یکي آنکه از مرد مني بیرون آید، دوم آنکه مرد از مني بیرون آید. فقط .

ژباړه: نقل سوي دي چي له ده څخه پوښتنه وسوه چي د بلوغ معنی څه ده؟ نوموړي وویل: دوې معناوي لري: یو دا چي د سړي څخه مني راووزي او دوهم دا چي سړی د مني څخه راووزي.

تمت

# رساله قاضي قطب محشي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

پيل کوم په نامه د الله ﷻ چي مهربان او رحم کوونکی دئ.

اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ،

ټوله ثناء او صفت الله لره دي چي پالونکی د جهانو دئ، او د آخرت ښېگني د پرهيزگارانو لپاره دي

وَالصَّلوٰةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ

او درود او سلامتيا دي وي پر رسول د هغه محمد ﷺ او پر آل د هغه او پر اصحابو د هغه ټولو

اَلطَّيِّبِيْنَ الطَّاهِرِيْنَ.

چي ښه دي او پاک دي.

بدانکه بندگي حق سبحانه وتعالى همچنانکه بر بندگان

پوه سه چي بندگی د خدای ﷻ چي پاک دئ او لوړ دئ، همدارنگه پر بندگانو

مکلف فرض عين ست، علم به بندگي نيز فرض عين

مکلفو باندي فرض عين ده، علم د بندگی هم فرض عين

ست بحکم حديث حضرت رسالت پناه صلى الله عليه وآله

دئ په حکم د حديث د رسول، درود دي وي د الله ﷻ پر ده او پر کورنی د ده

واصحابه وسلم: طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ وَمُسْلِمَةٍ،
او پر اصحابو د ده او سلامتيا دي وي تر لاسه كول د علم فرض دئ پر هر مسلمان نارينه او مسلماني ښځي،
مراد ازين علم علم عبادتست، يعـــني علم فرض و واجب
مراد د دغه علم څخه علم د عبادت دئ، يعني علم د فرضو او واجبو،
هر عبادتي را ميبـايد دانستن وياد گرفتن تا آن عبادت
د هر عبادت ضروري دي زده كول او په يادول تر څو هغه عبادت
صحيح ومعتبر باشد وپوشيده نماند كه درين زمان اكثري
صحيح او د باور وړوګرځي، او پټه دي نه وي چي په دغه زمانه كي زيات كسان
از خاص وعام بسبب كمال غفلت از عذاب و عقاب
د خاصو او عامو څخه په وجه د ډيري بې پرواهی د عذاب او سزا څخه
حضرت رب الارباب از طاعـــت وبندگي بي رغبت شده
د رب الارباب (خدایﷻ)، د طاعت او بندګی څخه بې شوقه سوي وه
بودند واز علم دين ومسائل شرعيه كه دانستن آن در
او د ديني علم او شرعي مسائلو څخه چي زده كول د هغو په
دين اسلام فرض و لازمست بواسطه قـــصور همت
دين اسلام كي فرض او لازم دي، له كبله د كوتاهی د همت
متكاسل بنا بر حكم التعظيم لامر الله والشفقة لـخلق الله
او سستی، په وجه د دغه حكم چي تعظيم د الله ﷻ د امر او شفقت د الله ﷻ پر مخلوق

عمل نموده این بنده کمینه محتاج گنهگار امیدوار

عمل کړی دئ دغه بنده عاجز او محتاج، گناه کار ، امید لرونکی

رحـــمت کردگار خادم شریعت مصطفوي مروج دین

د رحمت د الله ﷻ، خادم د مصطفوي شریعت، رواج کوونکی د دین

محمدي قطب الدین محمد بن غیاث الدین غفر الله تعالی

محمدي چي قطب الدین محمد بن غیاث الدین دئ، الله ﷻ دي بخښنه وکړي

لهما، چند مسئله در بیان ایمان و اسلام واحـــکام وارکان

دوئ دواړو ته، څیني مسئلې په بیان د ایمان او اسلام او احکامو او ارکانو

وبیان عبادات که دانستن آن فرض است بر سبیل اختصار

او بیان د عباداتو چي زده کول د هغو فرض دي، په لنډه توګه

در قید تحریر آورده که یاد گرفتن وعمل کردن بآن مسائل

د لیکني په بنه راوړل چي یادول او عمل په هغو مسائلو کول

موجب رُستگاري دنیا و آخرت ست وبر عام مسلـــمانان

سبب د ښه والي د دنیا او اخرت دي، او چي پر عامو مسلمانانو

آسان باشد ترتیب کرده شد این رساله مشتمل بر چـــند

اسانه سي ، ترتیب کړل سول دغه رساله چي شامله ده پر څو

مسئله است، **مسئله اول:** بدانکه ایمان اقرار کردنـــست

مسئلو باندي، لومړی مسئله: پوه سه چي ایمان اقرار کولو ته وایي

يعني گفتن كلمه طيبه لااله الاالله محمد رســــول الله

يعني ويل د كلمې طيبې: نشته لائق د عبادت ماسيوا د الله ﷻ، محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دئ

وباور داشتن معنى اين كلمه بدل كه خداى تعالى يكيست

او باور كول په معنى د دغې كلمې په زړه سره چې الله ﷻ يو دئ

ومحمد رسول الله ﷺ پيغمبر برحق ست وفرستادهٔ ويست

او محمد رسول الله ﷺ په حقه پيغمبر دئ او د هغه را لېږل سوى دئ

مسئله دوم: اگر ترا پرسند كه اركان ايمان چند ست بگو

دوهمه مسئله: كه چيرې ستا څخه پوښتنه وسي چې د ايمان اركان څو دي؟ نو ووايه چې

دو ست اقرار باللسان وتصديق بالقلب، مسئله سوم: اگـر

دوه دي، په ژبه اقرار كول او په زړه تصديق كول، دريمه مسئله: كه چيرې

ترا پرسند كه احكام ايمان چند ست بگو هـفت ســـت،

ستا څخه پوښتنه وسي چې د ايمان احكام څو دي؟ نو ووايه چې اووه دي

اول هر كه ايمان آرد كشتن و اسير كردن ومال او را بناحق

لومړى: چا چې ايمان راوړى د هغه وژل، بندي كول، او د هغه مال په ناحقه

گرفتن و او را بي حجت شرعي رنجانيدن و برو گمان بـد

اخيستل، او هغه ته بېله شرعي دليله تكليف رسول، او پر هغه بد گمان

بردن روا نباشد، واين پنج حكم تعلق بدنيا دارد ودو حكم

كول رواه نه دي، او دغه پنځه احكام د دنيا سره اړه لري او دوه حكمونه

دیگر تعلق بآخرت دارند، اول: هر که ایمان آرد از عذاب
نور د آخرت سره اړه لري، لومړی: چا چي ایمان راوړی د عذاب
ابدي دوزخ خلاصي یابد ودیگر آنکه عاقبت جـای او در
تل پاتي د دوزخ څخه یې خلاصون تر لاسه کړی، او بل دا چي په اخرت کي به د هغه ځای
بهشت باشد، مسئله چهارم: اگر ترا پرسند که شـرائط
جنت وي، څلورمه مسئله: که چیري ستا څخه پوښتنه وسي چي شرطونه
ایمان چند ست؟ بگو هفت ست، اول ایمان بغـیب آوردن
د ایمان څو دي؟ نوووایه چي اووه دي، لومړی ایمان په غیبو راوړل
دوم: علم غیب را خاصه حق تعالی دانستن، سوم: باختیار
دوهم: علم غیب د الله ﷻ خاصه ګڼل، دریم په اختیار
خود ایمان آوردن، چهارم: حلالهای خدای تعالی را حلال
خپل ایمان راوړل، څلورم: د الله ﷻ حلال شیان حلال
دانستن، پنجم: حرام خدای تعالی را حرام دانستن، ششم
ګڼل، پنځم: د الله ﷻ حرام شیان حرام ګڼل، شپږم:
از عذاب حق تعالی ترسیدن، هفتم برحمت خدای امیدوار
د الله ﷻ د عذاب څخه بیریدل، اووم: د الله ﷻ د رحمت امید لرونکی
بودن، مسئله پنجم: اگر ترا پرسند که شرائط وجوب ایمان
کیدل، پنځمه مسئله: که چیري ستا څخه پوښتنه وسي چي د ایمان د وجوب شرطونه

چندست؟ بگو دوست: عـــقل وبلوغ، وشرط وجوب هـــمه

څو دي؟ نو ووايه چي دوه دي، عقل او بلوغ، او شرط د واجب کېدو د ټولو

طاعتها ايمان ست، مسئله ششم: اگر تـــرا پرسند حقيقت

طاعتونو ايمان دئ، شپږمه مسئله: که چيري ستا څخه پوښتنه وسي چي حقيقت

ايمان چيشت ومسلماني چيست؟ بگو قبول كردن هـــمه

د ايمان څه شي دئ؟ او مسلماني څه شي ده؟ نو ووايه چي منل د ټولو

فرمانهای خدايتعالى را ، ايمان مفصل اينست: اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ

فرمانونو د الله ﷻ دي، ايمان مفصل دادئ: ما ايمان راوړی دئ په الله ﷻ باندي

وَمَلَائِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْقَدْرِ خَيْرِهٖ وَشَـــرِّهٖ

او د هغه په ملائکو او د هغه په کتابونو او د هغه په رسولانو او په ورځ د آخرت او په دې چي خير او شر

مِنَ اللّٰهِ تَعَالَى وَالْبَعْثِ بَعْدَالْمَوْتِ، ايمـــان مجمل اينست:

د الله ﷻ له طرفه دي او په پاڅېدو باندي وروسته تر مرگ، ايمان مجمل دادئ:

اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ كَمَا هُوَ بِاَسْمَآئِهٖ وَصِفَاتِهٖ وَقَبِـــــلْتُ جَمِيْعَ اَحْـكَامِـهٖ.

ما ايمان راوړی دئ په الله ﷻ باندي لکه هغه چي په خپلو نومونو او صفتونو سره دئ او ما قبول کړي دي د هغه ټول احکام

مسئله هفتم: اگر ترا پرسند كه فرائض شريعت چـندست

اوومه مسئله: که چيري ستا څخه پوښتنه وسي چي فرضونو د شريعت څو دي؟

بگو پنجست، اول: كلمه شهادت گفتن، دوم: پـنج وقـــت

ووايه چي پنځه دي، لومړی د شهادت کلمه ويل، دوهم پنځه وخته

نماز گزاردن، سوم: روزه ماه رمضان داشتن، چهارم: زکوة
لمونځ ادا کول، دریم: د رمضان د میاشتي روژې نیول، څلورم: زکوة
مال دادن، پنجم: حج گزاردن هر کرا توانائي زاد وراحله
د مال ورکول، پنځم: حج ادا کول هغه چا ته چي توان د توښې او سپرلۍ
باشد واین پنج چیزي مسلمانیست، مسئله هشتم: اگـر
ولري، او دغه پنځه شیان د مسلمانۍ دي، اتمه مسئله: که چیري
ترا پرسند که واجباتّ شریعت چندست؟ بگو هفت ست
ستا څخه پوښتنه وسي چي د شریعت واجبات څو دي؟ نو .ووایه چي اووه دي
اول: صدقه فطر دادن، دوم: قرباني اضحی کردن، سـوم
لومړی: سرسایه ورکول ، دوهم: د لوی اختر قرباني کول، دریم
نماز وتر گزاردن، چهارم: نفقه ذوي الارحام دادن، پنجـم
وتر لمونځ ادا کول، څلورم: نفقه د کورنۍ ورکول، پنځم
خدمت مادر وپدر کردن، ششم: زن راُ خدمت شوهر خود
خدمت د مور او پلار کول، شپږم : ښځي ته د .خپل خاوند خدمت
کردن، هفتم: عمره حج بجا آوردن حاجیانرا، مسئله نهم:
کول، اووم: د عمري حج ادا کول د حاجیانو لپاره، نهمه مسئله:
اگر ترا پرسند که سنت اسلام چند ست؟بگو هـفت ست
که چیري ستا څخه پوښتنه وسي چي د اسلام سنتونه څو دي؟ نو ووایه چي اووه دي

اول: ختنه کردن، دوم: موی لب گرفتن، سوم: موی بیني
لومړی: ختنه (سنت) کول، دوهم برېتونه کوچني کول، درېیم: د پزي وېښتان

کندیدن، چهارم: ناخن گرفتن، پنجم موی بغل گرفـــتن
کښل، څلورم: نوکان کوچني کول، پنځم: د بغلونو وېښتان کښل

ششم موی سر تراشیدن، هفتم موی زیر ناف گـــــرفتن
شپږم : د سر وېښتان خریل، اووم: تر نامه لاندي وېښتان کښل

مسئله دهم: اگر ترا پرسند که احکام شریعت چند ست
لسمه مسئله: که چېري ستا څخه پوښتنه وسي چي د شریعت احکام څو دي؟

بگو هشت است، اول فرض دوهم واجب، سوم ســــنت
ووایه چي اته دي، لومړی: فرض، دوهم: واجب، درېیم: سنت

چهارم مستحب، پنجم حلال، ششم مباح، هفتم مکـروه
څلورم: مستحب، پنځم: حلال، شپږم: مباح، اووم: مکروه

هشتم حرام، مسئله ۱۱: بدانکه در طهارت چهار فرض ست
اتم: حرام، یوولسمه مسئله: پوه سه چي په اوداسه کي څلور فرضونه دي

اول روی شستن از موی پیشاني تا زیر زنخ واز نرمه گوش
لومړی د مخ پرېولل د تندي د وېښتانو څخه تر زني لاندي پوري او د غوږ د نرمی څخه

تانرمه گوش دیگر، دوم هر دو دست شستن تا بالای آرنج
د بل غوږ تر نرمی پوري، دوهم: د دواړو لاسونو پرېولل تر مروندو پوري

سوم: چهارم حصه سر مسح کردن، چهارم: هر دوپای
دریم: څلورمه برخه د سر مسح کول، څلورم: دواړي پښي

شستن تا بالای شتالنک، مسئله۱۲: بدانکه در وضو ده چیز
پرېولل تر پورته حصې د بجلکو پوري، دوولسمه مسئله: پوه سه چي په اوداسه کي لس شیان

سنت ست، اول استنجا کردن، دوم بسم الله گفتن یعني
سنت دي، لومړی: استنجا کول، دوهم بسم الله ویل، یعني

بِسْمِ اللهِ الْعَظِيْمِ وَالْحَمْدُلِلّٰهِ عَلَى دِيْنِ الْإِسْلَامِ، اَلْإِسْلَامُ حَــــقٌّ
په نامه د الله چي عظیم دئ، او حمد دي وي الله لره پر دین اسلام، اسلام دین حق دئ

وَالْكُفْرُ بَاطِلٌ، قبول کردم دین مسلماني را وآنچه درویست
او کفر باطل دئ، قبول مي کړی د مسلمانی دین او هغه چي په هغه (مسلمانی) کي دي

وبیزارم و بیزار شدم از کفر و کافري وآنچه درویـــست
او بېزاره یم او بېزار سوم د کفر او کافری څخه او هغه چي په هغه (کفر) کي دي

سوم: هر دو دست شستن تا بند دست، چهارم: مسواک
دریم: د دواړو لاسونو پرېولل تر بندونو د لاسونو، څلورم: مسواک

کردن، پنجم: آب در دهان کردن، ششم: آب در بـیني کردن
وهل، پنځم: په خوله کي اوبه اچول، شپږم: په پزه کي اوبه اچول

هفتم: خلال ریش کردن، هشتم: خلال انگشتان دست و
اووم: د ږیري خلالول، اتم: خلالول د گوتو د لاسونو او

پای کردن، نهم: مسح هر دو گوش کردن، دهم: هر عضو

او پښو کول، نهم: مسح کول د دواړو غوږونو، لسم: هر اندام

را سه بار شستن، مسئله ۱۳: بدانکه در طهارت شش چیز

درې ځله پرېولل، دیارلسمه مسئله: پوه سه چې په اوداسه کې شپږ شیان

مستحب ست، اول ازان نیت کردن، دوم بترتیب وضـــو

مستحب دي، لومړی د هغو څخه نیت کول دي، دوهم په ترتیب اودس

ساختن، سوم اعضاء پیاپی شستن، چهارم اول عضو راست

کول دي، دریم: اندامونه پرله پسې پرېولل دي؛ څلورم ؛ لومړی راسته اندام

راشستن، پنجم تمام سر را مسح کردن، ششم: مـسح گردن

پرېولل، پنځم: د ټول سر مسح کول دي، شپږم: د غاړې مسح کول دي

مسئله ۱٤: بدانکه شکننده وضو بست چیزي ست، هفت

څوارلسمه مسئله: ,پوه سه چې ماتونکي د اوداسه شل شیان دي، اووه شیان

از پیش، اول بول، دوم ودي، سوم مذي، چهارم آب مـني

دمخکې اندام څخه، لومړی بولې، دوهم ودي، دریم مذي، څلورم د منې اوبه

پنجم سنگریزه، ششم خون حیض ونفاس، هفتم استحاضه

پنځـــم شگـــه، شپږم وینه د حیض او نفاس، اووم استحاضه

وسه چیز دیگر از پس ظاهر میشود، اول غائط دوم بـــاد

او درې نور شیان د شا څخه ښکاره کیږي، لومړی: ډکې بولې، دوم باد

سوم کرم، وده چیز دیگر که از غیر پیش وپس ست، اول

دریم چینجی، او نور لس شیان چي د مخ او شا څخه ماسیوا دي، لومړی

خون روان، دوم ریم، سوم زرد آب روان، چهارم قی پري دهن

رواني ويني، دوهم: نو، دریم ژړي اوبه چي رواني وي، څلورم قی په ډکه خوله

پنجم قهقه بالغ در نمازیکه بارکوع وسجود باشد، ششم

پنځم په زوره خندا د بالغ، په هغه لمانځه کي چي رکوع او سجده ولري، شپږم

دیوانگي، هفتم بیهوشي، هشتم مستي غالب که در رفتار

لیونتوب، اووم بې هوشي، اتم: مستي غالبه، چي په تګ

پای وی بلغزد، نهم خواب تکیه زده، دهم مباشرت فاحشه

د پښو کي یې لړزه وي، نهم په تکیه کولو سره خوب، لسم: مباشرت فاحشه

**مسئله ۱۵:** بدانکه موجبات غسل پنجست، اول انزال مني

پنځلسمه مسئله: پوه سه چي واجبوونکي د غسل پنځه دي، لومړی وتل د مني

اگر جهنده باشهوت باشد، دوم غائب شدن سر حشفه در

چي په شهوت سره راووزي، دوهم ورکېدل د سر د حشفي (د نارینه د مخکي اندام) په

قبل و یا در دبر آدمي، سوم خلاصي زنان از حیض، چهارم

د مخ یا شا په اندام کي د انسان، دریم: پاکېدل د ښځو د حیض څخه، څلورم

خلاصي زنان از نفاس، پنجم، بیت: هرزني راکه گم شود

پاکېدل د ښځو د نفاس څخه، پنځم، بیت: هره هغه ښځه چي ورکي سي

ایام، غسل باید بهر نماز مدام، **مسئله ١٦:** بدانکه غسل
ورځې د هغې، نو باید غسل وکړي هر لمانځه ته تل، شپاړسمه مسئله: پوه سه چي غسل
بر چهار وجه ست، فرض و واجب وسنت ومستحب، فرض
په څلورو وجهو دئ، فرض، واجب، سنت او مستحب، فرض
غسل پنجست، چنانچه بالا گفته شده و واجب غسل دو
غسلونه پنځه دي، لکه چي مخکي ویل سوي دي، او واجب غسلونه دوه
ست اول غسل میت دوم غسل کافر که جنب مسلمان شده
دوه دي، لومړی د مړي غسل، دوهم د کافر غسل چي جنب مسلمان سوی
باشد وغسل سنت چهارست، اول غسل روز جمعه، دوم
وي، او سنت غسلونه څلور دي، لومړی : غسل د جمعي د ورځې، دوهم
غسل روز عرفه، سوم غسل هر دو عیدین، چهارم: غسل
غسل د عرفات د ورځې، دریم: غسل د دواړو اخترونو، څلورم: غسل
احرام حج ، وغسل مستحب سه ست، اول غسل کسیکه
د احرام لپاره حاجي ته، او مستحب غسلونه دري دي، لومړی غسل کول د هغه چا چي
پانزده سال بالغ شده باشد، دوم غسل کافري که بیجنابت
په پنځلس کلنی بالغ سوی وي، دوهم غسل کول د هغه کافر چي بیله جنابته
مسلمان شده باشد سوم غسل کودکي که جنب شده باشد
مسلمان سوی وي، دریم غسل کول د کوچني چي جنب سوی وي

**مسئله۱۷:** بدانکه در غسل سه چیز فرض ست، اول آب

اووه لسمه مسئله: پوه چي په غسل کي دري شيان فرض دي، لومړی اوبه

در دهن کردن، دوم آب دربيني، سوم تمام تن یکبار شستن

په خوله کي اچول، دوهم اوبه په پزه کي اچول، دريم د ټول بدن يو ځل پريولل

ومالیدن، وسنت درغسل پنجست، اول هر دو دست شستن

او موښل، او سنتونه په غسل کي پنځه دي، لومړی د دواړو لاسونو پريولل

دوم استنجا کردن، سوم نجاست از تن خود دور کردن

دوهم استنجاء وهل، دريم نجاست د خپل بدن څخه ليري کول

چهارم وضو ساختن، پنجم تمام بدنرا سه بارشستن.

څلورم اودس کول، پنځم: د ټول بدن دري ځله پريولل

**مسئله ۱۸:** بدانکه درتیمم سه چیزفرض است، اول نیت

اتلسمه مسئله: پوه سه چي په تيمم کي دري شيان فرض دي، لومړی نيت

کردن دوم هر دو دست را زدن برخاک پاک از برای مالیدن

کول، دوهم: دواړه لاسونه وهل پر پاکه خاوره لپاره د موښلو

بر رو، سوم هر دو دست را زدن برخاک پاک از برای مالیدن

پر مخ، دريم: دواړه لاسونه پر پاکه خاوره وهل لپاره د موښلو

هر دودست تا بالای آرنج، **مسئله ۱۹:** بدانکه شکننده تیمم

د دواړو لاسونو تر پورته برخي د څنګلو پوري، نولسمه مسئله: پوه سه چي ماتوونکي د تيمم

دو چیزست، اول هر چه شکننده وضوست، دوم دریافتن

دوه شیان دي، لومړی: هر شی چي د اوداسه ماتونکی وي، دوهم تر لاسه کېدل

آب اگر قادر باشد بر استعمال آن ورنه نه، **مسئله ۲۰:** بدانکه

د اوبو که چیري توان وي پر استعمال د هغه او که توان نه وي نو بیا نه، **شلمه مسئله:** پوه سه چي

مسح موزه کسي راجائز ست که باطهارت کامله موزه پوشیده

مسح کول پر موزو باندي هغه چا ته جائز ده چي په بشپړ اوداسه یې موزې په پښو کړي

باشد اگر بعد ازان بیوضو شود وضو سازد ومسح بر موزه

وي، که چیري وروسته تر دې بې اودسه سي نو اودس به کوي او مسح به پر موزو

کند وفرض مسح بر موزه مقدار سه خط است مقدار سه

کوي، او فرض مسح پر موزو باندي اندازه د درې کرښو ده، په ندازه د درو

انگشت دست وبطرف ساق کشد ومدت مسح مقیم یک

گوتو د لاس او د پنډۍ په خوا دي یې کش کړي، او وخت د مسح د مقیم یوه

شبانه روزست ومسافر را سه شبانروز ست از وقت حدث

شپه او ورځ ده، او د مسافر لپاره درې شپې او ورځې دي د وخت څخه د بې اودسی

وجائز نیست مسح بر موزه که پاریذم باشد بمقدار سه

او جائز نه ده مسح پر موزې که چیري څیري سوې وي په اندازه د درو

انگشت پای و شکننده مسح موزه چهار چیزست، اول هر

گوتو د پښې، او ماتونکي د مسح د موزې څلور شیان دي، لومړی هر

چه شکننده وضو ست، دوم گذشتن مدت مسح، ســوم

هغه شی چي ماتوونکی د اوداسه وي، دوهم: تېرېدل د وخت د مسح، دریم

بیرون امدن یـکموزه یا هر دو موزه، چنانچه اکثر قدم بطرف

ختل د یوې موزې یا دواړو موزو، کله چي زیاته برخه د پښې په خوا

ساق رسد، چهارم در آمدن آب دریک موزه یا در دومـوزه

د پنډۍ ورسیږي، څلورم: ننوتل د اوبو یوې موزې ته او یا دوو موزو ته

چنانچه آب در شتالنگ رسد. مسئله ۲۱: بدانکه اقل مدت

کله چي اوبه بجلکو ته ورسیږي، یوویشتمه مسئله: پوه سه چي کمه موده

حیض سه شبانروز ست اگر ازین کمتر باشد استحاضه بود

د حیض دري شپې او ورځې ده، که چیري تر دې کمه وي نو هغه به استحاضه (ناروغي) وي

و اکثر مدت را ده شبانروز ست اگر ازین زیاده باشـــد

او زیاته موده یې لس شپې او ورځې دي، که چیري تر دې زیات سي

استحاضه بود، واقل مدت نفاس را حدي نیست واکثرمدت

نو استحاضه به وي، او کمه موده د نفاس ته هیڅ حد نسته او زیاته موده

نفاس را چـهل شبانروز ست اگر ازین زیاده باشد استحاضه

د نفاس څلوېښت شپې او ورځې دي که چیري تر دې زیات سي نو استحاضه به

بود، وحکم زمان حائض ونفساء این ست که ترک کـند از

وي، او حکم د وخت د حیض او نفاس دادئ چي پرېږدي به

هشت چیز، نماز و روزه وجماع ودر آمدن مسجد وطواف

اته شیان، لمونځ، روژه، کوروالي، مسجد ته راتلل او طواف کول

خانه کعبه وخواندن قرآن و گرفتن مصحف بغیر غـلاف

د کعبې شریفې، او ویل د قرآن کریم، او په لاس کې نیول د قرآن کریم بېله پوښه

ولیکن بعد از حیض ونفاس روزه را قضا کند نه نـماز را

مگر وروسته تر حیض او نفاس به د روژې قضا راوري نه د لمانځه

مسئله ۲۲: بدانکه فرائض نماز دوازده چیزست اول پاکي

دوه ویشتمه مسئله: پوه سه چې فرضونه د لمانځه دوولس شیان دي، لومړی پاکي د

تن از حدث وجنابت، دوم پاکي جامه وجای، سوم عورت

بدن د بې اودسۍ او جنابت څخه، دوهم پاکي د جامې او ځای، دریم د ستر

راپوشیدن، مـردان را از ناف تازانو وزنان حره را از سرتاقدم

پټول، نارینو ته د نامه څخه تر زنګنو پورې او ازادو ښځو ته د سر څخه تر قدمونو پورې

مگر روی و دودست ودو پـای که در حق زنان عورت نیست

مگر نه مخ او دواړه لاسونه او دواړې پښې چې د ښځو لپاره ستر نه دي

وستر کنیز را حـکم مثل مردان درحق نماز ست اما پوشیدن

او ستر د مینزې حکم لري په ډول د نارینو په لمانځه کې، مگر پټول

سینه وپشت برکنیز زیاده ست، چهارم شناختن اوقـات

د سینې او ملا پر مینزې زیات دي، څلورم پېژندل د وختونو

نماز، پنجم روی بسوی قبله آوردن، ششم نیت نماز کردن
د لمانځه، پنځم: مخ قبلې ته کول، شپږم نیت د لمانځه کول

واین شش چیز را شرائط نماز گویند وشش در اندرون نماز
او دغو شپږو شیانو ته شرطونه د لمانځه وايي. او شپږ دننه په لمانځه کي

ست اول تکبیر تحریمه یعني الله اکبر گفتن، دوم قیام
دي، لومړی: تکبیر تحریمه یعني الله اکبر ویل، دوهم ولاړه

سوم قراة، چهارم رکوع، پنجم سجود، ششم قعده اخیر
دریم: قرائت ویل، څلورم: رکوع کول، پنځم: سجده کول. شپږم : اخیره ناسته

مقدار تشهد خواندن واین شش چیز را ارکان نماز گویند
په اندازه د التحیات ویلو، او دغو شپږو شیانو ته ارکان د لمانځه وايي

**مسئله ۲۳:** بدانکه واجبات نماز دوازه چیز ست، اول فاتحه
دروېشتمه مسئله: پوه سه چي واجبات د لمانځه دوولس شیان دي، لومړی: سورة فاتحه ویل

دوم ضم کردن سورة بافاتحه، سوم تعیین کردن قرات
دوهم: یو ځای کول د سورة د فاتحي سره، دریم: تعین کول د قرائت

در دو رکعت اولین، چهارم رعایت ترتیب، پنجم قعده اولی
په لومړنیو دوو رکعتونو کي، څلورم: رعایت کول د ترتیب، پنځم لومړی ناسته

ششم التحیات را خواندن در هر دو قعده، هفتم از نماز
شپږم: التحیات ویل په دواړو ناستو کي، اووم : د لمانځه څخه

بلفظ سلام بیرون آمدن، هشتم در وتر دعائي قنوت خواندن
په لفظ د سلام وتل، اتم: په وتر لمانځه کي دعاء قنوت ویل
نهم تکبیرات عیدین گفتن، دهم درمحل بلندي بلـــند
نهم: تکبیرونه د اخترونو د لمانځه ویل، لسم: په ځای کي د لوړوالي په لوړ آواز
خواندن، یازدهم درمحل آهستگي آهسته خواندن، دوازدهم
ویل، یوولسم: په ځای کي د کراروالي په کرار آواز ویل، دوولسم
تعدیل ارکان، **مسئله ۲۴:** بدانکه درنماز بیست وهشت سنت
کراروالی د ارکانو، څلیرویشتمه مسئله: پوه سه چي په لمانځه کي اته ویشت سنتونه
ست، هفت در قیام وهفت در رکوع وهفت درسجـــود
دي، اووه په ولاړه کي، او اووه په رکوع کي، او اووه په سجده کي
وهفت درقعده وآن هفت سنت که درقیام ست اول هـر
او اووه په ناسته کي، هغه اووه سنت چي په ولاړه کي دي دادي: لومړی:
دو دست برداشتن مردان را تاگوش برای تکبیر تحریـمه
دواړه لاسونه پورته کول د نارینوو لپاره تر غوږونو پوري لپاره د تکبیر تحریمه
وزنان تا کتف بردارند، دوم دست راست رابالای دســت
او ښځو ته تر اوږو پوري پورته کول، دوهم: راسته لاس سربېره پر
چپ نهادن مردانرا زیرناف وزنانرا دست برسینه نـهادن
چپه لاس اینبودل، نارینوو ته تر نامه لاندي او ښځو ته پر سینه باندي اینبودل

سوم هر دوچشم را سجده گاه داشتن، چهارم سبحانــک

دریم: دواړي سترګي د سجدي پر ځای درلودل، څلورم: سبحانک

اللهم خواندن، پنجم اعوذباالله خواندن، ششم بسم الله الرحــمن

اللهم، ویل، پنځم: اعوذباالله ویل، شپږم: بسم الله الرحمن

الرحیم خواندن، هفتم آمین خواندن، وآن هفت سنت کـه

الرحیم ویل، اووم: آمین ویل، او هغه اووه سنتونه چي

در رکوع ست: اول الله اکبر گفتن از برای رکوع، دوم هر

په رکوع کي دي، دادي: لومړی: الله اکبر ویل لپاره د رکوع، دوهم

دو زانو بدست گرفتن، سوم هر دو چشم رابرپشت پـای

دواړه زنګنونه په لاس نیول، دریم: دواړي سترګي د پښو پر شا

داشتن، چهارم سه بار سبحان ربي العظیم گفتن، پنجــم

درلودل، څلورم: دري ځله سبحان ربي العظیم ویل، پنځم

سمع الله لمن حمده گــفتن مر امام را، ششم ربنا لک الحمد

سمع الله لمن حمده، ویل خاص امام لره، شپږم ربنالک الحمد

گفتن مرمقتدیانرا ومنفرد را هر دو جمع کردن، هـــفتم

ویل مقتدیانو لره، او منفرد (یوازي لمونځ کوونکی) به دواړه وایي، اووم

درقومه آرام گرفتن، وآن هفت سنت که درسجود است:

په قومه کي ارام کول، او هغه اووه سنتونه چي په سجده کي دي، دادي

اول: الله اکبر گفتن اول وآخر سجده، دوم درسجده آرام
لومړی: الله اکبر ویل په پیل او پای کي د سجدې، دوهم په سجده کي ارام

کردن، سوم روی درمیان دو کف دست نهادن، چهارم سه
کول، دریم: مخ د دواړو ورغوو په منځ کي ایښودل، څلورم : دري

بار سبحان ربي الاعلی گفتن، پنجم سرانگشت های دست
ځله سبحان ربي الاعلی ویل، پنځم: سرونه د ګوتو د لاسونو

وپای طرف قبله کردن، ششم طرف بیني دیدن، هفتم در
او پښو قبلې ته کول، شپږم : پزي ته کتل، اووم په

جلسه آرام کردن وآن هفت سنت که درقعده است، اول
جلسه کي آرام کول، او هغه اووه سنتونه چي په ناسته کي دي، دادي: لومړی:

بر پای چپ نشستن مردان را در هر دو قعده، دوم استاده
پر چپه پښه کښېنستل نارینوو ته په دواړو ناستو کي، دوهم درول

کردن پای راست را بر سرانگشتان وزنان را برسرین نشستن
د راسته پښي پر سرونو د ګوتو، او ښځو ته پر کوناټو کښېنستل

وهردوپای راجانب راست بیرون آوردن، سوم هر دو دست
او دواړي پښي راسته خوا ته دباندي ایستل، دریم: دواړه لاسونه

برران نهادن، چهارم سرانگشتان دست وپای طرف قبله
پر ورانه ایښودل، څلورم: سرونه د ګوتو د لاسونو او پښو د قبلې خوا ته

کردن، پنجم درکنار خود دیدن، ششم بر رسول الله ﷺ

کول، پنځم: خپلي غيږي ته کتل، شپږم پر رسول الله ﷺ

صلوة گفتن، هفتم اللهم اغفرلي خواندن، مسئله ۲۵: بدانکه

درود شريف ويل. اووم: اللهم اغفرلي (اې الله! ماته بخښنه وکړې) ويل، پنځه ويشتمه مسئله: پوه سه

شکننده نماز بست وپنج چيزست، اول سخن گفتن، دوم

چي ماتوونکي د لمانځه پنځه ويشت شيان دي، لومړی: خبري کول، دوهم

بقصد سلام گفتن، سوم جواب سلام دادن، چهارم چيزي

په قصد سره سلام ويل، دريم: د سلام جواب ورکول، څلورم : يو شی

خوردن، پنجم ناله کردن، ششم: آه کردن، هفتم اوه کردن

خوړل، پنځم: فرياد کول، شپږم: آه کول، اووم: اوه (يا اوف) کول

هشتم گريستن که از ترس واميد خداى تعالى نبـــاشد،

اتم: ژړا کول چي د بيري او اميد څخه د الله ﷻ نه وي

نهم بيعذر سرفه وتنجنح کردن، دهم جواب عطسه دادن

نهم: بېله عذره ټوخی کول او غاړي تازه کول، لسم: د ترچي جواب ورکول (يرحمک الله ويل)

يازدهم از خبر نيک ياخبر بد عجب کردن اگر چه بذکر

يوولسم: د ښه يا بد خبر په اورېدو سره تعجب کول که څه هم په ذکر

قرآن باشد، دوازدهم برغير امام خود فتح کردن، سيزدهم

د قرآن کريم وي، دوولسم: د خپل امام څخه ماسيوا بل چا ته فتح ورکول، ديارلسم

گرفتن قراة امام غير مقتدي خود، چهاردهم قرآن را غلط

نيول د قرائت د امام ماسيوا د خپل مقتدي څخه، څوارلسم: قرآن كريم غلط

خواندن چنانچه معنى متغير شود، پانزدهم برچيزي نجس

ويل په داسي توګه چي معنى يې بدله سي، پنځلسم: پر ناپاک شي باندي

سجده كردن، شانزدهم طلب كردن چيزي از خدايتعالى

سجده كول، شپاړسم: غوښتل د يو شي د الله ﷻ څخه

مثل چيزي كه از آدميان ميطلبد، هفدهم عمل كثيركردن

داسي شى چي د خلكو څخه غوښتل كيږي، اووه لسم: ډېر كار كول (په لمانځه كي)

هژدم خنديدن يعني قهقه بالغ درنماز، نوازدهـم روى از

اتلسم: خندا كول، يعني په زوره خندا د بالغ سړي په لمانځه كي، نولسم: مخ د

قبله گردانيدن چنانچه پشت بقبله شود، بستم ترک فرض

قبلي څخه اړول په داسي توګه چي ملا يې قبلي ته سي، شلم: پرېښودل د فرض

كردن، بست ويكم برابر استادن زن بمرد اگر در تحريمه

دي، يوويشتم: برابر درېدل د ښځي د سړي سره كه چيري په تحريمه

و ادا موافق باشند، بست ودوم قراءة را درمصحف خواندن

او اداء كي موافق وي، دوه ويشتم: قرائت ويل په قرآن كريم كي

بست وسوم كسيكه فرض وقتي ميگزارد ويادش آمد فرض

درويشتم: يو څوک فرض د (حاضر) وخت ادا كوي او په ياد ورسي چي فرض

قضای دیگر نگزارده ام اگر صاحب ترتیب باشد و وقت
قضاء بل مي نه دی ادا کړی، که چیري خاوند ترتیب وي او وخت
تنگ نباشد نماز وقتي اوفاسد شود، بست وچهارم در وقت
تنگ نه وي نو د وخت لمونځ يې فاسد سو، څليرويشتم: په وخت کي
سجده هر دوپای از زمین جدا کردن، بست وپنجم پیش
د سجدي دواړي پښې د مځکي څخه جلا کول، پنځه ویشتم: مخکي
ازامام استادن، **مسئله ۲۵**: سجده سهو واجب میشود از
تر امام ولاړېدل، پنځه ویشتمه مسئله: سجده سهوه واجبيږي
برای تدارک نقصان که از سبب پنج چیز پیدامیشود اول
لپاره د تدارک د تاوان چي له وجه د پنځو شیانو پیدا کیږي، لومړی
تقدیم رکن چنانچه رکوع پیش ازقراءة کند، دوم تاخیر رکن
مخته کول د رکن لکه رکوع مخکي تر قرائت وکړي، دوهم ځنډول د رکن
که در قعده اولی زیاده بر التحیات خواند که در رکعت دوم
چي په لومړی ناستي کي زيات تر التحيات ووايي چي په دوهم .رکعت کي
تاخیرشود، سوم تکرار رکن چنانچه دورکوع کند دریک رکعت
ځنډ وشي، دريم: تکرار د رکن ، لکه دوې رکوع وکړي په يوه رکعت کي
چهارم ترک واجب چنانچه قعده اولی ترک کند، پنـــجم
څلورم : پرېښودل د واجب لکه چيَ لومړی ناسته پرېږدي، .پنځم

تغیر واجب چنانچه آهسته خواندن درنمازی که بلند خواندن

بدلېدل د واجب لکه کرار قرائت ویل په هغه لمانځه کي چي په لوړ آواز پکښې ویل

در ان واجب ست وعکس آن، مسئله ۲۶: بدانکه نماز جنازه

په هغه کي واجب دي او ددې برعکس، شپږویشتمه مسئله: پوه سه چي د جنازې لمونځ

بر میت مؤمن فرض کفایه است وطریق نیت آن اینست:

پر مړي مؤمن فرض کفایه دئ، او طریقه د نیت یې داده

نَوَیْتُ اَنْ اُوَدِّيَ لِلّٰهِ تَعَالٰی اَرْبَعَ تَکْبِیْرَاتِ صَلٰوةِ الْجَنَازَةِ اَلثَّنَاءُ

نیت مي دئ چي ادا کړم د الله ﷻ لپاره څلور تکبیرونه لمونځ د جنازې، ثناء

لِلّٰهِ تَعَالٰی وَالصَّلٰوةُ لِلنَّبِيِّ وَالدُّعَاءُ لِهٰذَا الْمَیِّتِ مُتَوَجِّهًا اِلٰی جِـهَةِ

خدای ﷻ لره او درود پر نبي ﷺ او دعاء د دغه مړي لپاره، مخامخ لوري ته

الْکَعْبَةِ الشَّرِیْفَةِ اَللّٰهُ اَکْبَرُ، اگر امام باشد اَنَا اِمَامٌ گوید واگر

د کعبې شریفې ، الله اکبر، که چیري امام وي نو زه امام یم، دي ووایي او که چیري

مقتدي باشد اِقْتَدَیْتُ بِهٰذَا الْاِمَامِ گوید، وبعد از تکبیر اول

مقتدي وي نو : اقتداء مي ده په دغه امام پسي، دي ووایي، او وروسته تر لومړي تکبیر دي

بگوید:سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکَ وَتَبَارَکَ اسْمُکَ وَتَعَالٰی جَدُّکَ

ووایي: پاکي ده تا لره اې الله او حمد دي وي تا لره او برکتمن دئ نوم ستا او لوړ دئ شان ستا

وَجَلَّ ثَنَاءُکَ وَلَااِلٰهَ غَیْرُکَ، وبعد از تکبیر دوم: اَللّٰهُمَّ صَـلِّ

او لوی دئ ثناء ستا، او نسته لائق د عبادت ماسیوا ستا څخه، او وروسته تر دوهم تکبیر: اې الله درود دې وي

عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ

پر محمد (ﷺ) او پر کورنی د محمد (ﷺ) لکه چې تا رحمت کړی دئ پر ابراهیم او پر آل د ابراهیم علیه السلام

اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ، اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ

بېشکه ته تعریف سوی او بزرګ یې، اې الله! برکت نازل کړې پر محمد (ﷺ) او پر آل د محمد (ﷺ) لکه چې تا برکت نازل کړی دئ

وَسَلَّمْتَ وَرَحِمْتَ وَتَرَحَّمْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ

او سلامتیا دې کړې ده او رحم دې کړی او رحمت دې کړی دئ پر ابراهیم (علیه السلام) او پر آل د ابراهیم علیه السلام

اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ، وبعد از تکبیر سوم بگوید: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَیِّنَا

بېشکه ته تعریف سوی او بزرګ یې، وروسته تر دریم تکبیر دې ووایي: اې الله! وبخښې ژوندي زموږ

وَمَیِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِیْرِنَا وَکَبِیْرِنَا وَذَکَرِنَا وَاُنْثَانَا، اَللّٰهُمَّ

او مړه زموږ، حاضر زموږ او غائب زموږ، کوچني زموږ او لوی زموږ، نارینه زموږ او ښځې زموږ، اې الله

مَنْ اَحْیَیْتَهٗ مِنَّا فَاَحْیِهٖ عَلَی الْاِسْلَامِ وَمَنْ تَوَفَّیْتَهٗ مِنَّا فَتَوَفَّهٗ عَلَی

څوک چې ژوندی وي په موږ کې نو هغه ژوندی ولره پر اسلام او څوک چې مړ وي نو هغه مړ کړې پر

الْاِیْمَانِ بِرَحْمَتِکَ یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ، واگر میت کودک باشد

ایمان باندې، په رحمت ستا اې مهربان د مهربانی کوونکو، او که چیرې مړی کوچنی وي

این دعا بخواند: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا وَّاجْعَلْهُ لَنَا اَجْرًا وَّذُخْرًا

نو دغه دعاء دې ووایي: اې الله! وګرځوې دغه زموږ لپاره ذخیره او و یې ګرځوې زموږ لپاره اجر او ذخیره

وَاجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا وَّمُشَفَّعًا بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ، واگرمیت

او ويې گرځوې زموږ لپاره شفاعت کوونکی او مقبول شفاعت، په رحمت ستا اې مهربانه د مهربانی کوونکو، او که چیرې مړی

دختر باشد این دعاء بخواند: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا لَنَا فَرَطًا وَّاجْعَلْهَا

کوچنۍ انجلۍ وي نو دغه دعاء دې ووايي: اې الله! وګرځوې دغه زموږ لپاره ذخيره او ويې ګرځوې

لَنَا اَجْرًا وَّذُخْرًا وَاجْعَلْهَا لَنَا شَافِعَةً وَّمُشَفَّعَةً بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ

زموږ لپاره اجر او ذخيره، او ويې ګرځوې زموږ لپاره شفاعت کوونکې او مقبول شفاعت، په رحمت ستا اې مهربانه د مهربانۍ کوونکو..

## اول کلمه طیب

لومړۍ کلمه طيبه

لَااِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

نسته لائق د عبادت ماسيوا د الله (ﷻ) څخه، محمد (ﷺ) رسول د الله (ﷻ) دئ.

## دوم کلمه شهادت

دوهمه کلمه د شهادت

اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ

زه شاهدي ادا کوم چې نسته لائق د عبادت ماسيوا د الله (ﷻ) څخه، او شاهدي ادا کوم چې محمد (ﷺ) د هغه بنده او د هغه رسول دئ.

## سوم کلمه تمجید

دریمه کلمه د تمجید

سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُلِلّٰهِ وَلَااِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَكْبَرُ وَلَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ.

پاكي دي وي الله ﷻ لره او ثناء دي وي الله ﷻ لره، او نسته لائق د عبادت ماسيوا د الله ﷻ څخه، او الله ﷻ ډېر لوی دئ، او نسته خلاصون د ګناه څخه او نسته قوت د نيکۍ مګر په مرسته د الله ﷻ چي لوړ او لوی دئ.

## چهارم کلمه توحید

څلورمه کلمه د توحيد

اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، يُحْيِي وَيُمِيْتُ وَهُوَ حَيٌّ لَايَمُوْتُ اَبَدًا، ذُوْالْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ، بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ.

زه شاهدي ادا کوم چي نسته لائق د عبادت مګر الله ﷻ يوازي او نسته شريک ده لره، ده لره پاچاهي ده او ده لره ثناء ده، ژوندي کول کوي او مړ کول کوي، او هغه ژوندی ذات دئ او نه مړ کيږي هيڅکله، خاوند د جلال او عزت دئ، د هغه په لاس کي هر څه خير دئ او هغه په هر شي توانا دئ.

## پنجم کلمه ردکفر

پنځمه کلمه د کفر د رد

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ اَنْ اُشْرِكَ بِكَ شَيْئًا وَّاَنَا اَعْلَمُ بِهِ وَاَسْتَغْفِرُكَ

لِمَا لاَ اَعْلَمُ بِهٖ تُبْتُ عَنْهُ وَ تَبَرَّأْتُ مِنَ الْكُفْرِ وَالشِّرْكِ وَالْكِذْبِ وَالْغَيْبَةِ وَالْبِدْعَةِ وَالْفَوَاحِشِ وَالْمَعَاصِيْ كُلِّهَا اَسْلَمْتُ وَاَقُوْلُ لاَاِلٰهَ اِلاَّاللهُ مُحَمَّدٌرَسُوْلُ اللهِ .

اې الله! زه پناه غواړم په تا سره د دې څخه چې شریک ونیسم ستا سره یو شی او زه خبر یم په هغه او بخښنه غواړم ستا څخه د هغې چې زه په خبر نه یم، ما د هغو څخه توبه وکښل او زه بېزاره سوی یم د کفر او شرک او دروا‌غو او غیبت او بدعت او گناهونو او ټولو گناهونو څخه، ما ایمان راوړی دئ او وایم: نسته لائق د عبادت ماسیوا د الله ﷻ څخه، محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دئ.

## ششم کلمه استغفار

شپږمه کلمه د استغفار

اَسْتَغْفِرُ اللهَ رَبِّيْ مِنْ كُلِّ ذَنْبٍ اَذْنَبْتُهٗ عَمَدًا اَوْ خَطَئًا سِرًّا وَّعَلاَنِيَةً وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ يَا غَفَّارُ مِنَ الذَّنْبِ الَّذِيْ اَعْلَمُ وَ مِنَ الذَّنْبِ الَّذِيْ لاَاَعْلَمُ اِنَّكَ اَنْتَ عَلاَّمُ الْغُيُوْبِ وَسَتَّارُ الْعُيُوْبِ وَكَشَّافُ الْكُرُوْبِ وَلَاحَوْلَ وَلاَقُوَّةَ اِلاَّ بِااللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ .

زه بخښنه غواړم د الله ﷻ څخه چې زما رب دئ د هرې گناه څخه چې ما کړې ده په قصد سره او په خطا سره، په پټه سره او په ښکاره سره، او زه توبه کوم تا ته اې بخښونکې! د هغو گناهونو څخه چې ما ته معلوم دي او د هغو گناهونو څخه چې ما ته معلوم نه دي، بیله شکه ته ښه خبر یې په پټو، او پټوونکی یې د عیبونو، او ایسته کوونکی د غمونو، نسته طاقت د گناهونو څخه د خلاصیدو او نه قدرت پر نیکیو باندې مگر د الله ﷻ څخه چې لوړ شان او عظمت والا دئ.

تمت بالخیر

فتح الایضاح
د نورالایضاح پښتو شرحه
د فقهي مسائلو د مستند او اساسي کتاب
نورالایضاح پښتو شرحه چې کورونو کې د مېرمنو
او کوچنیانو (ماشومانو) د زده کړې او
پوهې له پاره او په مدارسو کې د طالب العلمانو
له پاره، چې په ډېر معیار او دقت سره ئې بشپړه
شرحه، د هرې مسئلې له تشریح سره سوې ده.